او مؤطوئة د وارو اصول وفروع حراميږي

تفصيل د دې اجمال دا دې چې اولاد استحقاق حرمات کښې اصول دی لهذا که هغه ماشوم وی نو په هغهٔ باندې د مؤطوئة مور او لونړه حراميږی که دغه شان هغه ماشومه وی نو په هغې باندې د واطی پلار او خامن حراميږی بيا به دا حرمت د ماشوم نه د واطی او مؤطوئة طرفته منتقل شی او هغوی دپاره به د يوبل اصول او فروع حرام شی الغرض واطی او مؤطوئة دپاره چې څنګه د اصول وفروع په حرمت باندې د جزئيت د علت په وجه سره اجماع ده هم دغه علت جزئيت د زنا په صورت کښې هم موندلې کيږی لهذا د دې تفصيل مطابق په زانی باندې د مزنيه (چاسره چې زنا شوې ده) مور حراميږی څنګه چې په هغهٔ باندې د خپلې منکوحې مور (خوانبې) حرام ده (دې مقام باندې خاص توجه سره ځان پوهه کړئ)

**اشکال** : چې هرکله قياس هم يو مستقل اصول دې نو ماتن رحمه الله داسې ولې اونه وئيل اعلم ان اصول الشرع اربعة؟

**رومبی جـواب** : ماتن رحمه الله خبرداري ورکول غواړی چې اګرچه قياس هم يو مستقل اصول دې ليکن فرق دا دې چې د کتاب، سنت او د اجماع حکم قطعی الثبوت دې او د قياس حکم ظنی دې دا د للاکثر حکم الکل په اعتبار سره وئيلې شوې دی ورنه د کتاب الله يو قسم عام مخصوص منه البعض او د سنت يو قسم خبرواحد ظنی دی د دې برعکس د قياس يو قسم چې د هغې بنياد په نص قطعی باندې وی. قطعی دې ـ

**دويم جواب** : مصنف رحمه الله دا طريقه په منکرين قياس باندې د رد .

کولو دپاره اختیار کړې ده

**اشکال** : منکر قیاس باندې خو ړد هسې هم کیدۀ بیا د الرابع جدا ذکر کولو څۀ فائده ؟

**جواب** : والرابع ذکر کولو سره په هغوی باندې صراحةً او اراده او جزم سره رد اوشو او دویم صورت کښې ضمناً رد حاصلیدۀ دې سره د هغې سوال جواب هم اوشو چې کتاب ، سنت او اجماع سره یې الاصل لفظ راؤنه ړلو او قیاس کښې اووې چې الاصل الرابع؟

**جواب** : دغه شان مصنف رحمه الله د قیاس مرتبه واضحه کړه چې کله یو حکم کتاب ، سنت او اجماع کښې ملاؤ نه شي نو قیاس طرفته به رجوع کولې شي او که یو حکم د ړومبی دریو ادله نه حاصل شي نو بیا قیاس طرفته هیڅ حاجت نشته

**اشکال** : کتاب ، سنت ، اجماع او قیاس ته اصل وئیل صحیح نه دی ځکه چې کتاب او سنت د تصدیق بالله او اجماع د داعی فرع دی او قیاس د اصول ثلاثه فرع دہ ؟

**جواب** : مونږ دا منو چې دا فرع دی لیکن دې کښې هیڅ حرج نشته چې یو څیز د چا دپاره اصل او چا دپاره فرع وی تاسو نه ګوری چې د والد خپل اولاد ته نسبت کیږی نو دا اصل دې او چې د اولاد والد ته نسبت کیږی نو دا فرع ده۔

## د اصول اربعه بیان د وجه حصر په طریقې سره

مستدل یا خو به د وحی نه استدلال کوی یا د غیر وحی نه که د وحی نه استدلال اوکړی نو د دواړو حالو نه خالی نه ده وحی به

متلو وي يا غير متلو كه وحي متلو ده نو كتاب او كه غير متلو نو سنت كه مستدل د غير وحي نه استدلال اوكړي نو بيا هم دوه صورتونه دي يا خو به هغه د بعضو قول وي يا د ټولو كۀ د ټولو قول وي نو دا اجماع ده ورنه قياس دې

**اعتراض** اصول شرع لره په دې څلورو قسمونو كښې منحصر كول صحيح نه دى ځكه چې فقهاء كرامو د شرائع من قبلنا هغه احكام چې كتاب الله سره معارض نه دى نيز تعامل الناس او استحسان هم اصل شرع ګرځولې دى

**جواب** دا څيزونه دې اصولو كښې داخل دى هغه په دې شان سره چې د شرائع من قبلنا ثبوت كه د قرآن مجيد نه وى نو هغه كتاب سره او كه د حديث نه وى نو سنت سره ملحق دى ځكه چې مونږ په شرائع سابق باندې داسې حيثيت سره عمل كوو چې الله تعالى يا نبى عليه السلام د هغې حكم كړې دې په دې حيثيت سره نۀ چې دا مستقل شريعت دې ځكه چې د شريعت محمديه صلى الله عليه وسلم نه پس ټول سابقه شرائع منسوخ شوې دى دغه شان تعامل الناس د اجماع سره ملحق دې چې دا فعل الكل دې او هغه قول الكل . پاتې شو استحسان نو هغه د قياس يو قسم دې چې هغې ته فقهاء كرام قياس خفى وائى

**قولــــه** اما الكتاب فالقران المنزل على الرسول عليه السلام المكتوب فى المصاحف المنقول عنه نقلاً متواتراً بلا شبهة

**د اصول اربعه تفصيل**

د اصول اربعه د نوم د ذكر كولو نه پس مصنف رحمه الله د لف نشر مرتب په طريقې سره د هغې تفصيل ذكر كوى

**(١) الاصل الاول الكتاب**

مصنف رحمه الله د كتاب الله انتهائي جامع او مانع تعريف كړې دې چې د هغې ترجمه دا ده چې (كتاب هغه قرآن دې (١) چې په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې نازل شوې دې (٢) مصاحف كښې ليكلې شوې دې (٣) په نبى عليه السلام باندې داسې تواتر سره نازل شوې دې چې هغې كښې هيڅ قسم شک او شبه نشته)

**اشکال** : دا خو د ټول كتاب الله تعريف دې او تاسو وئيلې وو چې فقه كښې د كتاب الله د پنځه سوۀ آيتونو نه احكام او مسائل مستنبط كيږى ؟

**جواب** : الكتاب كښې الف لام عهدى دې او معهود ماقبل كښې مذكور كتاب دې چې د بعض مضاف اليه وو اى بعض الكتاب

**د تعريف توضيح او تشريح** :

**قوله القرآن** : په لفظ قرآن كښې د نحاة اختلاف راغلې دې چې آيا دا علم دې يا اسم مصدر كه علم وى څنګه چې مشهور او معروف دې دې صورت كښې به فالقرآن نه تعريف لفظى وئيلې شى د تعريف لفظى نه مراد دا دې چې د يو څيز دوه نومونه وى يو معروف او يو اجنبى اول اجنبى نوم ذكر كړې شى او معروف نوم سره يې وضاحت ذكر كړې شى مثلاً چا اووې (ليث) تاسو پرې نه پوهيږې نو هغۀ اووې (اسد) دغه شان (غيث) نه بعد د (مطر) ذكر د (غضنفر) نه پس داسد ذكروغيره د تعريف لفظى مشهورمثالونه دى.

دویم قول د مصدریت دې بیا په دې کښې اختلاف دې چې مصدر د کوم باب نه دې که دا د قرء یقرء نصر ینصر نه وی نو مصدر بمعنی مفعول به وی او معنی به یې. وی چې کوم کتاب لوستلې کیږی او وجه تسمیه ښکاره ده که دا د باب قرن یقرن ضرب یضرب نه وی نو بیا به هم مصدر بمعنی مفعول وی او معنی به یې. وی چې د کوم آیتونو او واقعاتو کښې باهم اقتران او ربط وی او دا خبره د چانه هم پټه نه ده کما قال الرازی رحمه الله لیکن دې دواؤ صورتونو کښې به تعریف لفظی نه وی بلکه اسم جنس به وی او هر کتاب ته به شامل وی ځکه چې هر کتاب لوستلې کیږی هم او د هغې مضمونو او مفاهیمو کښې ربط هم وی۔

**قوله** : **المنزل علی الرسول علیه السلام** :

دا په وړومبی قول باندې د تعریف حقیقی ابتداء ده په دویم قول باندې قیدل اول دې (المنزل) سره هغه ټول مضامین خارج شو چې د آسمان نه نازل شوې نه دی بلکه خلقو لیکلې دی البته تعریف فی الحال کتب سابقه (تورات ، زبور او انجیل او د نورو انبیاء کرامو صحیفو) ته شامل دې په دې وجه یې. وړاندې د علی الرسول قید اولګوو (الرسول) د دې الف لام عهدی دې او مراد ترې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دې لهذا تعریف قرآن سره خاص شو۔

**المنزل کښې اعراب** : دا د تشدید او تخفیف دواړو سره وئیل جائز دی که د تشدید سره وی نو د باب تفعیل نه به د اسم مفعول صیغه وی او معنی به وی (رفته رفته نازلیدونکې کتاب) دا خبره قرآن پاک باندې دې طور سره صادق راځی چې قرآن پاک د بندګانو

د مصلحت او د حالاتو مطابق تقريباً دريوشت کاله کښې لږ لږ نازل شوې دې د دويم قرات صورت کښې به دا د باب افعال نه د مفعول صيغه وی او د منزل معنی به شی ، په يو ځل سره نازليدونکې ، د دې علماء کرامو دوه توجيهات بيان کړې دی -

اول خو دا چې رمضان المبارک کښې به هر کال په حضور اکرم ﷺ باندې ټول قرآن پاک په يو ځل باندې نازليدهٔ دا توجيه قرين قياس نه ده د دې نه غوره توجيه دا ده چې د وفات په کال باندې جبرائيل عليه السلام نبی عليه السلام ته ټول قرآن پاک اوروليے وو

والله اعلم بالصواب

**قوله** : المکتوب فی المصاحف :

دا د تعريف دويم جزء او د قرآن مجيد دويم صفت دې

**اشکال** : ( **المکتوب** ) لره د قرآن مجيد صفت ګرځول صحيح نه دی ځکه چې کتابت خو د نقوشو کيږی د الفاظ او د معانو نهٔ چې په هغې باندې قرآن مجيد مشتمل دې ؟

**جواب** : مکتوب بمعنی مثبت ( بالفتح اسم مفعول ) دې او د الفاظو او معانی په مثبت کيدو کښې هيڅ شبه نشته فرق صرف دومره دې چې لفظ حقيقتاً مثبت دې او معنی تقديراً يعنی د معانو اثبات د الفاظو په ذريعې سره کيږی

**د ( المصاحف ) الف لام ؟**

دې کښې دوه احتمالات دی (١) جنسی به وی (٢) عهدی به وی

دويم صورت کښې خو څه اشکال نشته ځکه چې معهود د قراء سبعه مصاحف دی او تعريف جامع او مانع دې ځکه چې د قراء

سبعه په مصاحفو کښې د قرآن مجید نه علاوه څه مذکور نه دی او
چې څه د قراء سبعه په مصاحفو کښې نشته هغه قرآن هم نه دې دا
په دې حیثیت سره قید احترازی هم دې چې هغه آیات او قراءت
خارج شو چې کوم منسوخ کړې شوې دی مثلاً د حضرت ابی بن
کعب رضی الله عنه قرات د قضاء رمضان متعلق (فعدة من ایام اخر
متتابعات) او منسوخ التلاوة او موجود الحکم قرات مثلاً:

الشیخ والشیخة اذا زنیا فارجموها نکالاً من الله

**اعتراض** د قراء سبعه د مصاحف تعریف یې ولې اونکړو؟

**جواب**: د هغې تعریف یې په دوؤ وجو سره اونکړو اول خو په دې
وجه چې د قراء سبعه مصاحف په عوام او خواص کښې متارف دی
او دویم د دور نه د بچ کیدو دپاره چې د محصلین د شان منافی او
ناپسندیده امر دې تفصیل دا دې چې د قراء سبعه د مصاحف
تعریف کښې که اووئیلې شی (ماکتب فیه القرآن) دا هغه مصاحف
دی چې په کښې قرآن لیکلې شوې دې نو سوال کیږی چې
ماالقرآن؟ او جواب کښې وئیلې شی ماکتب فی المصاحف بیا
سوال کیږی چې ماالمصاحف؟ دغه شان دور لازم راځی په دې وجه
یې د هغې بالکل تعریف اونکړو

اولنې احتمال موجب اشکال دې چې تعریف د قرآن جامع او
د دخول غیر نه مانع نه دې ځکه چې مصاحف جمع د مصحف ده او
د مصحف لفظ خو په هرکتاب باندې صادق راځی ځکه چې هغه
مصاحفو کښې لیکلې شوې دې

**جواب** دې تعمیم سره تعریف باندې هیڅ اثر نه پریوځی ځکه چې

وړاندې دریم صفت راځي چې هغې سره تعریف جامع مانع شو

**قوله** : **المنقول عنه نقلاً متواتراً بلا شبهة ......**

دا د قرآن دریم صفت دې او په وړومبی احتمال باندې دا قید احترازي دې ځکه چې د عنه ضمیر د الرسول طرفته راجع دې او د الرسول نه مراد هم حضور اکرم ﷺ دې لهذا تعریف جامع مانع شو.

**قوله**: **متواتراً ......** دا قید احترازي دې د دې په ذریعې سره هغه قراتونه خارج شو چې کوم د خبرواحد په ذریعې سره منقول دی مثلاً د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه قرات د قضاء رمضان باره کښې او هغه قرات هم خارج شو چې د خبر مشهوره په ذریعې سره کوم منقول دی مثلاً حد سرقه کښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قرات چې قرات **فاقطعوا ایمانهما** او **فصیام ثلاثة ایام متتابعات**)۔

**قوله**: **بلا شبهة** .... د متواتر په تعریف سره د بلا شبهة د حیثیت تعیین کیږی په دې باندې ځان خبر کړئ چې د متواتر په تعریف کښې د جمهور او د امام خصاف رحمه الله مینځ کښې اختلاف دې ۔

(۱) **د جمهور په نزد** متواتر هغې ته وئیلې شی چې د شک و شبه نه پاک وی لهذا بلاشبهة د متواتراً دپاره تاکید دې

(۲) **د امام خصاف په نزد د متواتر دوه قسمونه دی**:

**اول** : متواتر بلاشبهة دا هغه دې چې د جمهورو په نزد ورته متواتر وئیلې کیږی ۔

**دوم** : د متواتر بالشبهة نه مراد خبر مشهور دې نو د امام خصاف

په نزد بلا شبهة قيد احترازي دي او د خبر مشهور نه د احتراز د پاره دي

**نكته** : دا بول تفصيل هغه صورت كښې وو چې كله المكتوب في المصاحف كښې د المصاحف الف لام جنسي وي او كه الف لام عهدي وي نو چونكه تعريف د قرآن مجيد سره خاص شوې دي لهذا ټول صفت به د ثلثه د قيد په ځايې د ماقبل بيان وي

د منار بعضو شارحينو او اصوليانو رحمهم الله وئيلي دي چې د بلا شبهة په ذريعې سره مصنف رحمه الله د تسميې نه احتراز كړې دې چې په هغې باندې درې دليلونه دي

**رومبې دليل** : د بسم الله د منكر تكفير نه دې شوې حالانكه د قرآن پاك د ادنى نه ادنى آيت نه منكر بالاجماع كافر دې

**دويم دليل**

كه څوک صرف بسم الله اووائي نو فرض قرات نه اداكيږي

**دريم دليل** په حالت د جنابت كښې د ښځو او سړو د پاره او دغه شان په حالت حيض او نفاس كښې د ښځو د پاره د دې لوستل جائز دي حالانكه دا قسم خلق په داسې حالت كښې د قرآن پاك تلاوت نه شي كولې

د جمهور احنافو په نزد بسم الله په قرآن پاک كښې داخل ده او تركوسې چې د دلائل مذكوره تعلق دې نو د هغې جوابات وركړې شوي دي

**د اولنى دليل جواب**

د بسم الله د منكر تكفير ځكه نه كيږي ځكه چې د دې (بسم الله) د قرآن په جزء كيدو كښې شبه ده چې د قرآن جزء دې كه نه دې

**د دويم دليل جواب**: صرف تسميه د قرات دپاره ځکه کافی نه ده چې دا د بعضو په نزد باندې پوره آیت نه دې

**د دريم دليل جواب**:

د تلاوت په نیت سره د بسم الله تلاوت هم جائز نه دې تبرکاً جائز دې ځنګه چې سبحان الله . الحمد لله وغیره وئیلې شی

**قوله**: **وهو اسم للنظم والمعنى جميعاً**

ماتن رحمه الله فرمائی چې قرآن مجید د الفاظو او د معانو د دواړو د مجموعې نوم دې د یو نوم نه دې

**د عبارت مقصد**:

صحیح خبره هم دا ده چې دا د یو وهم دفعیه ده د وهم مبنی د ماتن رحمه الله عبارت ګرځولې کیدې شی ځکه چې هغوی د کتاب الله په تعریف کښې د انزال . کتابت او د نقل ذکر کړې دې او دا ټول صرف د الفاظو صفات دی نو چاته دا وهم کیدې شی چې شاید قرآن صرف د الفاظو نوم دې او معانی ته په دې کښې هیڅ حیثیت حاصل نه دې

دغه شان وهم د امام ابوحنیفه رحمه الله طرفته منسوب د یو فتوی نه هم پیدا کیږی چې په هغې کښې هغوی فرمائیلې دی چې یو سړې په عربی زبان او د قرآن قرات باندې د قدرت لرلو باوجود بله ژبه کښې قرات اوکړی نو مونځ یې ادا کیږی د دې نه دا وهم پیدا کیږی چې شاید قرآن صرف د معانی نوم دې او د عربی الفاظو ته په دې کښې هیڅ مقام حاصل نه دې نو ماتن رحمه الله واضح

کړل چي قرآن د الفاظو او د معانو د مجموعي نوم دي نه صرف د الفاظو څنګه چي د قرآن په تعریف کښي د مذکوره الفاظو نه وهم پیدا کیږی او نه صرف د معانو نوم دي

دا جدا بحث دي چي امام صاحب فتوی ورکړي ده یا نهٔ (که ورکړي يې ده نو ولې ؟) لیکن صحیح خبره دا ده چي داسي څه فتوی حضرت امام اعظم رحمه الله نه ده ورکړي او که څوک اصرار اوکړی نو د هغي جوابات هم ورکړي شوي دی چي د هغي ماحصل دا دي چي د امام اعظم صاحب رحمه الله دا مذهب قطعاً نه دي چي قرآن مجید صرف د معانو نوم دي که داسي څه خبره وه نو هغوی به د ماڼخه نه علاوه هم داسي قول کوو حالانکه د هغوی نه داسي څهٔ خبره ثابت نه ده او هغوی څنګه وئیلي شی چي هر کله الله تعالی واضح طور فرمائی قرآن عربی مبین

**سوال** ماتن رحمه الله د لفظ په ځایي د نظم صیغه ولي استعمال کړه ؟

**جواب**: ماتن رحمه الله د انتهائی ادب او احترام په وجه سره دا لفظ منتخب کړي دي ځکه چي د لفظ معنی ده (الرمی) ویشتل یعنی غورزول چي دي کښي د بي ادبی شائبه وه په دي وجه هغوی قرآنی الفاظو ته نظم اووي چي د هغي معنی ده جمع اللؤلؤ فی السلك یعنی موتیان په لړی کښي پیلل او دا ډیر غوره اطلاق دي ځکه چي د قرآن پاک مفاهیمو لره د موتیانو په لړی کښي پیللي شوي دی

**نکته** نظم سره کلام لفظی طرفته اشاره ده چي حادث دي او معنی سره کلام نفسی طرفته اشاره ده چي قدیم دي قرآن د الله تعالی په صفاتو او امر ونواهیاتو باندي مشتمل دی او هغه قدیم دی

**قوله** : وانما تعرف احكام الشرع بمعرفة اقسامها

ماتن ﷺ د نظم او د معنى تقسيم كوى ځكه چې د شريعت د ټولو احكامو (خواه حلت سره متعلق وى يا حرمت سره)، معرفت هغه وخت حاصليږى چې كله مونږ ته د كتاب الله تقسيم معلوم وى.

اقسام وئيل صحيح نه دى ځكه چې د اوسام په ذريعه هيڅ نه كيږى بلكه دلته د تقسيم لاندې متعدد اقسام دى د تثنيه صيغه (اقسامهما) راوړلو سره يې بيا تنبيه اوكړه چې دا تقسيمات د نظم او معنې دواړو دى تقسيم كنبي د لفظ رعايت په دې حيثيت سره دې چې هغه په معنى باندې دلالت اوكړى

**قوله** : وذلك اربعة

په تقسيمات اربعه كنبي د آسان ضبط په وجه سره وجه دحصر بيانول زيات مناسب دى

**وجه د حصر** : كتاب الله كنبي به بحث يا د معنى نه وى يا به نهٔ وى كه د معنى نه بحث وى نو تقسيم رابع دې او كه د لفظ نه بحث وى نو دحيثياتو اعتباربه وى چې درې دى يا خو به د لفظ نه بحث معنى موضوع له كنبي د استعمال په اعتبار سره وى يا د ظهور او دخفاء د معنې په اعتبار سره كه د استعمال په اعتبار سره وى نو تقسيم ثالث دې او كه بحث د ظهور او اخفاء په اعتبار سره وى نو تقسيم اول ، كه د دلالت په اعتبار سره وى نو دلالت ثانى بيا د هر تقسيم څو قسمونه دى چې د هغې سان ترتيب سره وړاندې راروان دې.

**قوله** الاول فی وجوه النظم صیغة ولغة

وړومبي تقسيم د نظم په اعتبار سره د اقسامو او انواع د وضع په بيان کښې دې چې لفظ د يو معنى د پاره وضع شوې دې يا د ډيرو معنو د پاره . صيغه او لغت د وضع نه کنايه دى

**اشکال** لغت په ماده او هيئت دواړو باندې مشتمل دې او صيغه صرف هيئت ته وئيلې کيږی او لغت دواړو ته شامل دې نو صيغه يې ولې ذکر کړه ؟

**جواب** دلته يې صيغه دلغت په مقابله کښې ذکر کړې ده په دې وجه به اوس د لغت نه صرف ماده او دصيغه نه به صرف هيئت مرادوی

**اعتراض** لغت د صيغه د پاره اصل او اساس دې او اصل مقدم وی نو صيغه ولې مقدم کړې شوې ده ؟

**جواب** دلته مقصود اصل اساس او فرع نه دی بلکه زمونږ بحث عموم مخصوص سره دې او د صيغې تعلق د لغت نه زيات د عمو خصوص سره دې په دې وجه دا مقدم کړې شو ـ

**قوله** وهی اربعة الخاص والعام والمشترک والمؤول

د تقسيم اول څلور قسمونه دی چې د هغې وجه دحصر دا ده.

**د اقسام اربعه بيان په وجه د حصر کښې**

لفظ د دواړو حالو نه خالی نه دې يا خو به په معنی واحد باندې دلالت کوی ـ په ډيرو معانو باندې که لفظ په واحد معنی باندې دلالت اوکړی نو بيا دوه صورتونه دی يا خو به دلالت علی سبيل الانفراد عن الافراد وی يا مع الاشتراک بين الافراد که اول

وی نو خاص دي او كه ثاني وي نو عام دي دغه شان كه لفظ په ډيرو معانو باندي دلالت كوي نو يا خو به معاني متعدده كښي يو په طريقه د تاويل سره راجح كولي شي يا نهٔ . كه يو معني ته ترجيح حاصل نه ده نو مشترك دي ورنه مؤول دي .

**قوله** : والثاني في وجوه البيان بذلك النظم

دويم تقسيم د نظم د بيان په طريقو باندي مشتمل دي يعني دا كتلي كيږي چي لفظ په خپله معني باندي د ظهور معني په اعتبار سره دلالت كوي يا خفاء معني سره او دا چي د لفظ معني ظاهريږي كله او څنګه او مخفي كيږي كله او څنګه ؟ نيز كه په معني كښي خفا وي نو دا خفا ادني تامل سره رفع كيدي شي يا نهٔ

**قوله**: وهي اربعة ايضاً الظاهر والنص والمفسر والمحكم

تقسيم ثاني كښي دوه امور ملحوظ دی :

(۱) ظهور د معني او (۲) خفاء د معني .

بيا په اعتبار د ظهور د معني څلور قسمونه دی دغه شان په اعتبار د خفاء د معني هم څلور قسمونه دی څنګه چي ماتن رحمه الله فرمائی

**قوله** : ولهذه الاربعة اربعة تقابلها

**د ظهور معنی اقسام په مينځ کښي وجه د حصر**

كه د لفظ معني ظاهره وي نو كتلي به شي چي په دي كښي د تاويل احتمال شته كه نه كه د تاويل احتمال وي نو دوه صورتونه دی د لفظ د معني ظهور صرف د صيغي په وجه سره به وي يا د څه بل عارض په وجه كه اول وي نو ظاهر او كه ثاني وي نو نص دي دغه شان كه د تاويل احتمال نه وي نو بيا دوه حالونه دی يا خو به

نسخ قبلوي يا نه كه نسخ قبول كړي نو مفسر دي ورنه محكم دي

**نكته** : د تقسيم اول په ټولو اقسام كښې خپل مينځ كښې تقابل وو چې كوم خاص دې نو هغه عام نه دي او چې كوم مشترک دې نو هغه مؤول نه دي ليكن د تقسيم ثاني په دې څلورو قسمونو كښې هيڅ تباين نشته بلكه ادنى په اعلى كښې موندلې كيږى ځكه چې د دې مقابل مزيد څلور اقسام دى

**د خفاء د معنى په اعتبار سره د اقسامو وجه د حصر**

كه د لفظ په معنى كښې خفاء وى نو دا خفاء به يا د څه عارض په وجه وى يا به صرف د صيغې په وجه سره وى كه خفاء د څه عارض په وجه وى نو هغه خفى دي ورنه كتلې به شى چې خفاء تامل سره لرې كيږى يا نه كه خفا تاويل سره لرې كيږى نو دا مشكل دى او كه خفاء تاويل سره نه لرې كيږى نو د دواؤ حالو نه خالى نه ده يا به د شارع له طرفه د بيان اميد او توقع وى يا نه كه اول وى نو مجمل او كه ثاني وى نو متشابه دي

**نكته** : د ظاهر مقابل خفى . د نص مقابل مشكل . د مفسر مقابل مجمل او د محكم مقابل متشابه دي ځان پوهه كړه

**قوله** والثالث فى وجوه استعمال ذلک النظم

په تقسيم ثالث كښې د لفظ استعمال ملحوظ دي چې آيا خپله معنى موضوع له كښې استعماليږى يا نه نيز كه معنى موضوع له كښې مستعمل دي نو كوم حيثيت سره دي ؟ د انكشاف معنى سره دي يا د استتار په معنى سره.

**قوله**: وهی اربعة ايضا الحقيقة والمجاز والصريح والكناية

په دې اقسام اربعه کښې وجه د حصر دا بيان شوې ده چې کتلې به شی چې لفظ په معنی موضوع له کښې مستعمل دې يا نه که اول دې نو حقيقت او که ثانی دې نو مجاز بيا خواه لفظ حقيقه وی يا مجاز د دواړو حالو نه به خالی نۀ وی يا به د انکشاف د معنې سره مستعمل وی يا نۀ که اول وی نو صريح او که ثانی وی نو کنايه ده

**نکته**: چونکه د صريح او د کنايه تعلق حقيقت او مجاز دواړو سره دې په دې وجه اهل اصول دلته دوه طريقې خپلې کړې دی

(۱) د علامه فخرالاسلام بزدوی رحمه الله طريقه ... هغوی د تقسيم ثالث عنوان په دواړو جزونو باندې مشتمل کړې دې (القسم الثالث فی وجوه استعمال ذلك النظم وجريانه فی باب البيان) د حقيقت او د مجاز تعلق د وجوه استعمال سره او د صريح او کنايه تعلق د جريان فی باب البيان سره دې

(۲) د صاحب توضيح اسلوب .... هغوی د تقسيم ثالث اولاً دوه قسمونه جوړ کړې دی: (۱) حقيقت (۲) او مجاز۔ بيا يې صريح او کنايه د حقيقت او مجاز قسم ګرځولې دې هم دا غوره ده ځکه چې د وجه د حصر نه واضحه ده

**قوله**: والرابع فی معرفة وجوه الوقوف علی المراد

تقسيم رابع د هغې طريقو په بيان کښې دې چې د هغې په ذريعه مجتهد او مستدل د نظم د مراد نه واقف وی۔

**قوله** وهي اربعة ايضاً الاستدلال بعبارة النص وباشارته وبدلالته وباقتضائه

**وجه د حصر** : د مستدل د استدلال هم دوه صورتونه دى يا به هغه د نظم نه استدلال كوى يا د معنى نه كه د مستدل استدلال د نظم نه وى نو كتلې به شى كه نظم دې د پاره چلولې شوې وى (صراحتاً د نظم د عبارت نه استدلال دې) نو دا عبارت النص دې ورنه اشارة النص . كه استدلال د معنى نه وى نو دوه صورتونه دى كه دا د لغت په اعتبار سره د دې نظم مفهوم دې نو دلالت النص ورنه اقتضاء النص دې

**قوله** وبعد معرفة هذه الاقسام قسم خامس يشمل الكل

ماتن رحمه الله فرمائى چې د نظم خو بنيادى طور باندې دا څلور قسمونه دى چې د دې نه بيا وړاندې شل (۲۰) قسمونه جوړيږى د آسان ضبط د پاره خاكه اوګورئ ـ

د اهل اصول په نزد مبحث فيه هم دا اقسام دى ليكن پنځم تقسيم هم ښودلې شوې دې چې د هغې تعلق په مذكوره شلو كښې هر قسم سره دې ـ

**قوله** وهو اربعة ايضا معرفة مواضعها ومعانيها وترتيبها واحكامها ـ

د هر يو قسم مختصر مطلب درجه ذيل دې

(۱) **معرفة مواضع نظم** : د دې نه مراد دې د اقسام مذكوره مواد اشتقاق لغوى معنى باندې پوهيدل ـ

(۲) **معرفة معانی نظم** : د دې نه مراد دې د اقسام مذکوره مفهومات اصطلاحيه يعنی اصطلاحی معنی پيژندل۔

(۳) **معرفة ترتيب نظم** : د دې نه مراد دې چې که د يو تقسيم په اقسامو کښې تعارض وی نو کوم يو به مقدم او کوم يو به مؤخر کيږی۔

(۴) **معرفت احکام نظم** : د نظم احکام په درې قسمه دی قطعی . ظنی او واجب فی التوقف۔

چې کله د هر تقسيم هر قسم سره دا څلور واړه اقسام ملاؤلې شی نو ټول به اتيا (۸۰) اقسام حاصل شی (۲۰×۴= ۸۰)

**اشکال** : که دا هم د نظم قرآن تقسيم دې نو جمهورو دا ولې نه دې ذکر کړې؟

**جواب**: دا د قرآن تقسيم نه دې بلکه د اقسام قرآن د نومونو يعنی د اسامی تقسيم دې په دې وجه جمهورو په دې باندې صرف نظر کړې دې۔

**اشکال** : صاحب کتاب رحمه الله د جمهورو اتباع ولې نه ده کړې د دې تقسيم د ذکر کولو څه وجه ده؟

**جواب** : صاحب کتاب په اصولو کښې د امام الاصول علامه فخرالاسلام بزدوی رحمه الله متبع دې په دې وجه يې د هغوی په شان ذکر کړې دې

**نکته** : دا حقيقت دې چې مصنف رحمه الله د علامه بزدوی رحمه الله پوره اتباع نه ده ذکر کړې ولې؟

**جواب** : صاحب كتاب په اصولو كښې د امام الاصول علامه فخر الاسلام بزدوی رحمه الله متبع دې په دې وجه یې د هغوی په شان ذكر كړې دې

**نکته** : دا حقیقت دې چې مصنف د علامه بزدوی رحمه الله پوره اتباع نه ده كړې ځكه چې هغوی خو پوره كتاب كښې په هر قسم بیان كښې د دې څلورو قسمونو مكمل التزام كړې دې او مصنف رحمه الله معانی او احكام ذكر كړې دی ترتیب هم چرته شته او چرته نشته لیكن مواضع یې ټول كتاب كښې چرته هم نه دی ذكر كړې

# د خاص بحث

**قوله** اما الخاص فكل لفظ وضع لمعنى معلوم على الانفراد

**د خاص اصطلاحي تعريف**

كل لفظ وضع لمعنى معلوم على الانفراد

**ترجمه** خاص هر هغه لفظ دې چې هغه د معنی معلوم د پاره وضع كړې شوې وی انفرادی طور

**فوائد قيود** : لفظ په منزله د جنس دې او وضع دا قید احترازی دې د دې نه لفظ مهمل خارج شو د معلوم نه مراد كه (معلوم المراد) وی نو د دې نه مشترك خارج شو ځكه چې د دې مراد معلوم نه وی اوكه د دې نه مراد (معلوم البیان) وی نو بیا دا قید احترازی نه دې

بلکه د علی الانفراد قید سره به مشترک خارج شی

**نکته** : د علی الانفراد قید د عام او مشترک د تولو د احتراز دپاره دي په دي طور سره چې مشترک کښې نوري معاني مونـدلي کيږی او عام کښې خو افراد هم وی.

## وهو اما ان يكون خصوص الجنس او خصوص النوع او خصوص العين كانسان و رجل وزيد

**د خاص قسم** : د خاص دري قسمونه دی

(۱) خصوص الجنس (۲) خصوص النوع (۳) خصوص العين

**د هر يو قسم مختصر وضاحت**

**خصوص الجنس** : د خصوص الجنس مطلب دا دي چې د معنـې په اعتبار سره د دې جنس خاص وی اګرچه پـه کومـو افـرادو باندې صادق راځی هغه متعدد وی لکه انسـان پـه دې کښې رجل او امراة دواړه داخل دی او د دواړو اغراض هم مختلف دی

**خصوص النـوع** : د خصوص النوع مطلب دا دي چې د معنـې پـه اعتبـار سـره د دې نـوع خـاص وی اګرچـه پـه کومـو افـرادو بانـدې صادق راځی هغه متعدد وی لکه د رجل اطلاق په داسې فرد باندې کيږی چې د هغې تولو غرض يو دې

**خصوص العين** : د خصوص العين مطلب دا دي چې هغـه سـړې د معين دپاره وی او د معنې په اعتبار سره په ذات مخصوص باندې دلالت کوی لکه زيد د معلوم سړی علم دې -

## د نوع او جنس په تعریف کښې

### د مناطقه او د فقهاء کرامو اختلاف

مناسب دا ده چې د تعریف ذکر کولو نه وړاندې د دې اختلاف وجه تحریر کړې شی چې هغه دا ده چې د مناطقه حضراتو مبحث د یو څیز حقیقت او کنه ده لهذا هغوی تعریف کښې دا څیز مدنظر لری او علماء فقه د یو څیز د غرض نه بحث کوی نو د دې په بناء هغوی په تعریف کښې هم د اغراض لحاظ ساتی ـ

**د مناطقه د جنس تعریف**

کلی مقول علی کثیرین مختلفین بالحقائق دون الاغراض

**د اهل اصول په نزد د جنس تعریف**

کلی مقول علی کثیرین مختلفین بالاغراض دون الحقائق

**د مناطقه د نوع تعرف**

کلی مقول علی کثیرین متفقین بالحقائق دون الاغراض

**د اهل اصول د نوع تعریف**

کلی مقول علی کثیرین متفقین بالاغراض دون الحقائق

**ثمره د اختلاف** : د تعریفونو د دې اختلاف په بناء به تاسو وینئ چې ډیرې کلیانې چې د مناطقه په نزد نوع دی نو هغه به د اهل اصول په نزد جنس وی او دغه شان ډیر کلی به د اهل اصول په نزد نوع وی لیکن د مناطقه په نزد به هغه جنس وی ـ

**نکته** : صاحب کتاب د تقسیم مقسم طرفته ضمیر راجع کړی دی

چې د هغې مرجع سرسری نظر کښې (هم خاص) محسوسیږی د دې په بناء باندې عرف کښې هم دا وئیلې کیږی چې دا د خاص قسم دې حالانکه حقیقت کښې د ضمیر مرجع خاص نه ده بلکه هغه مفهوم دې چې د هغې ذکر د خاص په تعریف کښې ضمناً شوې دې الغرض دا د خصوص تقسیم دې څنګه چې د اقسامو د نوم نه هم ظاهره ده۔

**قوله** : وحكمه ان يتناول المخصوص قطعاً ولا يحتمل البيان لكونه بيناً ۔

**د خاص حکم** : د خاص حکم دا دې چې دا مخصوص ته قطعی طور باندې شامل وی او د غیر احتمال نه لری مثلاً عمرو شاعر نه به صرف عمرو شاعر مراد وی ځکه چې دواړه خاص دی دویمه څه معنی مثلاً زید ، بکر . یا علم او خطابت وغیره معنو په دې کښې هیڅ شائبه نشته

د خاص دویم حکم دا دې چې دا د بیان احتمال نه لری ځکه چې دا په خپله واضح وی د بیان نه مراد تفسیر دې باقی پاتې شو بیان تقریر او بیان تبدیل او تغیر نو دا د هغې احتمال لری

**تفریعات (د خاص په حکم ثانی باندې)**

مصنف رحمه الله په دې باندې څلور تفریعات کړې دی چې خاص د بیان احتمال نه لری

**قوله** : فلا يجوز الحاق التعديل بامر الركوع والسجود على سبيل الفرض ـ

**ړومبی تفریع** : امام شافعی او امام ابویوسف صاحب رحمهما الله

فرمائی چې تعدیل د ارکانو فرض دي او هغوی د حدیث اعرابی نه مستدلال کوی زمونږ په نزد تعدیل ارکان واجب دي زمونږ دلیل دا دي چې قرآن پاک کښې حکم دې (وارکعوا وسجدوا ـــ الخ) رکوع او سجده دواړه خاص الفاظ دی د یو معنی معلوم دپاره وضع کړې شوې دی د رکوع معنی ده (انحناء عن القیام) او د سجدې معنی ده وضع الجبهة علی الارض) خاص چونکه د بیان احتمال نه لری په دې وجه دا حدیث د خاص دپاره بیان نه شی جوړیدې

که مونږ د دې حدیث په وجه سره تعدیل د ارکانو د رکوع او سجدو د حکم سره فرض کړو نو د خبر واحد په ذریعې سره به د کتاب الله د خاص په حکم کښې زیادتی لازم راشی او دا یو مسلمه امر دې چې د خبر واحد په ذریعې سره د کتاب الله په حکم کښې یعنی په خاص کښې زیادتی کول جائز نه دی لهذا چې څه د کتاب الله نه ثابت دی یعنی صرف رکوع او سجده نو هغه مونږ د کتاب الله د وجې نه فرض کړل او چې کوم د سنت (یعنی خبر واحد) نه ثابت دی یعنی تعدیل د ارکانو نو هغه د خبر واحد په وجه سره مونږ واجب کړل۔

**قوله وبطل شرط الولاء والترتیب والتسمیة والنیة فی الوضوء**

**دویمه تفریع** زمونږ په نزد په اودس کښې د ولاء . ترتیب ، تسمیه او د نیت شرط لګول باطل دی بلکه دا څیزونه سنت دی

او امام مالک رحمه الله فرمائی چې ولاء فرض ده یعنی اندامونه دا سې وینځل چې د یو اندام د اوچیدلو نه مخکښې دویم اندام

اووينځی دليل دا دي چې حضور ﷺ پـه دې بانـدې هميشکی کړي دی د امام شافعی رحمه الله فرمائی چې نيت او ترتيب شرط دي ترتيب دپاره د هغوی دا دليل دي لايقبل الله صلوة امرا........الخ يعنی الله تعالی د هغې سړی مونځ نه قبلوی چې د انداموتو په وينځلو کښې د ترتيب لحاظ اونه ساتی اوکما قال عليه السلام او د نيت دپاره دا دليل دي انما الاعمال بالنيات يعنی د ټولو عملونو د صحت دارومدار په نيتونو باندې دي

اهل ظواهر وائی چې د اودس دپاره تسميه شرط ده دليل دا دي چې لاوضوء لمن لم يسم

زمونږ دليل دا دي چې الله تعالی مونږ ته اودس کښې د غسل او د مسح حکم کړې دي لکه څنګه چې الله تعالی فرمائی اذا قمتم الی الصلوة فاغسلوا وجوهكم وايديكم الی المرافق وامسحوا برؤسكم وارجلكم الی الكعبين

او دا دواړه الفاظ يعنی غسل او مسح خاص دی د معنی معلوم دپاره وضع کړې شوې دی که مونږ دې سره د دې نورو څلورو څيزونو قيد هم اولګوو نو دا د دې دپاره شرط خو نه شی جوړيدې ځکه چې دا په خپله بين دی نو دې سره به د كتاب الله نسخ لازم راشی اود كتاب الله نسخ کول په خبرواحد سره جائز نه دی لهذا مونږ چې اووئيل چې د كتاب الله نه ثابت دی يعنی غسل د اندامونو او مسح نو دا فرض دی او چې کوم څه د حديث نه ثابت دی يعنی ولاء، ترتيب او تسميه وغيره نو دا سنت دی په اجماع سره ۔

**قوله** : والطهارة فى اية الطواف

**دريمه تفريع**: د امام شافعي رحمه الله په نزد د بيت الله شريف په طواف کښې او دس شرط دې دليل دا حديث دې چې نبی اکرم ﷺ فرمائيلي دی چې د بيت الله شريف طواف کول مونځ دې او څنګه چې مونځ د اودس نه بغير نه صحيح کيږی نو دغه شان به طواف هم د اودس نه بغير نه صحيح کيږی د حديث الفاظ دا دی الطواف بألبيت صلوة۔

**د احنافو دليل** : مونږ وايو چې کلام پاک کښې د وليطوفوا الفاظ دی او د دې ماده اشتقاق طواف لفظ خاص دې چې د دې معنی ده چکر لګول او د حرم کعبه نه ګيرچاپيره چکر لګول که مونږ دې خاص کښې د طهارت شرط اولګوو نو دا خو د هغې دپاره بيان نه شی جوړيدې ځکه چې هغه په خپله بين دې بلکه د هغې منسوخ کيدل به لازم راشی او دا خبره باطله ده لهذا مونږ وايو چې نفس طواف خو فرض دې ليکن د طواف په موقع باندې اودس کول واجب دی۔

د وجوب ثمره دا ده چې د دې په پريخودلو سره به په طواف کوونکی باندې دم واجب شی

**قوله** والتاويل بالاطهار فى اية التربص

**خلورمه تفريع** . په قرآن پاک د مطلقه ښځې د عدت په بيان کښې د ثلاثة قروء الفاظ راغلي دی د امام شافعي رحمه الله په نزد د قروء نه مراد طهر دې د هغوی دليل دا آيت دې فطلقوهن لعدتهن چې په دې کښې لام د وخت دپاره دې او د طلاق وخت خو بالاتفاق طهر دې نو

د عدت وخت هم طهر کیدل پکار دی

امام صاحب او تول احناف فرمائی ﴿ والمطلقات يتربصن بانفسهن ثلاثة قروء ﴾ کښې لفظ ثلاثة دې او دا خاص دې او د معنی معلوم دپاره وضع کړې شوې دې او هغه مافوق الاثنين دې او مادون الاربعة د خاص په دې لفظ کښې د زیادتی او د نقصان احتمال نشته او که مونږ ترې طهر مراد واخلو نو دې کښې به کمی یا زیادتی کیږی ځکه چې په کوم طهر کښې یې طلاق ورکړې دې که مونږ هغه شمار نه کړو نو زیادتی به راشی چې درې طهره مستقل او د طهر هغه حصه چې په کوم کښې طلاق ورکړې شوې دې او که مونږ په کښې دا طهر هم شمارو چې په کوم طهر کښې طلاق ورکړې شوې دې نو بیا هم د قرآن او د خاص په لفظ یعنی په ثلاثة باندې عمل نه راځی ځکه چې ښکاره خبره ده چې کوم طهر کښې طلاق ورکړې شوې دې د هغې څه نه څه حصه تیره شوې ده لهذا دواړو صورتونو کښې خرابی راځی اول صورت کښې په ښځه باندې د عدت اوږدولو نقصان لازم راځی او دویم صورت کښې د کتاب الله په خاص باندې یعنی په ثلاثة باندې عدم عمل لازم راځی نو معلومه شوه چې د قروء نه مراد طهر اخستل صحیح نه دی په دې وجه به ترې حیض مراد اخستلې شی ځکه چې که د قروء نه مراد حیض واخستلې شی نو د ثلاثة نه به نۀ کم وی او نۀ به زیات وی

بعضې خلق وائی چې امام شافعی رحمه الله باندې د اعتراض کولو دپاره د لفظ ثلاثة ضرورت نشته بلکه دا اعتراض خو په لفظ قروء سره هم کیږی ځکه چې ثلاثة د جمع لفظ دې او اقل د جمع درې وی لیکن دا خبره صحیح نه ده او دا په دې وجه چې بعضې وخت

کنبي د جمع اطلاق د دريو نه په کمو باندي هم کيږي لکه الحج اشهر معلومات دلته اشهر د جمع صيغه ده حالانکه د حج مياشتي دري نه دي بلکه دوه مياشتي او لس ورځي دي

**امام شافعي ﷫ ته جواب** د امام شافعي ﷫ د دليل جواب دا دي چي لعدتهن کښي لام د وخت د پاره نه دي بلکه لام د تعليل دپاره دي يعني هغوی ته طلاق ورکړئ په داسي طريقي سره چي هغوی دپاره عدت تيرول په آساني سره ممکن وی او دا به هله وی چي داسي طهر کښي طلاق ورکړي شي چي هغي کښي بي وطی نه وی کړي ځکه چي که داسي طهر کښي طلاق ورکړی چي هغي کښي وطی کړي ده نو پته نه لګی چي دا حامله ده که نه او د دي عدت وضع حمل دي يا دري قروء نو د عدت شمار به مشکل شی دغه شان حيض کښي هم طلاق ورکول پکار نه دی

**قوله** ومحللية الزوج الثاني بحديث العسيلة لا بقوله حتى تنكح زوجاً غيره ـ

د امام شافعي ﷫ له طرفه په مونږ باندي دوه اعتراضونه کيږي

(۱) مسئله دا ده چي کوم سړي خپلي ښځي ته دري طلاقه ورکړي او هغه د حلاله کولو نه پس دوباره خپل خاوند سره نکاح اوکړی نو بالاتفاق به هغه خاوند د دريو طلاقونو مالک شی ليکن مخکښي خاوند يو يا دوه طلاقونه ورکړي دی او د حلالي نه پس دوباره دې سره نکاح اوشوه نو د امام محمد او امام شافعي ﷫ په نزد په دريو طلاقو کښي چي کوم پاتي شوي دی نو اولنی خاوند ته به صرف دهغي اختيار وی او د امام ابويوسف او امام ابوحنيفه ﷫

په نزد به دا نه د دريو طلاقو اختيار وي څکه چې دويم خاوند دې ښځې لره د اولني خاوند دپاره د سرنه حلاله کړې ده يعنې په نوې حل سره يې حلاله کړې ده لهذا په اوله نکاح کښې يې چې کوم طلاق ورکړې وو د هغې به هيڅ اعتبار نه وي

د تمهيدي کلماتو نه پس اوس اصل اعتراض طرفته راځئ چې د هغې حاصل دا دې چې امام شافعي رحمه الله په دې باندې اعتراض کړې دې چې د حلاله باره کښې کوم آيت دې فان طلقها فلاتحل له من بعد حتى تنكح زوجاً غيره۔

په دې کښې لفظ د حتی خاص دې د غايت او د انتهاء د معنې سره يعنې د دې نه دومره معلومه شوه چې دويم خاوند سره نکاح کولو سره به اولنې حرمت ختم شي ليکن د دې نه دا خبره سمجهه کښې نه راځي چې هغه ښځه به د زوج اول دپاره په حل جديد سره حلاله وي نو چې کوم صورت کښې مغيا موندلې کيږي يعنې درې طلاقه چې هرکله په دې کښې زوج ثاني د زوج اول دپاره محلل نه جوړيږي نو کوم ځاې کښې مغيا نه موندې کيږي هلته به هغه څنګه محلل جوړ شي۔

## د مذکوره اعتراض د احنافو له طرفه جواب:

د امام ابوحنيفه رحمه الله له طرفه مصنف رحمه الله دا جواب ورکړو چې د زوج ثاني محلل نه کيدل مونږ د حتى تنكح نه نه ثابتوو بلکه دا مونږ د حديث عسيله نه ثابتوو دا حديث مشهور دې او د دې حديث نه امام شافعي رحمه الله هم د حلالې دپاره د وطي شرط ثابتوي نو مونږ اووې چې د دې حديث په دلالة النص سره د وطي شرط

ثابتیږی دغه شان ددې د اشارة النص نه هم د زوج ثانی محلل کیدل ثابتیږی ځکه چې رسول الله ﷺ امراة رفاعه رضی الله عنها ته دا اونهٔ وئیل چې ان تنتهی حرمتك که تهٔ غواړې چې ستا د زوج اول سره حرمت ختم شی بلکه داسې یې اوفرمائیل ان تعودی (که تهٔ غواړې چې اول خاوند ته واپس شې او د عود معنی ده اولنی حالت ته واپس کیدل او اولنی حالت کښې د زوج اول دپاره د دریو طلاقو اختیار ثابت وو نو اوس به هم ثابت وی

مقصد داچې هرکله د دې نص نه په دې صورت کښې حل ثابتیږی چرته چې د حل څه وجود هم نشته ځکه چې حضرت رفاعه رضی الله عنه خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکړې وو او د طلاق مغلظه نه پس د حل هیڅ یو صورت نه پاتې کیږی نو دې صورت کښې خو به حل په طریقه اولی سره ثابتیږی چرته چې حل ناقص طریقې سره موندلې کیږی ځکه چې دلته پوره درې طلاقه واقع شوې نه دی

**قوله** : **وبطلان العصمة عن المسروق بقوله جزاء لا بقوله فاقطعوا ـ**

د امام شافعی رحمه الله د طرفه یو بل اعتراض واردیږی د دې دپاره هم ؟ تمهید ضرورت دې هغه دا دې چې که غلا اوکړی او د غلا په وجه یې لاس کټ کړې شی او بیا د غلا هغه مال ورسره موجود وی نو بالاتفاق به ترې هغه مال هم واپس اخستلې شی لیکن که ورسره هغه د غلا مال موجود نه وو نو بیا هم امام شافعی رحمه الله فرمائی چې اګرچه مال هلاک شوې وی څنګه چې ورته اصطلاح کښې هلاک وئیلې شی یا دې غل هلاک کړې وی نو دې

دواړو صورتونو کښې به ترې تاوان اخستلې شي لیکن د هلاکیدو
په صورت کښې د امام صاحب په نزد ضمان او تاوان نشته البته د
امام صاحب نه یو روایت دې چې که هغه مال قصداً عمداً هلاک
کړې شوې وی نو بیا به ترې ضمان اخستلې شی دا روایت د امام
صاحب ﷫ د مایه ناز شاګرد حضرت حسن بن زیاد ﷫ دې د امام
صاحب د دلیل حاصل دا دې چې په مال کښې دوه صفتونه دی
عصمت او ملکیت چې کوم وخت غل غلا کوی نو د هغهٔ د غلا نه لږ
وخت وړاندې د مالِ مسروق عصمت د مالک نه باطل شی او هغه
منتقل شی الله تعالی طرفته ګویا که چې غل د الله تعالی په
عصمت کښې جرم کړې دې او الله تعالی ته د ضمان او د تاوان هیڅ
ضرورت نشته اوس اصل اعتراض طرفته راشئ

**اعتراض** : بیا تاسو دا ولې وایئ چې که مال موجود وی نو دا مالِ
مسروق به مالک ته واپس کولې شی ؟

**د مذکوره اعتراض د احنافو له طرفه جواب** : د دې جواب دا
دې چې اګرچه د مال عصمت باطل شوې دې لیکن د مال ملکیت
خو باقی دې په دې وجه دا واپس کول ضروری دی

**د امام شافعی ﷫ اعتراض** :

امام شافعی ﷫ اعتراض کوی چې د غلا په باب کښې د
آیت سرقه نه استدلال کیږی یعنی ﴿السارق والسارقة فاقطعوا
ایدیهما﴾ نه او د فاقطعوا ماده اشتقاق (مصدر) قطع لفظ خاص دې
چې د معنی معلوم دپاره وضع کړې شوې دې یعنی لاس لره د تن نه
جدا کول لیکن دا لفظ په دې خبره باندې دلالت نه کوی چې د مال

عصمت د مالک نه باطل شو او الله تعالی طرفته منتقل شو که تاسو داسې وایئ نو دا په کتاب الله باندې زیادتی ده

**جواب** : د دې جواب دا دې چې مونږ د باطل کیدو دپاره استدلال د (فاقطعوا) نه نهٔ کوو بلکه د جزاء نه کوو ځکه چې د جزاء لفظ چې کله مطلقاً د عقوبات په بیان کښې راشی نو د دې نه مراد هغه جزاء وی چې د الله تعالی د حق په وجه سره واجب شوې دی او د الله تعالی د حق په وجه به دا جزا هله وی چې کله دا جرم د الله تعالی په عصمت کښې شوې وی د دې جواب په ضمن کښې یو څو نکات نور هم بیان شوې دی چې د هغې خلاصه دا ده چې آیت کښې لفظ د جزاء مطلق ذکر کړې شوې دې نو د جزاء نه به مراد جزاء کامل وی او هغه صرف قطع ده د ضمان ضرورت نشته او د جزاء نه جزاء کامل مراد اخستلو دپاره قاعده مسلمه ده **المطلق اذااطلق یرادبه الفرد الکامل** او مزید دا چې (جزاء) مفعول مطلق دې د جزی یجزی نه بمعنی کافی کیدل، نو ګویا دې خبرې طرفته اشاره ده چې هم دا سزا کافی ده د ضمان ته څه ضرورت نشته که د لاس کټ کولو سره سره ضمان هم واجب کړې شی نو د جزاء بمعنی کافی مقتضی به باطل شی ۔

**نکته** په څلورمه تفریع باندې د شوافعو له طرفهٔ وارد شوې یو څو اعتراضات او د هغې د جواباتو ذکر کولو نه پس علامه عبدالله نسفی رحمه الله د خ ص په حکم باندې پنځمه تفریع بیان فرمائی ۔

**قوله** وذلک صح ایقاع الطلاق بعدالخلع

**پنځمه تفريع** : مصنف رحمه الله د خاص په حکم باندي پنځمه تفريع کوی د دي دپاره د تمهيد ضرورت دي .

**تمهيدي کلمات** . امام شافعی رحمه الله فرمائی چي خلع نکاح لره فسخ کوی لهذا د خلع نه پس طلاق نه واقع کيږی ليکن مونږ وايو چي خلع نکاح لره نه فسخ کوی بلکه د نورو طلاقونو په شان دا هم يو طلاق دي لهذا د خلع نه پس طلاق واقع کيدي شی زمونږ استدلال د قرآن پاک د دي آيت کريمه نه دي : فان طلقها فلاتحل له من بعد حتی تنکح زوجاً غيره الخ ) ځکه چي دلته اول فرمائيلي شوي دی ( الطلاق مرتان ) يعنی طلاق رجعی دوه طلاقه دی د دي نه پس يې د خلع مسئله اوفرمائيله , فان خفتم الايقيما حدودالله ) نو د دي ځايې نه معلومه شوه چي په خلع کښي د ښځي کار فديه ورکول دی او د سړی کار طلاق ورکول دی د خلع نه پس يې دريم طلاق ذکر کړو نو معلومه شوه چي د خلع نه پس طلاق واقع کيدی شی

**د شوافعو جواب** :

امام شافعی رحمه الله فرمائی چي دفان طلقها الخ تعلق د الطلاق مرتان سره دي او په مينځ کښي د خلع ذکر کول جمله معترضه ده

**زمونږ له طرفه جواب** : زمونږ دليل دا دي چي (فا) لفظ خاص دي دا د معنی مخصوص دپاره وضع کړي شوي ده او هغه تعقيب دي نو چي هرکله دا طلاق د خلع نه پس ذکر کړي شو نو د خلع نه پس هم طلاق جائز کيدل پکار دی ۔

**اعتراض** : اعتراض کیږی چې دغه شان خو به څلور طلاقه شی

**جواب** : خلع څه مستقل طلاق نه دې بلکه دا هم د دغې طلاقونو په ضمن کښې دې ګویا الله تعالی داسې فرمائیلې دی چې طلاق دوه دی خواه هغه دواړه رجعی وی یا دواړه د خلع په ضمن کښې یعنی بائنه وی بیا د دې دواؤ طلاقو نه پس که طلاق ورکوی نو ښځه به د دې خاوند دپاره حلاله نه پاتې کیږی

**اعتراض** : اعتراض کیږی چې د دې نه خو دا خبره لازم راځی چې د عدمِ احلال حکم صرف د هغې طلاق وی چې کوم د خلع نه پس دې؛ حالانکه دا صحیح نه ده

**جواب** : جواب دا دې چې د حلالې حکم د هغې طلاق دې چې کوم د دواؤ طلاقو نه پس ورکړې شوې وی خواه هغه دواړه طلاقه د خلع په ضمن کښې وی یا نه وی

**اعتراض** : بیو بل اعتراض کیږی چې د دې ځایې نه دا خبره لازم راځی چې خلع صرف د دواؤ طلاقو نه پس جائز ده فـان خفتم په دې باندې دلالت کوی ځکه چې فاء تعقیبیه ده او د الطلاق مرتان نه پس ده کما قال الله تعالیٰ فان خفتم الا یقیما حدود الله.......الخ

**جواب** : جواب دا دې چې مونږ اووئیل چې خلع څه مستقل طلاق نه دې دا د هغې دواؤ طلاقو په ضمن کښې هم راتلې شی او د هغې نه بغیر هم راتلې شی لیکن دا قول تفصیل هغه وخت دې چې کله مونږ اووایو چې د تسریح باحسان نه مراد ترک مراجعت دې لیکن که د تسریح باحسان نه اشاره دریم طلاق طرفته وی نو بیا به فـان

طلقها دهغې بیان وی او دخلع د مسئلې سره به د دې هيڅ قسم تعلق نه وی مزید تفصیل د کتاب په حاشیه کښې کتلې شی۔

**قوله** : وجب مهر المثل بنفس العقد فى المفوضة

**شپږمه تفریع** : هغه دا ده چې ښځه چې مفوضه وی یعنی چې خپل ولې د مهر نه بغیر ورکړې وی یا یې دا وئیلې وی چې فلامهرلهٰانو د امام شافعی ﷫ په نزد د وطی نه بغیر د دې مهر نه واجبیږی لهٰذا که د وطی کولو نه وړاندې په دې دواړو کښې یو کس وفات شو نو د مفوضه دپاره به مهر واجب نه وی او زمونږ په نزد د مهر نفس وجوب صرف په نکاح کولو سره راځی.او وجوب به دوه څیزونو سره راځی یا خو وطی سره. یا مرګ سره.

**زمونږ دلیل** : زمونږ دلیل د الله تعالی فرمان دې ( واحل لکم ماوراءذلکم.....الخ)دلته ( باء ) لفظ خاص دې چې د معنی معلوم دپاره وضع کړې شوې دې یعنی الصاق چې د هغې حاصل دا دې چې ستاسو د ښځو تلاش کول ستاسو د مالونو سره ملصق کیدل پکار دی بعضو وئیلې دی چې مخکښې بل لفظ د تبتغوادې چې د هغې ماده اشتقاق ( مصدر ) ابتغاء لفظ خاص دې د دې معنی ده طلب په دواړو صورتونو کښې معنی دا جوړیږی چې ښځو لره تلاش کول د مهر سره ملصق کیدل پکار دی اولاً خو به مهر په الفاظو کښې ذکر کړی که داسې نه کوی نو کم ازکم په ذمه خو واجب کیدل پکار دی۔

**نکته** : لیکن دا ټول تفصیل هغه وخت دې چې کله نکاح صحیح وی که نکاح فاسده وی نو بالاتفاق به وطی سره مهر واجبیږی دغه شان

که ښځه په اجاره یا متعه سره حاصلوی نو هم به مهر نه واجبیږی

**قوله** وكان المهر مقدراشرعاً غير مضاف الى العبد

**اوومه تفریع** د امام شافعی رحمه الله په نزد د مهر دپاره څه مقدار مقرر نه دي بلکه کوم څیز چې د ثمن جوړیدو صلاحیت لری نو هغه د مهر جوړیدو صلاحیت هم لری زمونږ په نزد د اکثر څه مقدار نشته لیکن د اقل مقدار مقرر دي چې لس درهمه دي مونږ د الله تعالى د دي قول نه استدلال کوو **قدعلمنامافرضنا....الخ** (فرض) لفظ خاص دي چې د معنى معلوم دپاره وضع کړې شوې دي او هغه تقدیر دي دغه شان. فرضنا) کښې هم (نا) ضمیر متکلم خاص دي او د فرض اسناد متکلم طرفته کول هم خاص دی نو معلومه شوه چې د الله تعالى په علم کښې د مهر مقدار مقرر دي البته په دي مقدار معینه کښې اجمال وو نو هغه نبى کريم ﷺ په حديث مبارک سره واضحه کړو چې **لامهرلاقل من عشرة دراهم**

د احنافو مزید دلائل دا دی چې احناف دي لره قیاس کوی په قطع د ید باندې چې هرکله د لاس کټ کولو د مال مسروقه کم نه کم د لسو درهمو مالیت ضروری دي نو د بضعه مالک جوړیدو دپاره هم کم از کم لس درهمه ضروری کیدل پکار دی مخکښې صاحب کتاب وضاحت کړې دي چې د فرض د معنى په ضمن کښې مونږ چې کوم څه بیان کړې دی نو هغه د فقهاء کرامو په اصطلاح کښې دی او لغت کښې د فرض معنى ده ایجاب او قطع او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دلته د ایجاب والا معنى مراد ده او په دي باندې دوه قرینې دی یو خو دا چې فرض یې متعدی کړو د على په

ذريعې سره لکه څنګه چې الله تعالی فرمائي قدعلمنا ما فرضنا عليهم او قاعده دا ده چې فرض کله متعدی شی په علی سره نو د دې نه ايجاب والا معنی مراد وی .

دويمه قرينه دا ده چې د ما ملکت ايمانهم عطف په علی ازواجهم باندې دې او د وينځو دپاره خو مهر نشته بلکه نفقه ده نو معلومه شوه چې دلته مراد دا دې چې نفقه واجب ده د ښځو دپاره هم او د وينځو دپاره هم ګويا د قد علمنا مافرضنا تعلق د وجوب مهر سره نه دې بلکه د نفقې سره دې

**د احنافو جواب** : مونږ جواب ورکوو چې د علی به ذريعې سره په دې وجه متعدی دې چې فرض دلته د ايجاب معنې ته متضمن دې او د ملکت ايمانهم نه وړاندې دويم فرضنا مقدر دې نو د وړومبی فرضنا معنی ده قدرنا او د دويم فرضنا معنی ده اوجبنا

# د امر بحث

**قوله** : ومنه الامر وهو قول القائل لغيره على سبيل الاستعلاء افعل

**د ماقبل سره ربط** . د خاص هغه قسمونه چې په شريعت کښې ډير استعماليږی په هغې کښې يو قسم امر هم دې د دې ځايې نه ماتن رحمه الله د امر بحث شروع کوی

**د امر تعريف** : قول القائل لغيره على سبيل الاستعلاء افعل

**فوائد قیود**: دې تعریف کښې قول جنس دې ټولو الفاظو ته شامل دې د علی سبیل الاستعلاء قید سره التماس او دعا خارج شو او د افعل قید سره نهی خارج شوه ځکه چې هغې کښې لا تفعل وی۔

د افعل نه مراد هغه لفظ دې چې د معروف طریقې مطابق د مضارع نه مشتق وی شرط صرف دا دې چې د دې نه مقصود فعل لره لازم کول وی او دویم دا چې ویونکې خپل ځان لره لوې ګنړی

**اعتراض**: اعتراض واردیږی چې که د دې امر نه مراد د اهل عربیت اصطلاح مراد وی نو بیا د علی سبیل الاستعلاء قید لګول صحیح نه دی ځکه چې د هغوی په نزد دعا او التماس په امر کښې داخل دی لهذا د دې د ویستلو څه فائده نشته او که د دې نه د اصول فقه والا اصطلاح مراد وی نو بیا به تهدید او تعجیز هم امر کښې داخل شی د تهدید مطلب مخاطب لره ویرول دی کما قال الله تعالی اعملوا ما شئتم او د تعجیز نه مراد عاجز کول دی: کقوله تعالی فأتوا بسورة من مثله.......الخ

**جواب**: مونږ جواب ورکوو چې د دې نه هم د اهل اصول والا امر مراد دې لیکن په دې کښې مقصد صرف استعلاء نه وی بلکه مراد ترې دا سې استعلاء دہ چې په هغې کښې په مخاطب باندې فعل لازم کول هم وی او دا خبره په تهدید او تعجیز کښې نه شی موندلې

**قوله**: ویختص مراده بصیغة لازمة

**د عبارت تشریح**: یعنی وجوب د امر صیغې سره خاص دې او د امر صیغه د وجوب سره خاص ده دې ځایې کښې مصنف رحمه الله د

اشتراک او ترادف نفی کول غواړی ځکه چې دلته (باء) په مختص باندې داخل ده دې صورت کښې به معنی دا وی چې صیغه د امر صرف وجوب سره خاص ده د دې نه به د اشتراک نفی اوشی۔

او د لازمة مطلب به داشی چې وجوب د صیغهٔ امر سره لازم دې یعنی د امر مراد چې وجوب دې هغه د صیغې نه علاوه د په یو بل ځیز سره پوهه کښې نه راځی نو دا به د ترادف نفی شی یا (باء) په مختص باندې داخل ده نو دې صورت کښې به معنی دا شی چې وجوب د صیغې نه علاوه په یو بل ځیز سره فهم کښې نه راځی نو دا به د ترادف نفی شی بیا د لاْزمة نه مراد که لازم اعم وی نو دا به هم د ترادف نفی شی ځکه چې ملزوم خو د لازم نه بغیر نه موندې کیږی لیکن لازم د ملزوم نه بغیر موندې کیږی نو دې صورت کښې به د اشتراک نفی پوهه کښې رانهٔ شی غوره دا ده چې د لازم نه مراد لازم مساوی واخستلې شی نو د دواړو نفی به اوشی

**قولـه**: حتـی لا یکـون الفعـل موجبا خلافاً لـبعض اصْحاب الشافعی رحمۃ اللہ علیہ۔

**د امام شافعی رحمۃ اللہ علیہ مذهب**:

د امام محمد بن ادریس الشافعی رحمۃ اللہ علیہ په نزد څنګه چې وجوب د امر نه په پوهه کښې راځی دغه شان د رسول الله مبارک ﷺ د فعل نه هم پوهه کښې راځی لیکن زمونږ په نزد صرف د نبی علیہ السلام په فعل سره وجوب پوهه کښې نه راځی دا اختلاف صرف داسې افعالو کښې دې چې نهٔ د پیغمبر علیہ السلام نه سهواً شوې وی او نه ترې طبعاً شوې وی او نهٔ هغوی ﷺ سره مخصوص وی مثلاً

وجوب تهجد وغيره چې هغه د نبی علیه السلام مبارک سره خاص دی

**قوله** : للمنع عن الوصال وخلع النعال

**د احنافو دليل** : زمونږ دليل دا دې چې صحابه کرامو رضی الله عنهم نبی علیه السلام په مسلسل روژو باندې اوليدو نو هغوی هم روژې نيول شروع کړل نو حضور علیه السلام منع اوفرمائيله او وې فرمائيل چې ايکم مثلی يطعمنی ربی ويسقينی ؟په تاسو کښې څوک زما په شان کيدې شی ماته خو په هميشه روژه نيوو کښې هم الله تعالی خوروی او څکوی مراد دا وو چې تاسو په صوم داؤدی باندې عمل اوکړئ زما د فعل اتباع په تاسو باندې واجب نه ده

دغه شان نبی علیه السلام يو ځل مانځهٔ کښې خپلې څپلۍ مبارکې اوويستلې نو صحابه کرامو رضی الله عنهم هم خپل چپل ويستل شروع کړل نو حضور علیه السلام اوفرمائيل چې تاسو داسې ولې اوکړل او د خپلو چپلو د ويستلو وجه يې هم بيان اوفرمائيله چې زما په چپلو کښې څه څيز لګيدلې وو که داسې وی خو تاسو هم اوباسئ ورنه ويستل ضروری نه دی که د نبی علیه السلام فعل د وجوب دپاره وو نو هغوی به صحابه کرام رضی الله عنهم نه منع کول لهذا معلومه شوه چې صرف د نبی علیه السلام فعل د امر نه بغير موجب د وجوب نه دې

**د امام شافعی رحمه الله دليل** : امام شافعی صاحب کله علی سبيل التنزل وائی چې فعل اګرچه بعينه امر نه دې ليکن فائده ورکولو کښې د امر په شان دې دليل دا دې چې کله په يوم خندق کښې د نبی علیه السلام نه څلور مونځونه قضا شو نو چې کله پيغمبر علیه السلام قضا اوکړه نو وې فرمائيل (صلوا کما رايتمونی اصلی) يعنی مونځ په دې

طریقي سره کوئ څنګه چې تاسو ما وینئ په دې کښې نبی علیه السلام په خپل امت باندې د خپلو اعمالو اتباع کول واجب کړې دی

**قوله** : **والوجوب استفید بقوله علیه السلام صلوا کما رایتمونی اصلی**

**شوافعو ته زمونږ جواب** : جواب دا دې چې که د پیغمبر علیه السلام فعل د وجوب فائده ورکوله نو بیا پیغمبر علیه السلام د صلوا کما رایتمونی .....الخ وئیلو ضرورت نه وو بلکه چې صحابه کرامو د هغوی مبارک عمل لیدو نو فوراً به پرې هغوی عمل کولو معلومه شوه چې د وجوب فائده د صلوا کما رایتمونی.....الخ یعنی قول (امر) نه حاصله شوه د فعل نه حاصله نۀ شوه

**د امام شافعی رحمه الله بل دلیل**

کله امام شافعی صاحب علی سبیل الترقی وائی چې فعل هم د امر یو قسم دې دلیل دا دې چې په وما امر فرعون برشید کښې په فعل باندې د امر اطلاق شوې دې څکه چې رشید د فعل صفت جوړیږی د قول صفت نه جوړیږی بلکه د قول صفت سدید جوړیږی

**قوله** : **سمی الفعل به لانه سببه** ـ

**شوافعو ته زمونږ جواب** :

جواب دا دې چې امر سبب دې او فعل مسبب او دا د تسمیة السبب باسم المسبب د قبیل نه دې الغرض دلته سبب نوم اخستلو سره مسبب مراد اخستلې شوې دې او مونږ د حقیقت خبره کوو او تاسو د مجاز نه استدلال کړې دې چې قابل قبول نه دې ـ

**قوله** ومُوجبه الوجوبُ لاالندب والاباحة والتوقف سواء كان بعد الحظر او قبله لانتفاء الخيرة عن المامور بالامر بالنص واستحقاق الوعيد لتاركه ولدلالة الاجماع والمعقول

بيا مصنف رحمه الله د اشتراک نفی اوکړه او وې فرمائيل چې د امر موجب صرف وجوب دې په دې کښې د ډيرو فقهاء کرامو اختلاف دې

**رومبې مذهب** . بعضې خلق وائی چې د دې موجب ندب دې

**د قائلين ندب دليل** : د دوی دليل دا دې چې امرْ د طلب دپاره راځی په دې وجه ضروری ده چې جانب فعل راجح وی دپاره د دې چې طلب متحقق شی چې د هغې ادنی درجه ندب دې د دوی استدلال په قرآن پاک کښې د الله تعالی د فرمان نه دې **فكاتبوهم ان علمتم فيهم خيراً** يعنی که تاسو خپلو غلامانو کښې ښۀ والی اووينئ نو هغوی لره مکاتب جوړ کړئ ښکاره خبره ده چې د غلام مکاتبت واجب نه دې بلکه مندوب او مستحب امر دې

**دويم مذهب** : بعضې وائی چې د دې موجب اباحت دې

**د قائلين اباحت دليل** .

د طلب مطلب دا دې چې د دې کار اجازت دې او د دې کول حرام نه دی او د يو فعل د اجازت ادنی درجه هم اباحت دې لکه د الله تعالی فرمان ( **واذا حللتم فاصطادوا**........الخ)يعنی چې کله تاسو د احرام نه اوځئ نو اوس ښکار اوکړئ . ښکاره خبره ده چې په

حاجیانو صاحبانو باندې ښکار کول واجب نه دی بلکه یو فعل مباح دې نو ګناه نه ده او کهٔ اونکړی نو هم هیڅ حرج نشته

**دریم مذهب** : بعضې خلق وائی چې د دې موجب توقف دې ځکه چې امر د شپاړسو معنو دپاره استعمالیږی چې ترڅو پہ یو معنی باندې څه قرینه نهٔ وی نو هغه وخت پورې به توقف کولې شی .

**څلورم مذهب** : بعضې خلق وائی چې که امر د ممانعت نه پس وی نو د اباحت دپاره به وی او کهٔ د ممانعت نه وړاندې وی نو بیا به د وجوب دپاره وی دلیل دا دې ( **اذاحللتم فاصطادوا**..........الخ) هغوی استدلال کوی چې اول الله تعالی پہ احرام والو باندې پہ حرم کښې دننه یا بهر ښکار کول حرام کړو او وې فرمائیل ( **فلاتقتلوا الصیدوانتم حرم**)د دې ممانعت نه پس بیې امر اوفرمائیلو ( **واذاحللتم فاصطادوا**....الخ)یعنې چې کله تاسو د احرام نه فارغ شیې نو ښکار اوکړئ دلته چونکه امر د ښکار نه د منع کولو نه پس دې لهذا د اباحت دپاره به وی ورنه د امر موجب هم وجوب دې د دې حضراتو دلیل رد کولو سره مونږ وایو چې پہ قرآن حکیم کښې د ممانعت نه پس هم امر د وجوب دپاره راغلې دې لکه فرمائی **فاذانسلخ الاشهر الحرم فاقتلوا المشرکین حیث وجدتموهم**......الخ)طرز استدلال دا دې چې اول الله تعالی پہ څلورو میاشتو ( رجب ، ذی الحجه ، ذی قعده او محرم ) کښې د قتال نه منع اوفرمائیله او د دې ممانعت نه پس بیې د قتال حکم اوکړو چې بالاتفاق د وجوب دپاره دې باقی اباحت د ( **فاصطادوا**)نه پوهه کښې نه راځی بلکه د ( **احل لکم الطیبات**)نه

پوهه کښې راځي دويمه خبره دا ده چې کۀ ښکار فرض وي نو حرج به لازم راتلو حالانکه د ښکار اجازت د بندګانو د فائدې دپاره ورکړې شوې دې

وړاندې مصنف رحمه الله د احنافو په مذهب باندې دليل پيش کوی

**وړومبې دليل** : امر د وجوب دپاره راځی د دې دپاره وړومبې دليل دا دې د الله تعالى فرمان د فرمان ﴿وماكان لمؤمن ولامؤمنة......الخ﴾ د دې آيت مفهوم دا دې چې کله الله تعالى او د هغۀ رسول صلى الله عليه وسلم د يوې خبرې حکم اوکړی نو د مؤمن د قبلولو يا د نۀ قبلولو اختيار ختميږی او په دې باندې عمل کول لازميږی او دا به هغه وخت وی چې کله امر د وجوب دپاره وی

**دويم دليل** : قرآن حکيم کښې دی ﴿فليحذرالذين يخالفون عن امره ان يصيبهم فتنة اوعذاب اليم﴾ يعنی کوم خلق چې د نبی عليه السلام د حکم خلاف ورزی کوی هغوی ته په دنيا کښې د آزمائش او آخرت کښې د عذاب نه ويريدل پکار دی په دې آيت کريمه کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د حکم خلاف ورزی کوونکی د سخت عذاب مستحق ګرځولې شوې دی او دا وعيد هغه وخت صحيح کيدې شی چې کله مونږ اووايو چې واجب يې پريښودلې دې

**اعتراض** : د دې خبرې څۀ دليل دې چې په دې آيت کښې امر د وجوب دپاره دې؟

**جواب** : مونږ جواب ورکوو چې د آيت کريمه مضمون او سياق وانی چې امر د وجوب دپاره دې۔

**دویم اعتراض** : بیا دا اعتراض کیږی چې په دې آیت کښې د مخالفت نه انکاری مخالفت هم مراد کیدې شی ؟

**جواب** : مونږ وایو چې د عربو په نزد باندې د مخالفت اطلاق په ترک عمل باندې وی ځکه چې دا د موافقت یعنی د عمل ضد دې

**په مذکوره دلیل باندې یو مضبوط اعتراض** :

مذکوره دلیل ( فلیحذرالذین یخالفون عن امره........الخ) نه خو مصادره علی المطلوب لازم راځی یعنی اصول دا دی چې دعوه په دلیل باندې موقوف وی او دلیل تسلیم کولو سره د دعوې منل لازمیږی لیکن مذکوره آیت کښې د دلیل اثبات د دعوې په منلو باندې موقوف دې هغه په دې شان چې په دلیل کښې امر مذکور دې ( فلیحذر) او دلیل به هغه وخت صحیح وی چې کله مونږ دا امر د وجوب دپاره اومنو حالانکه د دې په وجوب یا عدم وجوب کښې په خپله کلام دې چې هرکله دلیل ثابت نه دې نو دعوه به ثابته شی د مصادره علی المطلوب وضاحت دا دې چې دلیل به هغه وخت صحیح وی چې کله مونږ دعوه ( الامرللوجوب) تسلیم کړو حالانکه اصل نزاع هم په دې دعوه کښې ده

**جواب** : ستاسو دا وینا صحیح نه ده چې فلیحذرد امر په وجوب کښې کلام دې په دې کښې هیڅ کلام او اخفاء نشته بلکه د دې صرف هم دوجوب دپاره کیدل د سیاق کلام نه ثابت دی لهذا دلیل په دعوه باندې موقوف نه دې چې مصادره علی المطلوب لازم راځی بلکه دلیل ثابت دې او د دلیل ثابت کیدل منتلزم دی اثبات

د دعوې ته نو زمونږ دعوه هم ثابته شوه او هغه دا چې امر د وجوب دپاره دي ـ

**دريم دليل** : مصنف رحمه الله د امر د وجوب دپاره کيدلو باندې دريم دليل دلالةً اجماع ګرځولي دي چې د هغې حاصل دا دي چې په دې امر باندې اجماع ده چې کله هم د چانه يو څيز طلب کړې شي نو د امر په صيغه سره طلب کړې کيږي ځکه چې د مطالبې بل هيڅ طريقه نشته ځکه چې مونږ روزمره استعمال او عرف کښې د دې خبرې مشاهده کوو او طلب کښې اصل کمال طلب دي چې هم د وجوب په ذريعه متحقق کيدې شي ـ

**نکته** : دا وهم کول پکار نه دی چې د امر د وجوب دپاره کيدو باندې اجماع ده اکثر طلباء کرام په دې مقام باندې د دلالت اجماع په ځايې (اجماع) وائی چې يو لويه غلطی ده ځکه چې کۀ په دې امر باندې اجماع وې چې امر د وجوب دپاره دې نو بيا اختلاف ولې وو حالانکه تاسو څلور مختلف مذهبونه د دليلونو سره اولوستل ياد ساتئ ! چې اجماع خو په دې خبره باندې ده چې طلب به د امر په صيغې سره وی او د دې په وجه سره دلالةً امر د وجوب دپاره کيدل معلوم شو ـ

**څلورم دليل عقلي** : عقل په دې خبره باندې دلالت کوی چې امر دې صرف د وجوب دپاره وی ځکه چې عام افعال په يو مخصوص معنی باندې دلالت کوی نو مناسب دا ده چې صيغه د امر هم وجوب يعنی د يو مخصوص معنی دپاره وی او بعضې خلقو وئيلې دی چې عقلی دليل دا دې چې کله آقا غلام ته د يو کار حکم ورکړی او هغه

اونکړی نو هغه د سزا مستحق ګرځی او هغه به د سزا مستحق هغه وخت وی چې کله امر د وجوب دپاره وی ځکه چې د یو مندوب او مستحب امر پریخودونکي د سزا مستحق نه وی.

**قوله** : واذا اريدت به الاباحة او الندب فقيل انه حقيقة لانه بعضه وقيل لا لانه جاوز اصله

**د عبارت تشريح**: او کۀ د امر نه د هغې معنی حقیقی یعنی وجوب ترک کړې شی او د اباحت یا د ندب معنی مراد واخستلې شی نو دې کښې دوه مذهبونه دی

**وړومبې مذهب** : بعضې خلق وائی چې دا به د حقیقت نه وی ځکه چې اباحت او ندب دواړه د وجوب بعض دی او د یو څیز بعض د هغې حقیقت قاصره وی ځکه چې وجوب وئیلې کیږی جواز د فعل سره د حرمت ترک کولو او اباحت وئیلې کیږی جواز فعل مع جواز ترک ته او ندب وئیلې کیږی جواز د فعل مع رجحان الفعل دا مذهب د علامه فخرالاسلام علی بن محمد نسفی رحمه الله دې

**دويم مذهب** : بعضې وائی چې کله امر د اباحت یا د ندب دپاره استعمالیږی نو دا به مجاز وی ځکه چې دې د خپل اصل او حقیقت نه تجاوز کړې دې ځکه چې وجوب وئیلې کیږی جواز فعل مع حرمت ترک ته او اباحت او ندب دواړو کښې د فعل د جواز سره سره جواز ترک وی او جواز ترک د حرمت ترک سره متضاد او متجاوز دې۔

**د کلام خلاصه** : خلاصه دا ده چې کومو خلقو د امر په تعريف

کښي صرف جنس یعنی جواز فعل اولیدهٔ هغوی اووې چې دا حقیقت دې او چې کومو خلقو جنس او فصل دواړه اولیدل نو هغوی اووې چې دا مجاز دې

## امر مقتضی للتکرار یا محتمل للتکرار دې یا نهٔ؟

**قوله** : ولا یقتضی التکرار ولا یحتمله سواء کان معلقاً بشرط او مخصوصا بوصف اولم یکن

**د احنافو مذهب** : زمونږ په نزد امر نهٔ د تکرار تقاضه کوی چې بغیر د نیت نه د دې مفهوم تکرار وی او نهٔ احتمال لری چې د نیت او ارادې نه بعد د دې نه د تکرار والا معنی واخستې شي

• لهٰذا د صلوا معنی ده چې یو ځل مونځ اوکړئ دغه شان د صوموا معنی ده چې یو ځل روژه اونیسئ

**د شوافعو مذهب** : بعضې شوافع د دې خبرې قائل دی چې امر د تکرار تقاضه کوی او بعضې وائی چې هر امر د تکرار تقاضه نه کوی البته د تکرار احتمال لری د هغوی دلائل اوګورئ

چې کوم خلق وائی چې د تکرار تقاضه کوی د هغوی دلیل د حضرت اقرع بن حابس رضی الله عنه حدیث دې چې هغوی د اهل لسان نه وو د دې باوجود هغوی د حج د حکم نه د تکرار معنی مراد واخستله۔

او چې کوم خلق وائی چې امر د تکرار احتمال لری د هغوی دلیل دا دې چې صیغه د امر مثلاً اضرب مختصر ده د اطلب منك ضرباً او ضرباً نکره ده او نکره اګرچه اثبات کښي خاص وی لیکن د

عموم احتمال لری لهذا چې کله څۀ قرینه وی نو دا به په عموم باندې حمل کولې شی

**د دوارو دلو مینځ کښې د فرق وجه** :

موجب او محتمل کښې فرق دا دې چې موجب بغیر د نیت نه ثابتیږی او محتمل په نیت سره ثابتیږی

**د شوافعو دریم مذهب** : د بعضې شوافعو خیال دې چې که امر شرط سره معلق وی یا مخصوص بوصف وی نو هغه د تکرار احتمال لری د شوافعو دلیل دا دې چې الله تعالی فرمائی (وان کنتم جنباً فاطهروا) چې هرکله جنابت موندې کیږی نو د طهارت حکم به موندې کیږی او (السارق والسارقة فاقطعوا ایدیهما......الخ) چې کله د غلا وصف اوموندې شی نو د لاس د کټ کولو حکم به هم موندې کیږی

**د احنافو مذهب** :

لیکن زمونږ په نزد یو امر خواه معلق په شرط سره وی یا مخصوص په وصف سره بهر صورت امر د تکرار احتمال نۀ لری

**د شوافعو د دلیل جواب** : مونږ وایو چې کله هم د جنابت او د غلا وصف اوموندې شی نو د فاطهروا او فاقطعوا حکم به متوجه کیږی

**اعتراض** :اعتراض کیږی چې هرکله ستاسو په نزد امر د تکرار احتمال نۀ لری نو طلقی نفسك کښې د دریو نیت کول څنګه صحیح شو؟

**قوله** : لكنه يقع على اقل جنسه ويحتمل كله حتى اذا قال لها طلقی نفسک انه يقع على الواحد الا ان ينوى الثلث

**جواب** : جواب دا دې چې د طلاق اقل جنس یعنی فرد حقیقی خو یو دې لیکن د دې فرد حکمی او کل جنس درې دی نو د امر طلاق خو په اقل جنس باندې وی لیکن د کل جنس احتمال هم لری نو د دریو نیت کول صحیح شو لیکن د دواؤ نیت کول صحیح نهٔ دی ځکه چې دوه خو نهٔ فرد حقیقی دې او نهٔ حکمې دې البته کهٔ ښځه وینځه وی نو بیا د دواؤ نیت کول هم صحیح دی ځکه چې د وینځې په حق کښې دوه کل جنس دې او فرد حکمی دې

**په جواب باندې اعتراض** : اعتراض دا کیږی چې هرکله طلاق د دواؤ احتمال نهٔ لری نو بیا طلقی نفسک ثنتین وئیل څنګه صحیح شو یعنی ثنتین د طلاق دپاره بیان تفسیر څنګه جوړ شو

**جواب** : جواب دا دې چې ثنتین د طلقی نفسک دپاره تفسیر نهٔ دې بلکه د خپل ماقبل دپاره بیان تغییر دې

**قوله** : لان صيغة الامر مختصرة من طلب الفعل بالمصدر الذى هو فرد ومعنى التوحد مرعى فى الفاظ الوحدان وذلک بالفردية والجنسية والمثنى بمعزل عنهما

**په عدم تکرار باندې د احنافو دلیل** : د احنافو دلیل دا دې چې د امر صیغه دا مختصر ده د طلب فعل بالمصدر نه مثلاً اضرب دا مختصر دې د اطلب منك الضرب او د مصدر لفظ خو مفرد دې او

مفرد الفاظو کښې د مفرد معنې رعايت کولې شي ، لهذا لفظ مفرد د تکرار تقاضه نهٔ کوی نو چې کوم د دې نه مختصر دې يعنی امر نو هغه هم د تکرار تقاضه نهٔ کوی

**اعتراض** : اعتراض دا کيږی چې هرکله امر د تکرار تقاضه نهٔ کوی نو عبادات ولې متکرر وی حالانکه د عباداتو وجوب هم د الله تعالی د امر په بناء باندې دې

**قوله** : **وما تکرر من العبادات فباسبابها لا بالاوامر**

**جواب** : جواب دا دې چې عبادات د امر په وجه سره متکرر نهٔ وی بلکه د اسبابو په وجه سره متکرر وی مثلاً وخت دا د وجوب صلوٰة سبب دې او رمضان د روژو د واجب کيدو سبب دې نو چې کله هم وخت او رمضان متکرر کيږی نو مونځ او روژې به هم متکرر کيږی هم دا وجه ده چې حج په کال کښې يو ځل فرض وی ځکه چې د دې سبب بيت الله شريف دې او هغه هم يو دې کهٔ تکرار د امر په وجه سره وې نو حج کښې هم تکرار کيدل پکار وو ۔

**اعتراض** : اعتراض کيږی چې دا هم کيدې شی چې وخت صرف د وجوب سبب وی او امر د وجوب اداء سبب وی ؟

**جواب** : جواب دا دې چې کوم وخت کښې سبب موندې کيږی هغه وخت به د الله تعالی له طرفه نوې امر بنده طرفته متوجه کيږی مثلاً چې کله هم د مانځهٔ وخت راځی نو د الله تعالی له طرفه به نوې حکم د مانځهٔ راځی په دې وجه وجوب به هم د سرنه راځی علی هذا القياس

**قولــه** : وعنـد الشـافعي لمـا احتمـل التكـرار تملـك ان تطلق نفسها ثنتين اذا نوى الزوج ـ

د امام شافعي رحمه الله په نزد چونکه امر د تکرار احتمال لرى لهذا کهٔ خاوند په طلقي نفسك کښې د دواړو طلاقو نيت اوکړو نو ښځې ته به اختيار حاصل وي چې هغه خپل ځان ته دوه طلاقه ورکړى ـ

**قوله**: وكذا اسم الفاعل يدل على المصدرلغة ولا يحتمل العدد

څنګه چې امر په مصدر باندې دلالت کوى دغه شان اسم فاعل هم لغةً په مصدر باندې دلالت کوى لهذا دا هم د تعداد او تکرار احتمال نهٔ لرى

**قولــه** : حتـى لا يـراد بايـة الـسرقة الا سـرقة واحـدة وبالفعل الواحد لا تقطع الا يد واحدة

په دې خبره باندې چې اسم فاعل هم د تکرار او د تعداد احتمال نه لرى مصنف دا تفريع کړې ده چې آيت سرقه کښې به سرقة السـارق والسـارقة فاقطعوا نه به صرف يو سرقه مراد وى په دې کښې امام شافعي رحمه الله فرمائى چې غل دريم او څلورم کرت باندې غـلا اوکړى نو د هغهٔ ګس لاس او ښى خپه به کټ کيږى د هغوى دليل دا حديث دې چې حضور اقدس صلى الله عليه وسلم فرمائى چې څوک غـلا اوکړى نـو کټ کړئ بيا غلا اوکړى نو کټ کړئ بيا غلا اوکړى نو کټ کړئ بيـا غـلا اوکړى نو کټ کړئ ( حديث عربى متن سره د کتاب په حاشيه کښې مذکور دې چې هغې کښې څلور ځله د فـاقطعوا الفـاظ راغلې دى ) او زمونږ په نزد به په دريم او څلورم ځل غـلا باندې هم ګس لاس او

نبي خپه نۀ کټ کيږي بلکه جيل کښې به اچولې کيږي تردې چې توبه اوباسی یا هم هلته مړ شی۔

**د احنافو دليل** : زمونږ دلیل دا دې چې سارق اسم فاعل دې چې په مصدري معنی باندې دلالت کوی لهذا د دې نه خو به یا فرد حقیقی مراد وی یا به ترې فرد حکمی مراد وی او د غلا فرد حکمی خو نه معلومیږی ځکه چې د دې مدار په آخری عمر باندې دې لهذا یو ځل غلا سره به یو ځل د لاس کټ کیدل مراد وی دغه شان فاقطعوا چې امر دې هم په یو ځل کټ کولو باندې دلالت کوی۔

**اعتراض** : اعتراض کیږی چې بیا تاسو په دویم ځل ګسه خپه ولې کټ کوئ؟ حاصل دا دې چې هرکله تاسو وایئ چې یو ځل غلا سره به هم یو ځل کټ کولې شی نو دا کیدل پکار دی چې هرکله غل په دویم ځل غلا اوکړی نو د هغۀ ګسه خپه کټ نه کیږی۔

**جواب** : جواب دا دې چې آیت کښې د خپې څه ذکر نشته لهذا خپه کټ کول مونږ د دې امر نه نۀ ثابتوو بلکه هغه مونږ د دویم نص نه ثابتوو بعضو وئیلې دی چې د ښی لاس کټ کول نص سره او د ګسې خپې کټ کول اجماع سره ثابت دی۔

**اعتراض** : بیا اعتراض دا کیږی چې د زنا په صورت کښې غیر محصن زانی ته بار بار کوړې ولې ورکړې کیږی دلته هم فاجلدوا امر دې چې د هغې نه هم یو ځل وهل ثابتیږی۔

**جواب** : جواب دا دې چې کوړې په څرمن باندې لګی او څرمن بار بار د کوړو لګیدو محل جوړیدې شی په خلاف د لاس کټ کولو

چې يو ځل لاس کټ کيدو نه پس هم دغه لاس د دويم ځل کټ کيدو محل نه جوړيږی لهذا دويم ځل باندې به خپه کټ کولې شی.

**قوله** : وحکم الامر نوعان اداء وهو تسليم عين الواجب بالامر وقضاء وهو تسليم مثل الواجب

د امر نه وجوب ثابتيږی د دې دوه قسمونه دی

## د حکم امر تقسيم

(۱) **وجوب اداء** (۲) **وجوب قضاء**

وجوب ادا دا ده چې امر سره څه واجب وی هغې لره بعينه بلاتغير وتبدل ادا کول

علامه فخرالاسلام وغيره د اداء دا تعريف کړې دې (تسليم نفس الواجب بالامر) په دې باندې اعتراض کيږی چې نفس وجوب امر سره نۀ وی بلکه هغه خو وخت سره وی

**جواب** : د دې جواب دا دې چې امر تسليم سره متعلق دې واجب سره متعلق نۀ دې نو مطلب دا شو چې تسليمول دا امر سره متعلق دې باقی دا چې وجوب څه سره متعلق دې امر سره يا وخت سره دې باره کښې دلته څه خبره نۀ ده شوې بلکه سکوت دې

وجوب قضاء دا ده چې مثل واجب لره امر سره ادا کول تسليم مثل الواجب بالامر

**نکته** : بعضې خلقو وئيلی دی چې دلته د (من عنده) قيد لګول پکار دی ځکه چې کۀ يو کس نن د ماسپخين مونځ لره د سبا د ماسپخين د مونځ قضاء اوګرځوی نو دا جائز نۀ دی نو د دې صورت

راویستلو دپاره د من عنده قید کیدل پکار وو

**جواب**: جواب دا دي چي چونکه دا خبره التزاماً مدلول علیه او مشهور وه په دي وجه د دي قید اونهٔ لګولي شو

په دي مقام باندي یو څو شبهات نور هم شوي دی چي هغه مونږ د اوږدوالی په ویره او د فائدي د نشتوالیٔ په وجه مونږ پریږدو۔

**قوله**: **ویستعمل احدهما مکان الاخر مجازاً حتی یجوز الاداء بنیة القضاء وبالعکس**

ادا او قضا دواړو کښي هر یو لره د بل په ځایي مجازاً استعمالیدي شي او فخرالاسلام فرمائی چي قضا د ادا دپاره استعمالول حقیقت دي ځکه چي د قضا مطلب دي د ذمي فارغیدل او دا خبره ادا او قضا دواړو کښي حاصلیږي الغرض هغوی په قضا او ادا کښي نسبت دعموم خصوص مطلق ثابتوی او وائی چي اداء خاص ده او قضاء عام ده لهذا اداء باندي خو د قضاء اطلاق صحیح او حقیقت دي څنګه چي د الله تعالی په دي فرمان کښي هم ظاهری دي (فاذاقضیت الصلوة فانتشروا) د جمعي قضاء نشته په دي وجه د قضاء نه مراد هم اداء ده۔

لیکن اداء لره د قضاء دپاره استعمالول د علامه بزدوی رحمه الله په نزد هم مجاز دي ځکه چي اداء کښي د شدت رعایت معنی زیاته موندي شی او دا قضاء کښي نه موندي کیږی څنګه چي شاعر وئیلي دی الذیب یأدو للغزال یاکله ای یختله ویغلب علیه۔

**قولــه** والقـضاء يجـب بمـا يجـب بـه الاداء عنـد المحققـين خلافاً للبعض

**د قضاء په سبب کښې اختلاف**

د فقهاء کرامو خپل مینځ کښې اختلاف ذې چې دقضاء څه سبب دې

**د اکثرو احنافو مذهب** : اکثر احناف دا وائی چې قضاء په هم هغه سبب سره واجب شوې ده چې کوم سبب سره ادا واجب شوې ده

لیکن د بعضې احنافو او د شوافعو مذهب دا دې چې د قضاء دپاره د څه نوې سبب ضرورت دې او د اداء والا سبب کافی نۀ دې.

زمونږ په نزد د مونځ د ادا د واجب کیدو سبب ( اقیموالصّلٰوۃ) دې نو د قضاء د واجب کیدو سبب هم دا دې او د روژو د واجب کیدو سبب ( کتب علیکم الصیام) دې نو د دې د قضاء کیدو سبب هم دا دې باقی حدیث مبارک کښې چې راغلي دی ( من نام عن صلوۃ او نسیها) یا قرآن پاک کښې چې دی ( فمن کان منکم مریضاً الخ) نو دا صرف د تنبیه دپاره دی چې ستاسو په ذمه اوسه پوري ادا کول باقی دی وجه دا ده چې د مونځ او روژې په مثل باندې د خپل طرفنه قادر کیدل او د وخت د فضیلت ساقط کیدل دا دواړه خبرې عقل کښې راتلونکې دي

لهٰذا مونږ د قضاء حکم هغې مسائلو طرفته هم متعدی کولې شو چې د هغې باره کښې څۀ نص نشته او هغه د مونځ او روژې او اعتکاف نذر منل دی۔

د امام شافعی رحمه الله په نزد د قضاء دپاره د یو نوې نص ضرورت دې

چي کومو عبادتونو کښي نوي نص موجود وي هلته خو شوافع هم هغي لره د قضاء سبب ګرځوي مثلاً د مونځ د قضاء دپاره د رسول الله مبارک حديث شريف من نام عن صلاة اونسيها فليصلها ......الخ او د روژي د قضاء دپاره آيت کريمه فمن كان منكم مريضاً اوعلى سفر فعدة من ايام اخر.........الخ

او که يو نوي نص نه وي نو بيا به د قضاء سبب تفويت يعنى فوت کيدل وي بعضي مسائل داسي دی چي زمونږ د خبري تائيد کوي لکه څنګه چي سفر کښي د حضر د قضاء څلور رکعته وي او د سفر قضاء حضر کښي دوه رکعته وي دغه شان د جهري مونځ قضاء ورځ کښي هم جهراً وي او د سري مونځ قضاء شپه کښي هم سراً وي دغه شان بعضي مسائل داسي دی چي د امام شافعي رحمه الله د خبري تائيد کوي لکه صحت مند سړي د بيماري د حالت مونځ د صحت د حالت په انداز سره قضاء کوي او بيمار سړي د صحت د حالت مونځ د بيمار په طريقي سره قضاء کوي ۔

**قوله** . وفيما اذا نذر ان يعتكف شهر رمضان فصام ولم يعتكف انما وجب القضاء بصوم مقصود لعود شرطه الى الكمال لا لان القضاء وجب بسبب باخر ـ

**يو مشهور اعتراض** :

په احنافو باندي د شوافعو له طرفه يو مشهور سوال کيږي او هغه دا چي که چا نذر اومنو چي د رمضان د مياشتي اعتكاف به کوم بيا هغه روژي خو اونيولي ليکن د څه عذر په وجه يې اعتكاف اونکړي شو نو د احنافو په نزد به دا سړي د دې اعتكاف

قضاء په دویم رمضان کښې نه کوی بلکه مستقل به یو میاشت نفلی روژې نیسی او په هغې کښې به د اعتکاف قضا کوی

شوافع استدلال کوی چې ستاسو د مذهب مطابق که قضاء دې سبب سره واجبیږی چې کومې سره ادا واجب شوې ده نو دویم رمضان کښې هم د دې اعتکاف قضا راوړل صحیح کیدل پکار وو حالانکه د احنافو په نزد په دویم رمضان کښې د دې اعتکاف قضاء راوړل صحیح نه دی نو معلومه شوه چې د قضاء سبب تفویت دې

**جواب** د دې جواب دا دې چې اعتکاف د روژو نه بغیر نهٔ صحیح کیږی چې کله څوک د اعتکاف نذر اومنی نو روژې ورسره هم واجبیږی نو اصل خو دا وه چې دې سرې ځانله یو میاشت روژې نیولې دې او په هغې کښې یې خپل نذر پوره کړې وې لیکن د رمضان د فضیلت په وجه مونږ دا اصل پریخودو او مونږ اجازت ورکړو چې هم د رمضان په روژو کښې دې خپل نذر پوره کړی لیکن چې هرکله یې د رمضان فضیلت حاصل نکړې شو نو حکم خپل اصل طرفته واپس شو یعنی مستقل یو میاشت روژې به نیسی او خپل نذر به پوره کوی اوس که دویم رمضان هم راغې نو حکم به د دې اصل نه دویم رمضان ته نهٔ منتقل کیږی هسې هم دویم رمضان ته د ژوندی پاتې کیدل امر موهوم دې

**قولــه** : والاداء انواع كامل وقاصر وما هو شبيه بالقضاء كالصلوة بجماعة والصلوة منفرداً وفعل اللاحق بعد فراغ الامام حتى لا يتغير فرضه بنية الاقامة

**د اداء تقسیم** : د اداء درې قسمونه دی

(۱) اداء کامل (۲) اداء قاصر (۳) ادا مشابه بالقضاء

اداء کامل دا ده چې يو څيز هم هغه طريقې سره ادا کړې شي چې کومې طريقې سره شارع مشروع کړې وه.

اداء قاصر دا ده چې مشروع طريقې سره ادا نکړې شي بلکه څه کمی بيشی سره ادا کړې شي

اداء مشابه بالقضاء دا ده چې کومې طريقې سره شارع په دهٔ باندې لازم کړې وه نو هغې طريقې سره ادا نکړی.

**د درې واړو قسمونو مثالونو سره وضاحت :**

د اداء کامل مثال دا دې چې مونځ د جماعت سره ادا کول او اداء قاصر دا دې چې مونځ خانله ادا کول او اداء مشابه بالقضاء مثال دا دې چې د امام د فارغيدو نه پس لاحق شی او باقی مونځ ادا کړی د دهٔ مونځ د وخت په اعتبار سره خو ادا دې ليکن کومې طريقې سره چې دهٔ په خپل ځان باندې لازم کړې وو نو هغې طريقې سره يې ادا نکړو نو مشابه بالقضاء شو د دې د ادا کيدو ثمره خو دا ده چې دې به برى الذمه شی او د قضاء کيدو ثمره دا ده چې د اقامت په نيت سره به د دهٔ فرض نهٔ بدليږی مثلاً لاحق مسافر وو او دهٔ د يو مسافر اقتدا اوکړه بيا يې اودس مات شو او د اودس کولو نه پس خپل ښارکښې داخل شويا يې داقامت نيت اوکړو بيا واپس راغې نو امام د مونځ نه فارغ شوې وو او لاحق د خبرو کولو نه بغير مونځ شروع کړو نو څلور رکعته نهٔ بلکه دې به اوس دوه رکعته مونځ کوی ليکن که چرته امام مقيم وو يا د دهٔ د واپس راتلو پورې امام فارغ شوې نهٔ وو يا دهٔ خبرې اوکړې او بيا يې د نوې سر نه

مونږ شروع کړو او د قسمت نيت بي اوکړو نو دي صورتونو کښي به د فرض هم بدليږي او دي به بي څلور رکعته مونځ کوي

دا خو به حقوق الله کښي د اقسام اداء مثالونه وو اوس صاحب کتاب په حقوق العباد کښي د اقسام اداء مثالونه بيان فرمائي

**قوله** ومنها رد عين المغصوب ورده مشغولاً بالجناية وامهار عبد غيره تسليمه بعد الشراء حتىٰ تجبر على القبول وينفذ اعتاقه فيه دون اعتاقها ۔

## حقوق العباد کښي د اقسام اداء مثالونه

۱ حقوق العباد کښي د اداء کامل مثال دا دي چي غاصب سړی مغصوب څيز لره مالک ته په هغي طريقي باندي واپس کړي چي په کوم حالت کښي يي غصب کړي وو دغه شان بائع عين مبيعه مشتري ته حواله کړي

۲ د اداء قاصر مثال دا دي چي غاصب مغصوب څيز په داسي حال کښي واپس کړي چي هغه څيز دي غاصب سره مشغول بالجنايت يا مشغول بالدين شوي وي نو غاصب به بری شی ليکن که غاصب دا وی د جنايت ته حواله کړو نو د غاصب نه به قيمت اخستي شي

۳ د مشابه بالقضاء مثال دا دي چي يو سړی د بل چا غلام په خپله نکاح کښي د مهر په طور باندي مقرر کړو او بيا يي هغه غلام واخستو او خپلي بی بی ته يي حواله کړو نو دا دي اعتبار سره خو اداء ده چي بعينه هم هغه غلام يي بی بی ته حواله کړي دي چي په کوم باندي د نکاح عقد شوي وو او دي اعتبار سره مشابه بالقضاء دي چي تبدل د ملک سره تبدل د عين لازم راځي څنګه چي د حديث

بریره رضی الله عنها نه معلومیږی چې حضور ﷺ فرمائی ( لك صدقة ولنا هدية) چې د دې مفهوم دا دې چې د حضرت بریره رضی الله عنها په ملکیت کښې خو د دې غوښې حیثیت د صدقې وو لیکن چې د دې ملک بدل شو او د نبی کریم ﷺ طرفته منتقل شو نو د دې حیثیت هم بدل شو او د صدقې نه د هدیې طرفته منتقل شو دغه شان دا غلام چې کله مالک سره وو نو ګویا که دا جدا سړې دې او چې کله بی بی ته حواله کړې شو نو جدا جوړ شو نو د ادا کیدو ثمره خو به دا شی چې بی بی به د دهٔ په قبلولو باندې مجبوروليې شی او د مشابه بالقضاء کیدو نتیجه به دا شی چې د ښځې حواله کولو نه مخکښې به خاوند دا غلام آزاد کړی نو د دهٔ دا فعل به صحیح وی او که ښځه یی آزاد کړی نو صحیح به نهٔ وی

**قوله** : والقضاء انواع ایضاً مثل معقول وبمثل غیر معقول وما هو فی معنی الاداء کالصوم للصوم والفدية له وقضاء تكبيرات العيد فی الركوع

**د قضاء تقسیم** : د قضاء هم څو قسمونه دی

(۱) **قضاء بمثل المعقول** : دا هغه قضاء ده چه د هغې عین سره مماثلت عقل سره پوهه کښې راځی. شریعت ته نظر کولو نه بغیر. د دې مثال لکه د روژې قضاء روژې سره کول

(۲) **قضاء بمثل غیر معقول** : دا هغه قضاء ده چې د هغې عین سره مماثلت صرف د شریعت په ذریعې سره پوهه کښې راځی او عقل ترینه قاصر وی لکه د روژې قضاء په فدیې سره ځکه چې د روژې او

فديې مينځ کښې نه خو صورتاً مماثلت موندې کيږي او نه معنا ځکه چې د روژې مقصد نفس اوږې ساتل دي او د فديې مقصد د نفس مړول دي ليکن شريعت د روژې په قضاء کښې د فديې حکم ورکړې دې قرآن پاک کښې دي وعلى الذين يطيقونه فدية د دې څو تفسيرونه دي چې هغه صاحب نورالانوار بيان کړې دي۔

(۲) **قضاء مشابه بالاداء**: دا هغه قضاء ده چې حقيقتاً يا حکماً په دې کښې د اداء معنى اوموندې شي د قضاء مشابه بالاداء مثال دادې چې کۀ د يو سړي نه د عيدينو تکبيرات فوت شي او امام سره رکوع کښې يوځايې شي نو رکوع کښې به د هغې تکبيراتو قضاء راوړي نو دا قضاء خو په دې اعتبار سره ده چې د تکبيراتو محل قيام دې او هغه محل تير شوې دې او مشابه بالاداء په دې اعتبار سره ده چې رکوع کښې هم نيم قسم قيام وي او دويمه خبره دا ده چې کوم سړې امام لره په رکوع کښې اومومى نو ګويا هغۀ پوره رکعت اوموندلو لهٰذا احتياطاً رکوع کښې تکبيرات ادا کولې شي

**قوله** ووجوب الفدية فى الصلوٰة للاحتياط

**اعتراض** اعتراض دا دې چې اصول دا دي چې کوم حکم خلاف قياس وي نو په هغې باندې دويمه مسئله قياس کول صحيح نۀ وي نو د روژې دپاره د فديې حکم خلاف قياس دې او تاسو په دې باندې مونځ هم قياس کوي او وايې چې يو کس د مرګ په وخت کښې وصيت اوکړو نو په وارث باندې واجب دي چې د هغۀ د مونځونو فديه ورکړي.

**جواب** د مونځونو فديه احتياطاً ورکولې شي او ستاسو دا ګمان

صحيح نهٔ دي چې مونږ د روژې په فديې باندې د مونځ د فديې قياس اوکړو بلکه اصل خبره دا ده چې د روژې په فديه کښې هم دا احتمال دي چې د دې حکم د روژې سره خاص وی او دا هم احتمال دې چې دا حکم د څه علت عامه په وجه سره وی چې په مونځ کښې هم موندې شی او هغه علت عاجز کيدل دی او د عاجز کيدلو علت په مانځهٔ کښې هم راتلې شی نو د مونځونو به هم فديه ورکولې شی که قبوله شوه خو ډيره ښهٔ ده او که قبول نهٔ شوه نو د صدقې ثواب خو چرته تلې نهٔ دې په دې وجه امام محمد رحمه الله په کتاب الزيادات کښې فرمائيلې دی چې اميد دې چې دا کفاره به د مونځونو د پاره کافی شی که دا امر قياسی وې نو دا په مشيت ايزدی باندې ولې پريخودې کيدو۔

**قوله** : **كالتصدق بالقيمة عند فوات ايام التضحية**

**اعتراض** : يو بل اعتراض کيږی چې د قربانۍ په ورځو کښې قربانی کول يو امر غير معقول دې ځکه چې په دې کښې د حيواناتو نقصان لازم راځی نو دا کيدل پکار دی چې د دې قضاء نه وی حالانکه تاسو وايئ چې کهٔ يو فقير د قربانۍ کولو نذر اومنلو يا يو کس د قربانۍ څاروې واخستو او بيا هلاک شو نو په دې فقير باندې واجب دی چې عين هم د غه څاروې صدقه کړی يا د هغې قيمت صدقه کړی.

**جواب** : د دې جواب دا دې چه د قربانۍ په ورځو کښې چه کومه قربانی کولې شی په هغې کښې دوه احتماله دی:

(۱) رومبي احتمال داد ي چه د قرباني په ورځو کښې قرباني کول اصل وي

(۲) دويم احتمال دادي چې اصل خو دا وه چې عين دغه ځاروي يا د هغې قيمت صدقه کړی او قرباني کول د دې خلف دي نو اصل پريخودي شو او خلف طرفته انتقال ځکه اوکړې شو چې دا د الله تعالی د ميلمستيا ورځې دی او ميلمستيا پاکې غوښې سره وی چې بهترين او عمده خوراک دې نو چې ترڅو د قرباني ورځې موجود وی نو مونږ به وايو چې قرباني کول اصل دی ليکن چې کله د قرباني کولو ورځې فوت شی نو بيا به د اصل طرفته رجوع کوو او هغه دا دې چې صدقه به اوکړې شی بيا که د دويم کال اختر هم واغي نو مونږ به اصل هم پريږدو۔

وړاندې صاحب کتاب د اقسام قضاء مثالونه د حقوق العباد په اعتبار سره بيان فرمائی

**د حقوق العباد نه د قضاء د اقسامو مثالونه**

**قوله** و منها ضمان المغصوب بالمثل وهو السابق او بالقيمة ... الخ.

**د قضاء بمثل معقول مثال** : حقوق العباد کښې د قضاء بمثل المعقول مثال دا دې چې غاصب يو څيز غصب کړو او بيا يې هلاک کړو نو که هغه څيز مثلی وو نو غاصب باندې به د هغې د مثل ضمان واجب وی ليکن مثل صوری سره ضمان ورکول دا مثل کامل دې او مثل معنوی يعنی قيمت سره ضمان ورکول دا مثل قاصر دې نو چې ترڅو مثل کامل موندې کيږی نو هغه وخت پورې

به مثل قاصر طرفته رجوع نه کوو

**قوله** : وضمان النفس والاطراف بالمال

**د قضاء بمثل غیرمعقول مثال**

حقوق العباد کښې د قضاء بمثل غیرمعقول مثال دا دي چې کۀ یو سړي خطاءً قتل کړي شو یا خطاء د هغۀ اندامونه کټ کړي شو نو مجرم باندي د هغۀ دیت او د اندامونو ضمان لازم دي حالانکه د انساني جسم او د انساني اندامونو او د مال و دولت درمیان کښې هیڅ قسم مماثلت سمجهـ کښې نه راځی

**قوله** : واداء القيمة فيما اذا تزوج على عبد بغير عينه حتى تجبر على القبول كمالواتاها بالمسمى.

**د قضاء مشابه بالاداء مثال** :

د قضاء مشابه بالاداء مثال دا دي چې که یو سړی د ښځې سره وادۀ اوکړو د غیرمعین غلام په بدله کښې نو که خاوند درمیانه درجې والا غلام واخلی او ښځې ته ورکړی نو ادا اوشوه او که د هغې قیمت ورکړی نو دا قضاء شوه لیکن د اداء په معنی کښې به وی ځکه چې د ښځې خاوند درمیان کښې چې د غلام باره کښې کومه جهګړه کیدې شی د هغې د ختمولو معیار قیمت دې ځکه چې کوم د اعلی قیمت والا غلام وی نو هغه به اعلی وی او کوم چې د کم قیمت والا وی نو هغه به ادنی وی او چې کوم درمیانی قیمت والا وی نو هغه به متوسط وی لهذا د قیمت ورکول هم د ادا په معنی کښې دی لهذا ښځه به د قیمت په قبلولو باندې

مجبورولې شی۔

**نکته**: مثل صوری د مثل معنوی نه مقدم دې په دې باندې امام صاحب د دواړو مسئلو تفریع کوی

**مثل صوری په مثل معنوی باندې مقدم دې**

**قوله** وعلی هذا قال ابوحنیفة فی القطع ثم القتل عمداً للولی فعلهما

**وړومبۍ تفریع**: که یو ظالم سړي د بل سړی لاس قصداً کټ کړو بیا یې دغه کس د صحت موندو نه مخکښې قتل کړو نو د مقتول اولیاؤ ته اختیار دې چې هغوی هم هغه شان اوکړی ځنګه چې قاتل کړې دی چې په مثل کامل باندې عمل اوشی لیکن که هغوی صرف قتل اوکړی نو هم جائز دی لیکن د صاحبینو په نزد به د مقتول وارثان صرف د قتل په ذریعې سره قصاص اخلی او قطع یعنی د وړوکی جنایت به لوې جنایت کښې تداخل اوشی

اصل کښې د دې مسئلې اتۀ صورتونه جوړیږی ځکه چې یا خو به قطع او قتل دواړه عمداً وی یا به دواړه خطاءً وی یا به قطع عمداً او قتل خطاءً وی یا به قطع خطاءً او قتل عمداً وی بیا به دې څلور وارو صورتونو کښې یا خو به د مقتول دا قتل د صحت مند کیدو نه پس وی یا وړاندې که قتل د صحت مند کیدو نه مخکښې دی او دواړه خواه عمداً وی یا دواړه خطاءً وی نو بالاتفاق به تداخل نه کیږی او که قتل د صحت موندو نه مخکښې وی نو که په دې کښې یو عمداً وی او یو خطاءً وی نو بیا به هم تداخل نه کیږی او

که قتل د صحت مند کیدو نه پس وی او دواړه خطاءً وی نو بالاتفاق
به تداخل کیږی او که دواړه عمداً وی نو په دې کښې د امام صاحب
او د صاحبینو رحمهم الله اختلاف دې څنګه چې متن کښې ذکر
کړې شوې دې د مزید وضاحت د پاره دا نقشه اوګورئ:

**قوله** : ولا يضمن المثلى بالقيمة اذا انقطع المثل الا يوم الخصومة ۔

**دویمه تفریع** :

په دې باره کښې چې مثل صوری د مثل معنوی نه مقدم وی
امام صاحب فرمائی چې که غاصب یو مثلی څیز غصب
کړو بیا د هغې مثل د بازار نه منقطع شو نو غاصب باندې به د یوم
الخصومت قیمت واجب وی څکه چې ترڅو د قاضی فیصله نه وی
نو هغه وخت پورې امکان دې کیدې شی چې غاصب په مثل
صوری باندې قادر شی ۔

**د امام ابویوسف صاحب رحمۃ اللہ علیہ مذهب** :

د امام ابویوسف صاحب په نزد به د یوم الغصب د قیمت اعتبار
وی څکه چې ترڅو د دې مثل منقطع وی نو د دې حکم به ذات القیم
والا وی او ذات القیم کښې خو د یوم الغصب قیمت واجب وی ۔

**د امام ابویوسف د دلیل رد او د هغې جواب** :

مونږ وایو چې دواړو کښې فرق دې څکه چې ذوات القیم
کښې دا حکم وو چې اصل واپس کړی که اصل واپس کیدې شی او
که اصل نه واپس کیږی نو مثل به واپس کوی که د مثل نه هم عاجز

وي نو بيا به هم قيمت واجب وي

۳. **د امام محمد صاحب مذهب**: د امام محمد صاحب په نزد به د يوم الانقطاع د قيمت اعتبار وي ځکه چې د اصل د ورکولو نه عاجز کيدل به هم په دې ورځ باندې ثابتيږي

**د امام محمد صاحب د دليل رد**:

مونږ وايو چې عاجز کيدل خو به هغه وخت ثابتيږي ليکن عجز به ظاهر هغه وخت وي چې کله د قاضي وړاندې مقدمه پيش کړې شي لهٰذا هم د خصومت والا د ورځې اعتبار به کولې شي

د دې ځايې نه يو بل اصول سمجهـ کنبې راځي او هغه دا دې چې که د يو څيز مثل نۀ وي نه مثل کامل او نه مثل قاصر او نه مثل صوري او نه مثل معنوي نو د هغې ضمان به واجب وي

**چې کله مثل معدوم وي نو ضمان به واجب وي**

په دې باندې مصنف ﷫ د دريو مسئلو تفريع کړې دد

**قوله**. وقلنا جميعاً المنافع لا تضمن باالاتلاف

۱. **وړومبۍ تفريع**: که يو سړي د بل چا اس غصب کړو او بيا څه وخت پورې په هغې باندې سور وو يا سورلي يې خو پرې اونکړه بلکه کور کنبې يې اوتړلو نو زمونږ د درې واړو علماؤ په نزد يعنې د امام اعظم ابوحنيفه او د هغوي مايه ناز شاګردان حضرت امام ابويوسف صاحب او امام محمد صاحب رحمهم الله فرمائي چې دا منافع چې کومه غاصب هلاک کړي دي د دې ضمان به پرې لازم نۀ وي اوس به د منافع ضمان د منافع سره په دې وجه نۀ وي ځکه چې

په هر سور کښې فرق وي او د منافع درمیان کښې څه مماثلت نشته ځنګه چې إعيان کښې څه مماثلت نهٔ وي ځکه چې منافع اعراض دي ، دواؤ زمانو پورې باقي پاتې کيدې نهٔ شي او دا غيرمتقوم دې او مال جوهر دې او دواؤ زمانو پورې باقي پاتې کيدې شي او متقوم هم دې -

**اعتراض** : اعتراض کيږي چې بيا د اجارې په صورت کښې تاسو د منافع ضمان ولې واجب کوئ ؟

**جواب** : هلته د متعاقدينو رضامندي ضروري وي او رضامندي سره اصل هم واجبيږي او زائد هم واجبيږي ليکن د غصب په صورت کښې رضامندي نشته

ليکن د امام شافعي صاحب په نزد په د عرف مطابق د منافع ضمان واجب وي ·

بيا دلته درې څيزونه دي ·

(۱) **مغصوب بنفسه** :

د دې ضمان به هلاک او استهلاک دواړو سره واجب وي -

(۲) **زوائد** لکه د څاروی پي او بچي وغيره د دې ضمان به نهٔ هلاک سره راځي او نهٔ استهلاک سره لکه په اس باندې سورلی کول

(۳) **منافع** : د احنافو په نزد ضمان نشته او د شوافعو په نزد ضمان واجب دې د احنافو په نزد د هلاک په صورت کښې ځنګه چې ماتن په تلف سره تعبير کړې دې او نه د استهلاک په صورت کښې چې هغه ماتن په اتلاف سره تعبير کړې دې -

**قوله** والقصاص لا يضمن بقتل القاتل

مصنف رحمه الله چې کوم اصول بیانکړل چې د کوم څیز مثل نه وی نو د هغې ضمان به هم نه وی په دې باندې د دویمې مسئلې تفریع کوی چې که قاتل یو اجنبی سړی قتل کړو نو د مقتول اول وارثان به د دې قاتل نه د ضمان مطالبه نهٔ کوی اګرچه د مقتول ثانی وارثان د دې اجنبی سړی نه د ضمان مطالبه کولې شی د دې وجه دا ده چې قصاص څه متقوم څیز نه دې او د دې څه مثل هم نشته لهذا د قصاص ضائع کیدو سره به په اجنبی باندې څه ضمان لازم نه راځی

**د امام شافعی صاحب مذهب** : د امام شافعی صاحب رحمه الله په نزد به دا اجنبی سړې ضامن وی ځکه چې قتل خطاء کښې دیت واجب دی نو معلومه شوه چې قصاص یو متقوم څیز دې

**د امام شافعی صاحب د دلیل رد** :

مونږ جواب ورکوو چې د قتل خطاء د پاره څه مثل نشته البته د مسلمان وینه د ضائع کیدو نه د بچ کولو په غرض سره مونږ دیت واجب کړو لیکن دلته اجنبی د مقتول د وارثانو هیڅ قسم نقصان نهٔ دې کړې بلکه د هغوی مدد یې کړې دې ځکه چې د هغوی دشمن یې قتل کړې دې لهذا ضمان به واجب نهٔ وی

**قوله** وملک النکاح لا یضمن بالشهادة بالطلاق بعد الدخول

په دې اصولو باندې دریمه مسئله تفریع کوی که دواړو سړو ګواهی ورکړه چې فلانی سړی د دخول نه پس ښځې ته طلاق ورکړې دې او قاضی د مهر ادا کولو او د جدایی فیصله کړې ده بیا ګواهانو د خپلې ګواهی نه رجوع اوکړه چې د دې طلاقه نهٔ دی

ورکړي نو زمونږ په نزد به دا خاوند د ګواهانو نه دهیڅ قسم مطالبه نهٔ کوی ځکه چې مهر خو په خاوند بانديې د جماع په وجه سره واجب شوي وو خواه طلاق ورکوی یا نهٔ ورکوی د دې ګواهانو په وجه خاوند ته صرف دومره نقصان اوشو چې ملک بضعه فوت شوه لیکن د بضعې څه مثل نشته ځکه چې که د بضعې مثل بضعه جوړوې نو دا حرام دی او که د بضعې مثل مال جوړوې نو دا جائز نه دی ځکه چې د بضعې په بدله کښې مال د ضرورت په بناء باندې صرف نکاح کښې ورکولې شی . د نکاح نه علاوه چرته هم د مال ورکول صحیح نهٔ دی د جماع قید مونږ په دې وجه اولګوو چې که ګواهانو ګواهی ورکړه چې دهٔ د جماع نه مخکښې درې طلاقه ورکړي دی نو دې صورت کښې به ګواهان د نیم مهر ضامن شی ځکه چې د جماع نه مخکښې احتمال وو چې شاید د عذر په وجه سره مهر ساقط شی لیکن د طلاق په وجه سره نیم مهر مؤکد شو په دې وجه به د نیم مهر مطالبه د دې ګواهانو نه کولې شی

**قوله**:ولابد للمامور به من صفة الحسن ضرورة ان الامر حکیم

### مامور به دپاره صفت حسن ضروری دې

مامور به دپاره د حسن صفت کیدل ضروری دی ځکه چې امر د حکیم ذات حکم دې او حکیم کله هم د بدې خبرې حکم نه ورکوی لیکن امام شافعی صاحب رحمه الله فرمائی چې د حسن او د قبیح فیصله کوونکې شریعت دې عقل ته په دې کښې هیڅ دخل نشته لیکن معتزله وائی چې د حسن او د قبیح فیصله کوونکې عقل دې او شریعت ته په دې کښې هیڅ قسم دخل نشته

**قوله** وهو اما ان يكون بعينه وهو اما ان لا يقبل السقوط او يقبله او يكون ملحقاً بهذا القسم لكنه مشابه لما حسن لمعنى في غيره كالتصديق والصلوة والزكوة

**د حسن په اعتبار سره د مامور به تقسيم**

د حسن په اعتبار سره د مامور به دوه قسمونه دي

(۱) حسن لعينه (۲) حسن لغيره

**د حسن لعينه تعريف** : د حسن لعينه مطلب دا دي چې بغير د څه واسطې نه د مامور به په ذات کښې حسن وي

**د حسن لعينه تقسيم** بيا د دې درې قسمونه دي

(۱) اول دا چې هغه حسن د مامور به نه کله هم نه ساقطيږي لکه تصديق چې تصديق کول په هيڅ يو حالت کښې هم نه ساقطيږي او تصديق حسن لعينه په دې وجه دې څکه چې د منعم شکر ادا کول د عقل په اعتبار سره هم واجب دي

(۲) دويم قسم دا دي چې د څه عذر په وجه د هغې حسن کله نا کله ساقطيږي لکه مونځ چې دا د حيض او د نفاس په صورت کښې ساقطيږي

(۳) دريم قسم دا دي چې د معنې په اعتبار سره هغه ملحق وي د حسن لعينه سره او مشابه وي د حسن لغيره سره لکه زکوة چې د ظاهر په اعتبار سره زکوة ورکول د مال ضائع کول دي ليکن په دې کښې حسن راغي د غريب د حاجت پوره کولو په اعتبار سره چې الله تعالى ته محبوب عمل دي بيا د غريب حاجت مند کيدل په خپل

اختیار سره نهٔ دی بلکه د الله تعالی پیدا کړې شوې دې

**دویم مثال** : دغه شان روژه فی نفسه خپل ځان اوږې تږې ساتل دی لیکن په دې کښې حسن راغې د نفس امارهٔ د مغلوب کولو په وجه باندې او نفس اماره الله تعالی پیدا کړې دې

**دریم مثال** : دغه شان حج بنفسه سیروسیاحت کول او پیسې ضائع کول دی اوخپل ځان د خپلوانو اورشته دارانونه لرې ساتل دی لیکن په دې کښې حسن راغلې دې د کعبې مبارکې د شرف په وجه سره او کعبې مبارکې ته الله تعالی شرف ورکړې دې **فکانت حسنة لعینها**

**قوله** : او لغیره وهو اما ان لا یتادی بنفس المامور به او یتادی او یکون حسناً لحسن فی شرطه بعد ما کان حسناً لمعنی فی نفسه او ملحقاً به کالوضوء والجهاد والقدرة التی یتمکن بها العبد من اداء مالزمه

**د حسن لغیره تعریف** :

چې کوم مامور به کښې حسن د غیر په وجه سره راغلې دې نو هغې ته حسن لغیره وئیلې شی

**د حسن لغیره تقسیم** د دې درې قسمونه دی

(۱) **رومبې قسم** :

دا دې چې هغه غیر په نفس مامور به ادا کولو سره نه ادا کیږی

(۲) **دویم قسم** :

دا دې چې هغه غیر په مامور به ادا کولو سره ادا کیږی

۳. **دريم قسم** دا دي چي مامور به کښې حسن وي د هغې په شرط کښې د حسن کيدو په وجه د شرط نه مراد قدرت دې ځکه چي الله تعالی په چا باندې د هغهٔ د طاقت نه زيات بوجهـ نه اچوی کما قال الله تعالی عزوجل لايکلف الله نفسا الا وسعها

دا دريم قسم جمهورو مستقل قسم نهٔ دې شمار کړې بلکه دا يې د باقي پنځو قسمونو د پاره شرط شمار کړې دې ځکه چي د قدرت کيدل د هر مامور به د پاره ضروری دی ماتن رحمه الله د علامه فخر الاسلام بزدوی رحمه الله په اتباع کښې دا د مستقل قسم په طور سره ذکر کړې دې

خو دا هغه حسن لعينه او ملحق بحسن لعينه وی د قدرت د شرط په بنا باندې به هغه حسن لغيره هم جوړيږی او چي کوم حسن لغيره دې هغه به دواړو اعتبارو سره حسن لغيره شی مثلاً اودس کښې يو حسن د مونځ په وجه سره دې ځکه چي اودس د مونځ چابي او وسيله ده او دويم حسن د قدرت د شرط کيدو په وجه سره دې

**د حسن لغيره د اقسام ثلاثه د مثالونو په ذريعې سره وضاحت**

په دې دريو واړو قسمونو کښې د اولنی مثال اودس دې چي في ذاته اودس لوبه او وخت ضائع کول دی يا صفائی او يخوالي حصلول دی ليکن په دې کښې د مانځه په وجه سره حسن راغې او مونځ صرف اودس کولو سره نهٔ ادا کيږی بلکه دا خانله ادا کولی شی او اودس خانله کولې شی ګويا که د حسن لغيره د قسم اول ادا کولو سره هغه غير نهٔ ادا کيږی چي د کوم غير په وجه سره په دې کښې حسن راغلې دې.

د دویم قسم مثال جهاد دي چې جهاد فی ذاته د الله تعالی بندګانو ته عذاب ورکول . هغوی قتلول . د هغوی کورونه ورانول او فصلونه سیزل دی لیکن په دې کښې حسن راغي د اعلاء کلمة الله په وجه سره او اعلاء کلمة الله به صرف جهاد سره ادا کیږی د دې دپاره د یو جدا فعل (یعنی د غیر) ضرورت نشته . دې قسم کښې حدود او قصاص هم شامل دی چې قصاص او حدود فی ذاته بندګانو ته تکلیف ورکول دی لیکن په دې کښې حسن راغي خلقو له د ګناهونو نه د بچ کولو په وجه

دغه شان د جنازې مونځ هم د دې قسم مثال دې چې بنفسه دا د بتانو د عبادت مشابه دې لیکن په دې کښې حسن راغي د مسلمانانو د حقوقو ادا کولو په وجه سره

دا ټول مثالونه د هغې حسن لغیره دی چې په هغې کښې د مامور به په ادا کولو سره غیر په خپله ادا کیږی دا مونږ په حسن لغیره کښې ځکه شمار کړل ځکه چې دلته کومې واسطې یعنی د کافر کفر او د مړی مسلمان کیدل او د مناهی د حرمت ماتیدل دا ټولې واسطې د بندګانو په اختیار کښې دی لهذا د دې به اعتبار کولې شی په خلاف د زکوة ، روژې او حج کښې چې دا د الله تعالی له طرفه لاګو شوې دی لهذا د دې به اعتبار نه شی کولې او دا به مونږ په حسن لعینه کښې شمار کوو

۳: د دریم قسم مثال . قدرت دې دا د هغې شرط مثال دې چې د هغې په وجه په مامور به کښې حسن راغلې وی د مطلق مامور به مثال نه دې البته که دلته مضاف مقدر اومنلې شی او دغه شان اووئیلې شی و شرط القدرة نو دا به د مامور به مثال شی

بیا د دې قدرت نه هغه قدرت حقیقة مراد نهٔ دې چې هغې سره فعل وی ځکه چې هغه قدرت د فعل نه وړاندې نهٔ وی لهذا هغه د مکلف جوړولو مدار نه شی جوړیدې بلکه د دې قدرت نه مراد هغه قدرت دې چې د اسبابو او د آلاتو د سلامتیا او د اعضاء د صحیح کیدو په معنی کنبې دې ځکه چې دا قدرت د فعل نه وړاندې وی لهذا د مکلف جوړولو مدار جوړیدې شی نو په دې بناء باندې ونیلې شی چې د اودس کولو قدرت به هغه وخت وی چې کوم وخت اوبهٔ وی ورنه تیمم به کوی او د زکوة قدرت به هغه وخت وی چې کله د نصاب مالک وی ورنه زکوة به معاف وی بیا د دې قدرت دوه قسمونه دی

**قوله**: وهی نوعان مطلق وهو ادنی ما یتمکن به المامورین من اداء ما لزمه وهوشرط هی اداء کل امر و الشرط توهمه لا حقیقته۔

**د قدرت قسم اول قدرت ممکنه**:

۱۔ اول مطلق قدرت دې او دا د هغې ادنی قدرت نوم دې چې د هغې په وجه سره مکلف د مامور په ادا کولو باندې قادر وی او دا د هر امر د ادا کولو دپاره شرط دې او د دې دومره مقدار شرط دې چې په هغې کنبې مامور به ادا کړې شی

**نکته**: مصنف ﷫ په مقسم او قسم کنبې د فرق کولو دپاره قسم کنبې د ادنی قید زیات کړې دې ځکه چې د مقسم یعنی د قدرت تعریف .مایتمکن بها العبد دې او د قسم ادنی مایتمکن بها البعد

دي او د ادنی قید په وجه سره د انقسام الشئ الی نفسه والا اعتراض هم نهٔ شی کیدې

۱ بیا دا قدرت ممکنه صرف د ادا دپاره شرط دې د قضاء دپاره مطلقاً شرط نهٔ دي بلکه د قضاء دپاره به هغه وخت شرط وی چې کله د مطلوب فعل ادائیګی اوشی ورنه بیا به وصیت وی یا به د عدم ایصاء په وجه باندې ګناهګار وی مزید دا چې بیا د دې قدرت صرف امکان شرط دې حقیقتاً د دې موندل شرط نه دي

**قوله** : حتی اذا بلغ الصبی او اسلم الکافر او طهرت الحائض فی اخر الوقت لزمته الصلوة لتوهم الامتداد فی اخر الوقت بوقوف الشمس

**تشریح** : مثلاً د ماسپخین څلورو رکعتو دپاره دا ضروری نهٔ ده چې دومره وخت حقیقتاً اوموندې شی چې په هغې کښې څلور رکعته اوکړې شی بلکه صرف د دې امر امکان کافی وی چې وخت د الله تعالی له طرفه اوږد شی لهذا که بالکل آخری وخت کښې ماشوم بالغ شو یا کافر مسلمان شو یا حائضه د حیض نه پاکه شوه نو په دوی باندې به د ماسپخین مونځ لازم شی اګرچه صرف دومره وخت باقی وی چې په هغې کښې صرف تکبیر تحریمه وئیلې کیدې شی ځکه چې د نمر رفتار اودریدو سره د وخت د اوږدیدو احتمال شته چې په هغې کښې دا افراد مونځ ادا کړې شی لکه څنګه چې د حضرت سلیمان علیہ السلام او حضرت یوشع بن نون علیہ السلام او حضرت علی المرتضی رضی الله عنه دپاره چې وخت اوږد شوې وو د حضرت سلیمان علیہ السلام والا روایت د نورو روایتونو په مقابله کښې زیات

قوي دي او تفاسيرو كښې هم مذكور دي ليكن باقي دواړه روايتونه ضعيف دي

**قوله** وكامل وهو القدرة الميسرة للاداء ودوام هذه القدرة شرط لدوام الواجب •

**د قدرت دويم قسم قدرت كامله**

د قدرت دويم قسم قدرت كامله دې او دې ته قدرت ميسره هم وئيلې شي ځكه چې د دې په وجه سره د مامور به ادا كول آسانيږي او ميسره مشتق دې د يسر (آسانتيا) نه او د واجب د دوام دپاره د دې قدرت دوام شرط دې كه دا قدرت اونهٔ مونديې شو نو واجب به هم پاتې نهٔ شي

**قوله** حتى تبطل الزكوة والعشر والخراج بهلاک المال

چونكه دوام د قدرت شرط دې په دې وجه كه مال هلاک شي نو زكوة عشر او خراج معاف كيږي ځكه چې زكوة باندې اصل قدرت خو صرف د مال مالک جوړيدو سره حاصليږي ليكن چې كله په دې كښې د نصاب او د حولان شرط اولګولي شو نو معلومه شوه چې په دې كښې قدرت ميسره دې لهذا كه پوره نصاب هلاک شو نو زكوة به ساقط شي ليكن كه بعضې نصاب هلاک شو نو په باقي مال باندې به زكوة واجب وي ځكه چې ابتداء كښې د نصاب شرط صرف د مالدارۍ دپاره ثبوت دې نو چې هر كله مالداري اوموندې شوه او د دې نه پس بعضې مال هلاک شو نو په باقي مال كښې د دې حصې مطابق يسر (قدرت ميسره) باقي دې۔

دغه شان عشر کښې قدرت ممکنه صرف په زراعت سره حاصلیږی نو چې هرکله دې کښې دا شرط اولګولې شو چې نهه حصې به د زمکې د پیداوار د مالک سره وی نو معلومه شوه چې په دې کښې قدرت میسره دې لهذا که پټې هلاک شو نو عشر به ساقط شی او دغه شان خراج کښې قدرت ممکنه صرف د زمکې مالک کیدو سره حاصلیږی لیکن چې کله په دې کښې دا شرط اولګولې شو چې د زمکې مالک د دې زمکې په کرلو باندې قادر وی ، او به هم وی ۰ د زمینداریٔ آلات هم وی نو معلومه شوه چې په دې کښې قدرت میسره دې لهذا که غله هلاکه شوه نو خراج به ساقط شی۔

**قوله** : **بخلاف الاولی حتی لا یسقط الحج وصدقة الفطر بهلاک المال ۔**

لیکن چې د کومو عباداتو دپاره قدرت ممکنه شرط دې د هغې دپاره د قدرت دوام شرط نهٔ دې لکه حج او صدقة فطر ځکه چې حج په قدرت ممکنه سره واجبیږی یعنی لږې توشې او یو سواری سره حالانکه په دې کښې قدرت میسره خو دا وه چې یو څو خادمان وو او څو سواری وې او ډیر مال وې ، دغه شان صدقه فطر هم په قدرت ممکنه سره ثابتیږی ځکه چې نه خو په دې کښې د کال تیریدل شرط دی او نه د مال زیاتیدل شرط دی لهذا د مال هلاکیدو سره به حج او صدقه فطر نه ساقطیږی۔

**قوله** : **وهل تثبت صفة الجواز للمامور به اذا اتی به قال بعض المتکلمین لا والصحیح عند الفقهاء انه تثبت به صفة الجواز للمامور به وانتفاء الکراهة ۔**

**د مامور به دپاره به صفت جواز کله ثابتیږی:**

چې کله مکلف سړې مامور به ادا کړی نو محض ادا کولو سره علماء کرام وائی چې د مامور به دپاره به د جواز صفت ثابت شی یعنی مونږ به دا فیصله اوکړو چې مامور به ادا شو او هم دا د جمهورو مذهب دې لیکن بعض متکلمین دا وائی چې ترڅو داسې یو خارجي دلیل اونهٔ موندې شی چې په دې خبره باندې دلالت اوکړی چې مکلف د ټولو شرائطو لحاظ ساتلې دې نو هغه وخت پورې به مونږ په دې مامور به باندې د جواز حکم نهٔ لګوو

**د متکلمینو دلیل** هغوی قیاس کړی کهٔ یو سړې د وقوف عرفات نه وړاندې د جماع په ذریعې سره حج فاسد کړی نو هغهٔ ته به حکم ورکولې شی چې هغه باقی ارکان هم د نورو حاجیانو په شان ادا کړی لیکن د دې باوجود به هم دهٔ دپاره د جواز صفت باقی نهٔ وی.

لیکن علماء وائی چې صرف په فعل کولو سره د دهٔ دپاره د جواز صفت به ثابت شی او د کراهیت نفی به اوشی ورنه تکلیف مالایطاق به لازم شی البته که یو مستقل دلیل سره د مامور به په ادا کیدو کښې څه فساد ثابت شی نو مونږ به د مامور به د فاسد کیدو حکم لګوو. هم دې لره صاحب نورالانوار داحنافو په نزد صحیح مذهب ګرځولې دې او د ماتن د قول (والصحیح) نه هم دا معلومیږی

**متکلمینو ته جواب** پکار خو دا وه چې د امتثال اوامر او د ارکانو د ادائیګی په وجه سره د حج د صحت حکم لګولې شوې وې لیکن د مستقل دلیل په بناء باندې آئنده کال د حج حکم اولګولې شو چې ګوی قضاء نهٔ ده مستقل حج دې

امام ابوبکر رازی رحمه الله فرمائی چې صرف امتثال امر سره به د کراهیت نفی نه کیږی بلکه د کراهیت تشبه باقی پاتې کیږی مثلاً نن ورځ د مازیګر مونځ د نمر پریوتلو نه پس اګرچه د مونځ د جواز حکم ورکړې شوې دې دا فعل شرعاً مکروه دې۔

**امام رازی ته جواب** : د دې جواب دا دې چې کراهیت نفس مامور به کښې نه دې بلکه د خارجی معنی په وجه سره دې او هغه د نمر د عبادت کوونکو سره مشابهت دې

**قوله**: واذ عدمت صفة الوجوب للمامور به لا تبقى صفة الجواز عندنا خلافاً للشافعى

**د منسوخ الوجوب د پاره د صفت جواز ثابت دې یا نهٔ ؟**

که یو څیز مخکښې واجب وی بیا د هغې وجوب منسوخ شی نو زمونږ په نزد د دې جواز هم باقی نهٔ پاتې کیږی لیکن امام شافعی رحمه الله فرمائی چې د دې جواز به باقی وی

**د امام شافعی رحمه الله استدلال** هغوی د عاشورې د ورځې د روژې نه استدلال کوی چې دا اول فرض وه او اوس د دې فرضیت منسوخ شوې دې لیکن د دې استحباب اوس هم دې

**د احنافو دلیل** : زمونږ دلیل دا دې چې د بنی اسرائیلو په شریعت کښې د ګناه کوونکو اندامونو کټ کول واجب وو او اوس د هغې وجوب بالاتفاق منسوخ شوې دې نو جواز یې هم منسوخ شوې دې

**امام شافعی ته جواب** :

باقی د عاشورې د روژې استحباب په بل نص سره ثابت دې

**د اختلاف نتیجه** د دې اختلاف نتیجه به د یمین په کفاره کښې ږغږي چې د حانث کیدو نه مخکښې د کفارې وجوب بالاتفاق منسوخ شوې دې لیکن د امام شافعی رحمہ اللہ په نزد د دې جواز اوس هم باقی دې لیکن زمونږ په نزد جواز هم باقی نۀ دې

**قوله** والامر نوعان مطلق عن الوقت كالزكوة وصدقة الفطر وهو على التراخى خلافاً للكرخى لئلا يعود على موضوعه بالنقض ومقيدا به لانه اما ان يكون الوقت ظرفاً للمؤدى وشرطاً للاداء وسببا للوجوب كوقت الصلوة

**د امر تقسیم** بیا د امر دوه قسمونه دی

(۱) مطلق عن الوقت (۲) مقید بالوقت

**د مطلق عن الوقت تعریف** د مطلق عن الوقت مطلب دا دې چې دا د امر په فوت کیدو سره نۀ فوت کیږی لکه زکوة او صدقه فطر ، په مطلق امر کښې زمونږ په نزد د تاخیر گنجائش شته لیکن د امام ابوالحسن الکرخی الحنفی رحمہ اللہ په نزد گنجائش نشته یعنی د هغوی په نزد به تاخیر سره گناه لازمیږی چې ترڅو په آخری عمر کښې د مرگ علامت حالت نزع اونۀ مونديږي شي

**مقید بالوقت** هغه امر چې په هغې کښې د وخت قید په دې طور سره وی چې د هغې فوت کیدو سره مامور به هم فوت شی یا قضاء ورته اوونیلې شي

الغرض د امر دويم قسم مقید بالوقت دې او د دې څلور قسمونه دی

(۱) رومبی قسم دا دي چې وقت د مؤدی دپاره ظرف وی . د ادائیګی دپاره شرط وی او د وجوب دپاره سبب وی

**د وخت ظرف کیدل** : د ظرف کیدو مطلب دا دي چې د مامور بـه د ادا کیدو نه پس وخت بچ شی که وخت بچ نهٔ شی نو دې تـه د وخت معیار کیدل وئیلې کیږی

**د وخت شرط کیدل** : د شرط کیدو مطلب دا دي چې دا د وخت نـه مخکښې ادا کول جائز نهٔ وی

**د وخت سبب کیدل** : او د سبب کیدو مطلب دا دي چې د مامور بـه په واجب کیدو کښې د.دې وخت هم اثر وی اګرچـه مؤثر حقیقـی پـه هر څیز کښې د الله تعالی ذات دي لیکن چونکـه هـر وخـت د الله تعالی لـه طرفـه نعمتونـه وصولیږی لهٰذا ظـاهری اعتبـار سـره بـه د وجوب نسبت د وخت طرفتـه کولې شـی لکـه د مـونځ وخت چې د مونځ دپاره ظرف ، شرط او د وجوب سبب دي

**اعتراض** : چې هرکله وخت د مانځه دپاره شرط دې نو مونځ د وخت نه مخکښې کیدل پکار دی ځکه چې مشروط د شرط نه مقدم وی

**جواب** : کـه شـرط شرط وجـوب وی نـو مـشروط د هغـې نـه مقدم کیدي شی لکـه زکوة د کـال تیریـدو نـه مقـدم کیـدې شـی لیکن کـه شرط شـرط جـوازی وی نـو مـشروط د شرط نـه مقـدم کیـدي نهٔ شـی لکه مونځ د ځیل وخت نه مقدم کیدي نهٔ شی

الغرض د مونځ دپاره وخت شرط دجواز دي چې د مشروط نه مقدم کیدې شی او مشروط د دې نه مقدم کیدې نهٔ شی ـ

**دویم جواب :**

دا دي چي د وخت دوه حیثیتونه دی او دا د شرط په شان د مونځ دپاره سبب هم دي او مسبب د سبب نه کله هم مقدم کیدئ نهٔ شی ـ

**نفس وجوب او وجوب اداء**

نفس وجوب او وجوب اداء دوه مختلف څیزونه دی چي د دي فرق د دي تعریفونو نه په ښهٔ طریقي سره سمجهه کښي راځی

**د نفس وجوب تعریف** نفس وجوب هغه دي چي د هغي حقیقی سبب ایجاد قدیم دي او ظاهری سبب وخت دي

**د وجوب اداء تعریف** : وجوب اداء هغه ده چي د هغي حقیقی سبب طلب دي او ظاهری سبب امر دي بیا د ظاهر په اعتبار سره ظرفیت او سببیت دواړه نهٔ شی جمع کیدي ځکه چي مؤدی که وخت کښي ادا کړی نو سبب نهٔ شی جوړیدي او وخت کښي ادا نه کړي شی نو ظرف نه شی جوړیدي په دي وجه علماء کرامو وئیلي دی چي د مونځ دپاره ظرف ټول وخت دي . شرط مطلق وخت دي او سبب هغه جز دي چي اداء سره متصل وی

**قوله** : و هو اما ان یضاف الی الجزء الاول او الی ما یلی ابتداء الشروع او الی الجزء الناقص عند ضیق الوقت او الی جملة الوقت ـ

**د آمر مقید تقسیم**

د امر مقید د دي وړومبی قسم څلور قسمونه دی

**وجه حصر** : د امر مقید بالوقت په قسم اول کښي د وجوب اضافت

یا خو به د وخت جزء اول طرفته وی یا به د مونځ د وخت شروع طرفته وی یا به د جزء ناقص طرفته وی یا به د کل وخت طرفته وی

(۱) ورومبي قسم دا دي چې کۀ يو سړي په اول وخت کښې مونځ ادا کړی نو د وجوب نسبت به جزء اول طرفته وی

(۲) دویم قسم دا دي چې که روستوئي يو صحيح وخت کښې ادا کړو نو د وجوب نسبت به جزء متصل طرفته وی

(۳) دریم قسم دا دي که صحیح وخت کښې يې ادا نکړې شو نو د وجوب نسبت به جزء ناقص طرفته وی لکه څنګه چې نماز عصر کښې وی

(۴) څلورم قسم دا دي چې که وخت کښې دننه بالکل ادا نکړې شو او مونځ قضا شو نو د وجوب نسبت به د ټول وخت طرفته وی

**د جزء ناقص په مقدار کښې د ائمه کرامو اختلاف**

د احنافو په نزد دومره مقدار چې په هغې کښې د مونځ احرام اوتړلي شي چې د هغې اندازه تقريباً يو يا دوه منټه دی د امام زفر حنفی رحمه الله په نزد دومره مقدار چې په هغې کښې د مازيګر څلور رکعته ادا کړې شي چې د هغې اندازه د څلورو نه شپږو منټو پورې ده بهرحال په دې دواړو صورتونو کښې به سببيت نه منتقل کيږی ځکه چې دا سې صورت کښې به د يو دا سې څيز مکلف جوړول لازم راشي چې د هغې ادائيګی ناممکن وی نو تکليف مالايطاق دې۔

بيا مونځ که وخت کامل کښې واجب وی او مينځ کښې فساد پيښ شی نو مونځ به باطل شی لکه څنګه چې فجر کښې وی او که ناقص وخت کښې واجب شی نو فساد پيښيدلو سره به مونځ نه باطليږی لکه مازيګر کښې چې څنګه وی۔

**د مایلي ابتداء الشروع مطلب**

مصنف رحمه الله چي او فرمائیل چي ( مـایلي ابتداءالشروع)دا جزء اول او جزء ناقص دواړو ته شامل دي لیکن د دې باوجود یې جزء اول ځکه صراحتاً ذکر کړو چې د جمهورو په نزد د دې لهمیت دې او په ذّې مونځ ادا کول مستحب دی او جزء ناقص یې ځکه ذکر کړو چې په دې کښې د امام زفر صاحب اختلاف دې

**قوله**: فلهذا لا یتادی عصر امسه فی الوقت الناقص بخلاف عصر یومه۔

**تفریع**: چې کله مونځ په وخت کښې ادا نکړې شی نو پوره وخت به د وجوب سبب وی او پوره وخت خو کامل دې په دې باندې به هم کامل مونځ واجب وی لهذا د تیر شوي مازیګر مونځ په وخت ناقص کښې نهٔ ادا کیږی ځکه چې هرکله د دې سبب کامل وخت دې نو د دې قضاء به هم کامل وخت کښې کولې شی لیکن د نن ورځې د عصر مونځ په ناقص وخت کښې هم کولې شی ځکه چې د دې د وجوب سبب ناقص وخت دې

**اعتراض** اعتراض کیږی چې که یو سړې د عصر مونځ په اول وخت کښې شروع کړی او دا غروب شمس پورې اوږد کړی نو دا مونځ د واجب نه کامل پورې شوې وو لیکن دهٔ ناقص ادا کړې دې

**جواب** عزیمت دا دې چې مونځ په پوره وخت کښې ادا کړې شی نو اعتراض مذکوره کښې په عزیمت باندې عمل کړې شوې دې او چې کوم سړې په عزیمت باندې عمل کوی نو هغه د مکروه وخت نه

بچ كيدې نۀ شى لهذا دا لږ شان كراهيت معاف كړې شو

**قوله** : وحكمه اشتراط التعيين ولا يسقط لضيق الوقت ولا يتعين بالتعيين الا بالاداء كالحانث فى اليمين

**د قسم اول حكم** : د امرمؤقت د دې وړومبى قسم حكم دا شو چې په دې كښې د تعين نيت شرط دې ځكه چې وخت ظرف دې او هغه اداء ، قضاء او د نفلو د ټولو صلاحيت لرى لهذا نيت سره معين كول ضرورى دى او كه د څۀ عذر په وجه سره وخت تنگ شوې وى نو بيا به هم نيت تعين نه ساقطيږى او هيڅ يو وخت به هم هله معين وى چې كله په هغې كښې مونځ ادا كړى لهذا يو سړى په ژبې سره يا زړۀ سره يو وخت معين كړو ليكن مونځ يې بل وخت كښې ادا كړو نو هغه مونځ به هم ادا شمارلې شى قضاء به نه شمارلې كيږى

لكه څنګه چې يو حانث فى اليمين سړې يوه كفاره معين كړى ليكن بيا بله كفاره وركړى نو جائز دى

**قولــه** : او يكون معياراً لـه وسبباً لوجوبـه كـشهر رمضان فيصير غيره منفياً ولا تشترط نيـة التعيين وهـو فيما قلنا فيصاب بمطلق الاسم ومع الخطاء فى الوصف

**د امر مقيد بالوقت دويم قسم** :

د امر مقيد بالوقت دويم قسم دا دې چې وخت د مامور به دپاره معيار وى او د هغې د وجوب دپاره شرط وى ليكن د اداء دپاره شرط نۀ وى چونكه وخت معيار دې لهذا وخت به اوږد وى نو مامور به هم طويل وى او كه وخت مختصر وى نو مامور به هم

د قضاء و کفارې وغیره حکم چې د مسافر په د رمضان المبارک
روژه ماته کړې نو لهذا هغه په خبره دی چې حوږ که حکم کوی
په ځوی ـه واجب روژه اونیسي عملاً د رمضان المبارک قضاء به د
کفارې روژه لیکن د صاحبینو په نزد د مسافر د نذر د دوبیم قسم روژه
نیول د رمضان المبارک د روژونه علاوه بیون هم صحیح نه دی
ځکه چې دا ته رخصت ورکړی شوی وو د ... لیکن چې
هرکله دا په هغې رخصت باندې عمل اونکړو نو حکم به د حال
حال ظرفنه واپس کیږی او هم د رمضان روژه به په ده باندې فرض
وی ځکه چې په نورو خلقو باندې فرض ده

لیکن که بیمار سړی د فرض روژې نه علاوه د بلې روژې
نیت اوکړی نو تعلق به عجز حقیقی سره وی په خلاف د مسافر سړی
چې هلته مدار رخصت عجز حکمی دی لهذا چې هغه د بیمارۍ
باوجود دویمه روژه نیسي نو معلومه شوه چې عجز نه دی لهذا
حکم به اصلی واپس کیږی او د ده روژه به هم د رمضان وی

هرکله چې د روژې نیولو په صورت کښې د مریض مرض
نور هم زیاتیږی نو بعضې خلقو په دې دواړو خبرو کښې د هغه شان
تطبیق کړی دی چې کله داسې بیماری وی چې په کښې روژه نیول
نقصان ورکوی نو د دې تعلق د عجز تقدیری سره دی او کله داسې
بیماری وی چې روژه نقصان نه کوی نو د دې تعلق د عجز حقیقی
سره دی

که مسافر د واجب په ځای د نفل روژې نیت اوکړی نو د
دې سړی باره کښې د امام صاحب نه دوه روایتونه دی د امام حسن
بن زیاد رحمه الله د روایت مطابق مسافر نفلي روژه نیولې شي ځکه چې

الله تعالى ورته د افطار رخصت ورکړې دې او د دويم روايت مطابق چې د ابن سماعه نه نقل دې مسافر نفلي روژه نهٔ شي نيولې بلکه هغه روژه به هم د رمضان روژه وي ځکه چې دهٔ ته د افطار رخصت ورکړې شوې وو د ارام او سکون دپاره ليکن چې هغه آرام او سکون نهٔ غواړي نو د دين منافع حاصلول ورته پکار دي او هغه دا چې په دهٔ باندې کومه قضاء يا کومه کفاره واجب ده نو هغه روژې دې اونيسي ځکه چې که دې رمضان کښې فوت شي نو د دهٔ به د دې رمضان د روژو باره کښې سوال نهٔ کيږي ليکن د قضاء او د کفارې روژو باره کښې به ترينه سوال کيږي ليکن د نفلي روژو دا اهميت نهٔ دې لهذا مسافر نفلي روژه نهٔ شي نيولې۔

**قوله** او يکون معياراً له لا سبباً لقضاء رمضان والنذر المطلق

### د امر مقيد بالوقت دريم قسم

د امر مؤقت دريم قسم دا دې چې وخت د مامور به دپاره معيار وي ليکن سبب نهٔ وي لکه د رمضان المبارک قضاء ځکه چې د قضاء سبب هم هغه دې چې کوم د اداء سبب دې ليکن دا ورځې د قضاء د روژو دپاره معيار دي او څنګه چې نذر مطلق د دې وخت هم د دې دپاره معيار دې ليکن د وجوب دپاره سبب نهٔ دې باقي پاتې شو نذر معين نو بعضې خلق وائي چې دا په بعضې احکامو کښې د قضاء رمضان سره شريک دې لکه د وخت معيار کيدل او بعضې احکامو کښې د نذر مطلق سره شريک دې لکه د وخت د وجوب دپاره سبب نهٔ کيدل بعضې خلق وائي چې نذر معين د رمضان سره شريک دې په معيار کيدو او د وجوب په سبب کيدو کښې هم

**نكته**: صاحب حسامي رحمه الله فرمائيلي دی چي نذر معين د صوم رمضان د جنس نه دي د غه شان هغوی قضاء رمضان او نذر مطلق د امر مطلق په قسم کښي شمار کړي دی نه چي امر مؤقت کښي او هغوی دا د زکوة او صدقه فطر د قبيل نه شمار کړي دی او هم دا خبره ډيره صحيح معلوميږی

**قوله**: وتشترط فيه نية التعيين ولا يحتمل الفوات بخلاف الاولين وكذا يشترط فيه التبييت بخلاف الاولين

**د دريم قسم حکم**

په دې دريم قسم کښي د نيت د تعين هم شرط دي او د شپې نه نيت کول هم شرط دي ځکه چي د رمضان نه علاوه باقی ټولي ورځي د نفلی روژو احتمال لری لهذا د نذر مطلق دپاره د شپې نه نيت کول ضروری دی او په دې کښي د فوت کيدو احتمال هم نشته بلکه چي کله هم روژي نيسي نو ادا کيږی به په خلاف د اولنو دواؤ قسمونو يعنی د صلوة او د صوم چي په هغي کښي د فوت کيدو احتمال شته ځکه چي بعد کښي به بيا قضاء شمارلي شي

**قوله**: او يكون مشكلاً يشبه المعيار والظرف ويتادى باطلاق النية لا بنية النفل ويتعين اشهر الحج من العام الاول عند ابويوسف رحمه الله خلافاً لاحمد رحمه الله

**د امر مؤقت څلورم قسم**:

د امرمؤقت څلورم قسم دا دي چي د مامور به وخت مشکل او مشتبه الحال وی د مشکل کيدو معنی دا چي په دي کښي

شتبه وي چې يو اعتبار سره د ظرف مشابه وي او دويم اعتبار سره د معيار مشابه وي ځکه د حج وخت دا دواړ طريقو سره مشکل او مشتبه الحال دی ځکه چې کله مونږ دې خبرې ته ګورو چې د حج وخت دوه نيمې مياشتې شوال . ذوالقعده او د ذی الحجې لس ورځې دی ليکن حج صرف په يو څو ورځو کښې يعنی د ذی الحجې په ولنی عشره کښې ادا کيږی لهذا دا ماقبل مياشتې د ضرورت نه زياتې شوې نو مونږ وايو چې وخت ظرف دې او چې کله مونږ دې خبرې ته ګورو چې په ټوله عرصه کښې صرف يو حج کيږی نو مونږ وايو چې وخت معيار دې دويمه اشتباه دا ده چې په ټول ژوند کښې صرف يو حج فرض دې که يو سړې د حج فرض کيدو نه پس څو کاله ژوندې وو نو د دهٔ دپاره وخت وسيع دې چې کله هم اوغواړی نو حج کولې شی ليکن که د حج فرض کيدو نه پس څو کاله ژوندې پاتې نه شی نو د دهٔ دپاره وخت تنګ دې يعنی که وراثانو ته يې وصيت هم نه وو کړې او مړ شو نو ګناهګار به وی

امام ابويوسف صاحب د دې تنګی د لحاظ کولو په وجه سره فرمائی چې هم په اولنی کال باندې حج کول ضروری دی ځکه چې د راروان کال باندې ژوندی پاتې کيدل يقينی نهٔ دی او امام محمد رحمه الله د وسعت لحاظ ساتلو په وجه باندې فرمائی چې کله هم اوغواړی نو حج کولې شی ليکن شرط دا دې چې حج ترې نه فوت نهٔ شی

**د اختلاف ثمره**

د دې اختلاف نتيجه به دا وی چې د امام ابويوسف صاحب په نزد به تاخير کوونکې سړې فاسق او مردود الشهادة وی ليکن که حج يې اوکړو نو د دهٔ ګواهی به دوباره قبلولې شی د دې

برعکس د امام محمد صاحب په نزد به گناه صرف د مرګ په وخت وی تاخیر سره هیڅ قسم فسق لازم نه راځی

## د څلورم قسم حکم

د امر مؤقت د څلورم قسم حکم دا دې چې مطلق نیت سره به ادا کیږی لیکن د نفل په نیت سره به نه ادا کیږی بلکه که د نفل نیت یې اوکړو نو هم نفل به ادا کیږی لیکن د امام شافعی صاحب په نزد به دې صورت کښې هم فرض حج ادا کیږی مونږ وایو چې چونکه دا قسم د ظرف او د معیار دواړو مشابه دې نو د معیار کیدو په وجه به مطلق نیت سره ادا شی دې صورت کښې حج د روژې سره مشابه دې او د ظرف کیدو په وجه به د نفل نیت سره حج نه ادا کیږی څنګه چې فرض مونځ د نفل په نیت سره نه ادا کیږی

**قوله** : والكفار مخاطبون بالامر بالايمان وبالمشروع من العقوبات والمعاملات

## کفار د کومو اوامرو مخاطب دی ؟

کفار د ایمان عقوبات او د معاملاتو مخاطب دی د ایمان مخاطب خو ځکه دی چې د ایمان حکم خو حقیقت کښې کافرانو ته وی او دا حکم چې (یایهاالذین آمنوا آمنوا) دې نو دلته امر بالایمان د ثبات او د زیاتی دپاره دې او د عقوبات مخاطب ځکه دی چې د دنیا نظام صحیح ساتلو دپاره او خلقو لره د ګناهونو نه منع کولو دپاره څنګه چې مسلمانانو باندې حدود او قصاص جاری کیږی دغه شان به په کافرانو باندې هم جاری کیږی خاص طور سره د امام

صاحب په نزد ځکه چې د امام صاحب په نزد حدود او قصاص زواجر دی ستر نه دی یعنی دې سره په آخرت کښې د درجاتو رفع نه کیږی د غه شان هغوی د معاملاتو هم مخاطب دی ځکه چې زمونږ او د هغوی درمیان کښې معاملات وی نو څنګه چې مسلمان په خپل مینځ کښې معاملات کوی نو د غه شان کافرانو سره هم کوی ماسوا د شراب او خنزیر نه ځکه چې دا د کفارو دپاره حلال دی او زمونږ دپاره حرام دی لکه د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارک دې (الخمر لهم کالخل لنا........الخ)

**قوله** وبالشرائع فی حکم المواخذة فی الاخرة بلا خلاف

او هر چې عبادات او شرائع دی نو کفار د عباداتو او د شرائعو هم مخاطب دی د آخرت د مواخذې په حق کښې یعنی د فرائضو او واجبتو د اعتقاد پریخودلو په وجه سره به ورته آخرت کښې عذاب ورکولې شی څنګه چې قرآن پاک کښې دی، ماسلککم فی سقر) یعنی کله چې جنتیان د جهنمیانو نه سوال اوکړی چې څه خبره ده تاسو جهنم ته راوستی نو هغوی به جواب کښې اووائی لم نك من المصلین یعنی مونږ به مونځ نه کوو

ای لم نکن من المعتقدین للصلوة المفروضة کما قال صاحب نورالانوار

**قوله** و اما فی وجوب الاداء فی احکام الدنیا فکذلک عند البعض ـ

بعضې خلق وائی چې د امام شافعی او د مشائخ عراق په نزد کفار د عباداتو د وجوب ادا هم مخاطب دی لیکن شارح فرمائی چې دا خبره صحیح نه معلومیږی ځکه چې د امام شافعی رحمه الله په نزد

هم نه خو د کافرانو عبادت صحیح دي او نه په هغوی باندي قضاء واجب وی د اسلام راوړلو نه پس لهذا هغوی څنګه ونیلي شی چي په کافر باندي ادا کول واجب دی نو د هغوی د خبري مطلب به دا شی چي د صلوا د حکم نه مخکښي آمنوا مقدر اومنلي شی

**قوله** : والصحيح انهم لا يخاطبون باداء ما يحتمل السقوط من العبادات

**د احنافو مذهب** : احناف وائی چي عبادات په دوه قسمه دی

(۱) هغه عبادات چي د څه عذر په وجه ساقط کیدي شی مثلاً مونځ او روژه چي د حیض و نفاس او بیمارۍ په وجه سره سقاط کیږی.

(۲) هغه عبادات دی چي په هیڅ یو صورت کښي هم د ساقط کیدو احتمال نهٔ لری لکه ایمان نو د احنفو په نزد کفار د اولنی قسم عباداتو مخاطب نه دی لیکن د دویم قسم عباداتو مخاطب دی یعنی هغوی د مونځ . روژي د ادائیګۍ مخاطب نه دی لیکن په توحید و رسالت باندي ایمان راوړل پري لازم دی او که ایمان نهٔ راوړی نو د هغوی نه به دي باره کښي تپوس کولي شی او مواخذه به پري وی .

# د نهي بحث

**قوله** ومنه النهي وهو قوله على سبيل الاستعلاء لا تفعل.

**د خاص يو بل قسم نهي ده**

**د نهي تعريف**

«قول القائل لغيره على سبيل الاستعلاء لا تفعل»_ يعني د ويونكي بل چا ته د خپل ځان نه ښکته کېدونکي سړي ته دا ووايي چه: دا مه کوه!

**قوله**

وانه يقتضي صفة القبح للمنهي عنه ضرورة حكمة الناهي

يعنې څنګه چې د مامور به د پاره د حسن تقاضه ضروري وي دغه شان نهي هم د منهي عنه د پاره د قبح تقاضه کوي ځکه ناهي حکيم دی او حکيم ذات د داسې څيز نه منع کوي چې قبيح او شنيع وي كما قال تعالى وينهى عن الفحشاء والمنكر

**قوله** اما ان يكون قبيحا لعينه وذلك نوعان وضعاً وشرعاً او لغيره وذلك نوعان وصفا ومجاورا

**د نهي تقسيم** يعنې د قبح په اعتبار سره د نهي دوه قسمونه دي:

(١) قبيح لعينه (٢) قبيح لغيره

بيا د قبيح لعينه دوه قسمونه دي (١) قبيح وضعاً او قبيح لعينه شرعا ځکه چې په دغې کښې به قبح يا خو وضعا وي يا شرعاً يعنې عقل به دې کښې د قبح تقاضه کوي يا قبح شرعا عقل خو کيدې شي

چې هغه کار جائز او کړخوی لیکن شریعت د هغې نه منع کوی
دغه شان د قبیح لغیره هم دوه قسمونه دی
(۱) یا خو به قبح وضعا وی یعنی قبح به منهی عنه سره لازم وی
(۲) یا به قبح مجاوراً وی دې سره به لازم نهٔ وی بلکه کله کله به ترې جدا کیدې شي.

**قوله: کالکفر وبیع الحر وصوم یوم النحر والبیع وقت النداء**

**د اقسام اربعه په مثالونو سره وضاحت**

(۱) د قبح لعینه وضعی مثال لکه کفر چې عقل تقاضه کوی چې د منعم کفر قبیح دې
(۲) د قبح لعینه شرعاً مثال لکه د آزاد بیع ځکه چې شریعت کښې بیع مبادلة المال بالمال ته وئیلې شی او آزاد څه مال نهٔ دې ورنه عقلاً د آزاد سړی او د غلام په بیع کښې هیڅ فرق په نظر نهٔ راځی
(۳) د قبح لغیره وصفا مثال یوم نحر یعنی د لسم . یوولسم او دولسم ذی الحجې په ورځ روژه نیول ځکه چې په دې ورځ روژه نیولو سره د الله تعالی د ضیافت نه اعراض لازم راځی او دا د اعراض معنی د روژې سره لازم ده
(۴) د قبح لغیره مجاورا مثال د نداء په وخت کښې بیع کول یعنی د جمعې مبارکې د اذان په موقع بآندې بیع کول ځکه چې د جمعې د اذان په وخت کښې بیع کولو سره په سعی الجمعه کښې خلل راځی لیکن دا خلل د وقت نداء سره خاص نهٔ دې بلکه جدا کیدې شی مثلاً د امام ابوزید دبوسی رحمه الله په قول کیدې شی چې بائع او مشتری په سوارئ باندې سوارۀ شی او جمعې له روان وی

او بیع هم کوی دغه شان د حائضې سره وطی کول او ارض مغصوبه کښې مونځ کول۔

**قوله** والنهي عن الافعال الحسية يقع على القسم الاول وعن الامور الشرعية يقع على الذى اتصل به وصفاً

**د افعالو تقسيم**

مصنف رحمه الله فرمائی چې افعال په دوه قسمه دی

(۱) افعال حسيه (۲) افعال شرعيه

**د افعال حسيه تعريف**

د دې نه مراد هغه افعال دی چې د هغې معانی د شریعت نه مخکښې هم معلوم وی او اوس هم په هغې خپله معانی باندې قائم وی لکه قتل، زنا او شراب وغیره

**د افعال شرعيه تعريف**

افعال شرعيه هغه دی چې د هغې اصل معانی د شریعت راتلو نه پس بدل شوې وی لکه صوم، صلوة او بیع وغیره

چې کله نهی افعال حسيه نه راغلې وی نو هغه به په قبح لعينه باندې محمول وی او که نهی د افعال شرعيه نه راغلې وی نو هغه به په قبح لغيره وصفا باندې محمول وی ليکن که څه دليل د هغې په قبح لعينه کيدو باندې دلالت اوکړی نو بيا به يې په قبح لعينه باندې محمول کوو لکه مضامين جمع د مضمونة او د ملاقيح جمع د ملقوحة بيع او د محدث مونځ

**قوله** : وقال الشافعي رحمه الله في البابين ينصرف الى القسم الاول .

**د امام شافعي صاحب رحمه الله مذهب** :

لیکن امام شافعي صاحب فرمائي چي نهی به د افعال حسیه او افعال شرعیه دواړو نه په قبح لعینه باندي محمول وی

**قوله** : لان القبح يثبت اقتضاءً فلا يتحقق على وجه يبطل به المتقضى ۔

**د احنافو دلیل** : مونږ وایو چي د نهی معنی دا ده چي بنده د اختیار باوجود د یو فعل نه منع کړي شی لیکن که هغهٔ ته اختیار نه وی نو بیا به د نهی نه نفی جوړه شی لکه ړوند یعنی نابینا ته اووئیلي شی مهٔ ګوره . لوښی کښي اوبهٔ نه وی او اووئیلي شی چي مهٔ څکه وغیره ذلک من الامثله

او په هر څیز کښي دغه شان اختبار وی چي د هغي مناسب وی افعال حسیه کښي اختیاردادي چي انسان مثلاً په یو کار کولو باندي قادر وی او دهغي د کولو نه پاتي شی او افعال شرعیه کښي اختیار دادي چي هغهٔ ته د شارع له طرفه اختیار وی ګویا د هغي کار اجازت هم وی او د هغي نه نهی هم وی او دا دواړه خبري هغه وخت جمع کیدي شی چي کله مونږ دا اووایو چي د فعل د خپل اصل په اعتبار سره مشروع دي او د خپل وصف په اعتبار سره منهی عنه دي لیکن که مونږ دا اووایو چي به افعال شرعیه کښي د نهی نه قبح لعینه ثابتیږي نو دغه شان به د بنده اختیار لره باطل کول لازم شی او نهی به نفی جوړه شی چي د هغي بطلان د دلیل محتاج نهٔ دي ۔

# د عـــام بـــحـث

**قوله**: واما العام فما يتناول افراداً متفقة الحدود على سبيل الشمول ـ

**د عام تعريف**

ما يتناوله افراداً متفقة الحدود على سبيل الشمول

**ترجمه**: عام هغه لفظ دې چې على سبيل الشمول داسې افرادو ته شامل وي چې متفقة الحدود وي

**فوائد قيود**: (ما) جنس دې او د دې نه مراد لفظ موضوع دې يتناول افراداً قيد سره خاص الجنس خاص العين او خاص النوع خارج سو او د هغه شان اسماء عدد هم خارج شو ځکه چې هغه اجزاؤ ته شامل وي افرادو ته شامل نه وي نيز مشترک هم خارج شو ځکه چې هغه معاني ته شامل وي افرادو ته شامل نه وي ياد دې وي چې متفقة الحدود على سبيل الشمول قيد صرف د عام حقيقت بيانولو د پاره دې البته بعضې خلقو وئيلي دي چې د متفقة الحدود قيد سره مشترک خارج شو ځکه چې هغه داسې افرادو ته شامل وي چې متفقة الحدود نه وي بلکه هغه مختلفة الحدود ته شامل وي او على سبيل البدلية شامل وي

**نكته**: مصنف رحمة الله د عام په تعريف کښې د استغراق قيد د علامه فخر الاسلام د اتباع په وجه سره نه دې لګولې ځکه چې د فخر الاسلام په نزد به عام کښې استغراق شرط نه دې البته د

صاحب توضيح په نزد عدم کښې استغراق شرط دې لهذا نکره منفيه به عام کښې داخل نه وی

**قوله** : وانه يوجب الحكم فيما يتناوله قطعاً

**د عام په حکم کښې مسالك ثلاثه**

عام چې کوم افرادو ته شامل وی نو په هغې کښې حکم قطعاً ثابتوی د عام د حکم باره کښې درې مسلکونه نور دی

(۱) دا مجمل وی په دې کښې توقف کول ضروری وی مصنف د موجب الحکم قيد لګولو سره د دې ترديد کړې دې.

(۲) دا چې که د عام حکم مفرد وی نو صرف يو فرد کښې به حکم ثابت وی او که صيغه د جمع وی نو صرف دريو افرادو کښې به حکم ثابتوی او باقی کښې به حکم موقوف وی مصنف رحمه الله د يتناول افراد قيد لګولو سره د دې ترديد وکړو

(۳) د امام شافعی رحمه الله قول دې چې عام ظنی وی په دې وجه هر عام کښې احتمال دې چې هغه مخصوص منه البعض وی د شوافعو قاعده ده مامن عام الا وقد خص عنه البعض مصنف د قطعاً قيد لګولو سره د دې هم ترديد اوکړو

او مونږ وايو چې دا احتمال ناشی بلادليل دې چې د دې هيڅ اعتبار نشته

**قوله** : حتى يجوز نسخ الخاص به

**عام د خاص د پاره ناسخ جوړيدې شی**

د عام په حکم باندې يې تفريع کړی ده چې د عام په ذريعې سره خاص منسوخ کول جائز دی لکه حديث د عرنيين چې د حضرت

انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دي امام محمد ﷺ د دې حدیث نه استدلال کولو سره وائی چې ماکول اللحم یعنی چې د کومو ځارووپیشاب پاک وی او د هغې څکل حلال دی لیکن د شیخینو په نزد دا خاص حدیث منسوخ دې د دې عام حدیث نه چې په هغې کښې پیغمبر علیه السلام فرمائی (استنزهوامن البول فان عامة عذاب القبرمنه......الخ) د بولو نه ځان بچ کوئ ځکه چې اکثر عذاب قبر د دې په وجه وی

دې مقدد کښې تفصیل دا دې چې د امام ابویوسف صاحب په نزد علی سبیل التداوی د ماپوکل لحمه بول استعمالول جائز دی ورنه نه دی او د امام اعظم صاحب په نزد هیڅ یو صورت کښې هم جائز نه دی ۔

**اعتراض** اعتراض دا کیږی چې د حدیث عرنیین د منسوخ کیدو څه دلیل دې ۔

**جواب** جواب دا دې چې په حدیث عرنیین کښې د مثله هم ذکر دی او مثله خو بالاتفاق منسوخ ده نو د ماکول اللحم د بولو حلت هم منسوخ شو ۔

**قوله** واذا اوصى بخاتم لانسان ثم بالفص منه لاخران الحلقة للاول والفص بينهما

اول یې دا بیان کړو چې عام د خاص مساوی وی او س د دې تائید د یوې فقهی مسئلې نه کوی هغه دا ده چې که چا د ګوتمې خاتم وصیت اوکړو د بو سړی د پاره بیا یې کلام مفصول سره د غمی د نګینه وصیت هم اوکړو د دویم کس د پاره نو حلقه به د

وړومبی کس وی او غمې به د دواړو درمیان کښې مشترک وی ځکه چې د ګوتمې حلقه د عام په شان ده او فص یعنی غمې د خاص په شان دې نو چونکه غمی کښې تعارض راغې لهذا هغه به د دواړو درمیان کښې مشترک وی لیکن که کلام موصول سره یې وصیت اوکړو نو بیا به غمې دویم کس ته ملا یږی لکه څنګه چې د غلام وصیت د یو کس دپاره اوکړی او د غلام منافع یعنی د خدمت وصیت د بل کس دپاره اوکړی نو خدمت هم د : ویم کس وی

مونږ وایو چې وصیت رقبه خدمت ته شامل نه وی ځکه چې رقبه او خدمت دواړه مختلف جنسونه دی په خلاف د خاتم چې هغه غمی ته هم شامل وی ۔

دلته د امام شافعی رحمه الله دوه اشکالات دی .

**ړومبې اشکال** : قرآن کریم کښې دی ( ولاتأکلوامه الم یذکراسم الله ) په کوم ښاروی چې د الله تعالی نوم وانخستې شی د ذبح کولو په وخت نو هغه مهٔ خورئ ، امام شافعی رحمه الله فرمائی چې ( ما ) لفظ عام دې ناسیاً او عامداً دواړو ته شامل دې لیکن احنافو په دې کښې ناسی خاص کړو او وې وئیل چې که په هیره سره تسمیه پاتې شی نو ښاروې حلال دې نو چې تاسو ناسی خاص کوئ نو مونږ عامد هم خاص کوو یو خو په ناسی باندې قیاس کولو سره او دویم د دې حدیث نه استدلال کولو سره چې پیغمبر علیه السلام فرمائی ( المسلم یذبح علی اسم الله تعالی سمی اولم یسم ) مسلمان د الله تعالی په نوم باندې حلاله کوی بسم الله اووائی یا نهٔ ۔

**دویم اشکال** : قرآن کریم کښې دی ( ومن دخله کان آمناً ) یعنی

چې څوک بېت الله کښې داخل شو نو امن کښې دې په دې کښې من لفظ عام دې دا ټولو ته شامل دې لیکن تاسو په دې کښې یو خو هغه سړې خاص کړو چې هغه په حرم کښې د دخول نه پس قتل وکړو او دویم تاسو هغه کس خاص کړو چې د چا اندام کټ کولو نه پس داخل شي او تاسو اووئیل چې دا دواړه به په حرم شریف کښې د داخلېدو د وجود امن کښې نه وی بلکه د دوی نه به قصاص اخستې شي نو مونږ په دې کښې یو دریم کس هم خاص کوو او دا هغه کس دې چې د قتل نه پس حرم کښې داخل شی یو خو په دې دواړو بندې قیاس کولو سره او دویم د دې حدیث مبارک نه استدلال کولو سره: الحرم لا یعیذ عاصیاً ولا فاراً بدم

**قوله ولا یجوز تخصیص قوله تعالی ولا تاکلوا مما لم یذکر اسم الله علیه ومن دخله کان امناً بالقیاس وخبر الواحد لانها لیسا بمخصوصین**

**د احنافو له طرفه د اولنی اشکال جواب**: مصنف رحمه الله د دې جواب دا ورکړې دې چې ستاسو دا وینا صحیح نۀ ده چې دا دواړه خپلو کښې مخصوص دی او مونږ په دې کښې هیڅ یو فرد خاص کړې نۀ دې ځکه چې ناسی خو د ذاکر په حکم کښې وی لهذا هغه بالکل په دې آیت کښې داخل نۀ دې ولا تاکلوا مما لم یذکر اسم الله

**د احنافو له طرفه د دویم اشکال جواب**:

دغه شان (ومن دخله کان آمناً) په دې آیت کریمه کښې د امن نه مراد امن الذات دې او اعضاء په ذات کښې نه دی بلکه په

مال کنبې دی دغه شان چې څوک په حرم کښې د داخلیدو نه پس قتال اوکړی نو هغه هم په دې آیت کښې داخل نه دې ځکه چې د آیت مفهوم خو دا دې چې کوم سړې د مباح الدم کیدو نه پس حرم شریف کښې داخل شی نو هغه به امن کښې وی ۔

**قوله فان لحقه خصوص معلوم اومجهول لا يبقى قطعياً لكنه لا يسقط الا حتجاج به عملاً لشبه الا ستثناء والنسخ**

د مخصوص د بیان نه د فارغیدو نه پس اوس عام مخصوص عنه البعض بیانوی فرمائی چې که عام ته مخصوص معلوم یا مجهول لاحق شی نو هغه به قطعی نه پاتې کیږی لیکن د هغې نه به استدلال کول صحیح وی او اصطلاح کښې تخصیص دا دې چې عام لره د هغې د بعضو افرادو نه خاص کول داسې کلام سره چې مستقل او موصول وی ۔

**د امام شافعی صاحب مذهب**:

د امام شافعی صاحب رحمه الله په نزد که کلام خبر مستقل سره وی یا کلام موصول سره وو نو مخصوص به وی .

خصوص معلوم او مجهول د دواړو مثالونه د الله تعالی کلام ( واحل الله البيع وحرم الربوا ) دې بیع لفظ عام دې او دا هر قسم بیع ته شامل دې چې په هغې کښې بیع نافذ . بیع فاسد . سود وغیره ټول شامل دی لیکن په دې کښې ربوا خاص کړې شوې ده او ربوا هغې فضل او زیاتی ته وئیلې شی چې بغیر د څه عوض نه وی نو مونږ ته پته نشته چې د کوم قسم زیادتی حرام ده نو دا خصوص مجهول شو بیا حدیث مبارک کښې شپږ څیزونه بیان کړې شوې دی

يعني الحنطة بالحنطة والشعير بالشعير......الخ نو دا د خصوص معلوم مثال شو ځکه چې په دې شپږونو کښې د ربوا حرام کیدو په وجه مونږ ته د ربوا د حرمت علت معلوم شو او هغه د إحنافو په نزد قدر مع الجنس دې او د شوافعو په نزد طعم او ادخار دې

**دليل**. خصوص د استثناء او نسخ دواړو مشابه دې دا د خپل حکم په اعتبار سره د استثناء مشابه دې چې ځنګه مستثنی مستثنی منه کښې داخل نه وی نو دغه شان مخصوص هم د عام په حکم کښې داخل نه وی او دا د خپلې صیغې په اعتبار سره د ناسخ سره مشابه وی چې ځنګه د ناسخ صیغه مستقل وی نو دغه شان دا صیغه هم مستقل وی

**وړومبي مذهب** نو مونږ د دې دواړو مشابهتونو لحاظ اوکړو نو مونږ وايو چې که دليل خصوص معلوم وی نو د مستثنی مشابهت تقاضه کوی چې عام دې قطعی وی ځکه چې مستثنی کله معلومه وی نو باقی افرادو کښې مستثنی علی حاله باقی وی او د ناسخ د مشابهت تقاضه کوی چې د عام نه استدلال کول بالکل صحيح نه وی ځکه چې ناسخ مستقل وی او هر مستقل تعليل قبلوی ځکه چې هغه معلول بعلة وی نو پته به نه لګی چې د تعليل په وجه ترينه څومره افراد خارج شو او څومره باقی دی نو هلته به دليل خصوص مجهول شی او د دې جهالت به د عام په جهالت کښې مؤثر شی او که دليل خصوص مجهول وو نو معامله به برعکس شی يعنی دا مشابهت به تقاضه کوی چې د عام نه دې استدلال کول صحيح نه وی ځکه چې د مستثنی جهالت د مستثنی منه په جهالت کښې تاثير

کوی او د مجهول نه هیڅ نه‌ئانده نه حاصلیږی او د ناسخ مشابهت به دا تقاضه کوی چې عام دې قطعی وی خکه چې ناسخ مجهول په خپله ساقطیږی او چې کوم په خپله ساقط شی نو د هغې په باقی کلام باندې هیڅ اثر نه وی الغرض مونږ د دواړو مشابهتونو رعایت کولو سره اووې چې عام به قطعی خو نه وی لیکن د دې نه به استدلال کول صحیح وی۔

**قوله** : **فصار کما اذا باع عبدین بالف علی انه بالخیار فی احدهما بعینه وسمی ثمنه**

مصنف ﷫ غوره مذهب لره د یو فقهی مسئلې سره تشبیه ورکړې ده او هغه مسئله دا ده چې یو کس دوه غلامان په دوه زره روپۍ خرڅ کړی او په هغې کښې یو معین غلام کښې خیار لره ثابت کړی او د هغې جدا ثمن هم ذکر کړی اصل کښې د دې مسئلې څلور صورتونه دی۔

(۱) اولنې صورت دا دې چې محل د خیار (دواړو غلامانو کښې یو غلام) هم متعین وی او د هغې ثمن هم متعین وی

(۲) دویم صورت دا دې چې دواړه متعین نه وی

(۳) دریم صورت دا دې چې محل خیار متعین وی لیکن د ثمن ذکر اونکړی

(۴) څلورم صورت دا دې چې د غلام ثمن خو ذکر کړی لیکن محل د خیار متعین نه وی

چې کوم غلام کښې خیار دې هغه په عقد کښې داخل دې او ثمن په حکم د بیع کښې داخل نه دې نو په دې اعتبار سره چې

هغه عقد کښې داخل دې بیع په خیار شرط سره و پس کول به کویا عقد بیع به نول وی دا نسخ سره مشابهت شو او دې حیثیت سره چې حکم کښې داخل نه دې دې نو واپس کول کوی بیان کول شو چې هغه حکم کښې هیڅ داخل نه وو نو دغه شان مستثنی سره مشابهت شو نو د نسخ د مشابهت تقاضه دا ده چې ځلورو واړو صورتونو کښې بیع صحیح شي ځکه چې دا دواړه غلامان د بیع د حال جوړه شي په دې باندې د بیع بالحصه عدم جواز والا اعتراض نه کیږی ځکه چې بیع بالحصه ابتداءً جائز نه ده او دا بیع بالحصه ابتداءً نه ده بلکه بقاءً ده او بقاءً جائز ده او د استثنی مشابهت تقاضا دا ده چې ځلورو واړو صورتونو کښې بیع فاسد شي ځکه چې دا غیر مبیع لره د بیع د قبلولو د پاره شرط جوړه شوې دې او دا جائز نه دی احناف د تطبیق لاره اختیار کړې ده او ولو سره وائي چې د دواړو مشابهتونو لحاظ به ساتلې کیږی۔

لهذا چې کله د محل خیار او د ثمن دواړو پته وی ځنګه چې دریمې صورت کښې دی نو د ناسخ سره د مشابهت په وجه به بیع صحیح شي باقي دریو واړو صورتونو کښې به د استثنی سره د مشابهت په وجه بیع فاسد شي ځکه چې کله بیع او ثمن دواړه مجهول وی یا په دې کښې یو مجهول وی نو بیع فاسدیږی او په دې صورتونو کښې د نسخ د مشابهت هیڅ اعتبار نه وی ځکه چې نسخ مجهول په خپله ساقطیږی په دې وجه د شرط خیار هم باطل شي او دواړه غلامانو کښې به عقد بیع ثابته شي حالانکه دا خلاف مقصود دی۔

**قوله** : وقیل انه یسقط الا حتجاج به کالاستثناء المجهول لان کل واحد منها لبیان انه لم یدخل فصار کالبیع المضاف الی حر وعبد بثمن واحد

**دویم مذهب** : د عام مخصوص منه البعض باره کښي دویم مذهب بیانوی او هغه دا دي چي د دې نه استدلال کول ساقط دی څنګه چي استثنی مجهول کښي وی ځکه چي په دې کښي هر یو خبره د بیانولو د پاره ده چي دا د خپل ماقبل په حکم کښي نه دي دا د امام ابوالحسن حنفی کرخی او عیسی بن ابان رحمهم الله مذهب دي دا خلق فرمائی چي مخصوص خواه معلوم وی یا مجهول په دواړو صورتونو کښي به عام د استدلال کولو قابل نه وی لکه د الله تعالی حکم اقتلوا لمشرکین ...... الخ ښکاره خبره ده چي په دې عموم کښي ټول مشرکین بشمول اهل ذمه داخل وو لیکن بعض هغه مشرکان چي ذمیان دی خاص کړي شو او وي فرمائیل ولاتقتلوااهل الذمة دا د مخصوص مجهول مثال دي او د مخصوص معلوم مثال د دي عموم نه پس دا فرمائیل دی ولاتقتلوابعضهم دا ځلق صرف یعنی د جهت استثناء اعتبار کوی او صیغه یعنی د جهت نسخ اعتبار نه کوی لکه څنګه چي کله آزاد او غلام دواړه په یو ثمن سره خرڅ کړي شی نو چونکه آزاد خو بیع کښي داخل نه دي لهذا هغه به د بیع نه مستثنی شی چونکه دا بیع بالحصه ابتداء ده او دا باطل ده لهذا غلام کښي به هم بیع صحیح نه وی البته که د دواړو جدا جدا قیمت بیانکړی نو د امام اعظم صاحب رحمه الله په نزد به بیا هم بیع فاسد وی البته د صاحبینو په نزد به بیع صحیح شی

**قوله** وقيل انه يبقى كما كان اعتبار ابا لتاسخ لان كل واحد منهما مستقبل بنفسه بخلاف الاستثناء فصار كما اذا باع عبدين وهلك احدهما قبل التسليم

**دريم مذهب** : عام مخصوص البعض باره كښې دريم مذهب دا دې چې عام به د تخصيص نه پس هم هغه شان قطعي وى څنګه چې د تخصيص نه وړاندې وو د دې مذهب قائلين دې لره په ناسخ باندې قياس كوى ځكه چې په دې كښې هر يو مستقل بنفسه وى دا صرف صيغې يعنې جهت نسخ ته ګورى او د معنى يعنى د جهت استثناء هيڅ اعتبار نه كوى د دې نظير دا فقهي مسئله ده لكه كه چا دوه غلامان خرڅ كړل او د هغوى يې جدا جدا قيمتونه بيان نۀ كړل او هغوى دواړو كښې يو غلام مشترى ته د حواله كولو نه مخكښې مړ شونو ګوي كه د دۀ بيع منسوخ شوه او چې كوم ژوندي دي د هغۀ بيع به باقي وى او چونكه دا بيع بالحصه بقاء ده لهذا جائز ده۔

**څلورم مذهب** : دلته يو څلورم مذهب هم دې چې هغه صاحب توضيح ذكر كړې دې هغه دا دې چې په دليل خصوص باندې مدار دې لهذا چې كله دليل خصوص مجهول وى نو د عام نه به استدلال كول ساقط وى كما قال اصحاب المذهب الثاني او كه دليل خصوص معلوم وى نو عام به د خصوص نه پس هم هغه شان قطعي وى څنګه چې مخكښې وو كما قال اصحاب المذهب الثالث او د دې نه به استدلال كول صحيح وى

**قوله** : والعموم اما ان يكون بالصيغة والمعنى او بالمعنى لا غير كرجال وقوم

**د صيغې او معنې په اعتبار سره د عام تقسيم**

د عام دوه قسمونه دي :

(۱) صيغه او معنى دواړه په عموم باندې دلالت کوي او په افرادو باندې مشتمل وي لکه رجال جمع د رجل او نساء جمع د امراة وغيره خواه جمع معرف وي يا جمع منكر او خواه جمع قلت وي يا جمع کثرت ليکن دا د فخرالاسلام صاحب رحمه الله په نزد دې ځکه چې د هغوى په نزد د عام په معنى کښې استيعاب او استغراق شرط نه دې ليکن چې د کومو خلقو په نزد باندې استيعاب شرط دې لکه څنګه چې صاحب توضيح اشاره کړې ده هغوى جمع منكر ته د عام او خاص مينځ کښې واسطه وائی

(۲) دويم قسم دا دې چې د دې عام صيغه خو په عموم باندې دلالت نه کوى ليکن معنى په عموم باندې دلالت کوى لکه (قوم) او (رهط) دا دواړه الفاظ لفظاً مفرد دى ليکن په اعتبار د معنې جمع دى ځکه چې د قوم اطلاق د درې نه لس پورې او د رهط اطلاق د درې نه نهه پورې وى ليکن د قوم اطلاق به هلته وى چرته چې کثير افراد جمع وى۔

**قوله** : ومن وما يحتملان العموم والخصوص واصلهما العموم ومن فى ذوات من يعقل كما فى ذوات ما لا يعقل

**د من او ما مفهوم او د فرق وجه**

من او ما اصل کښې د عموم دپاره دى د خصوص احتمال هم لرى او

د فرق وجه دا ده چې من د ذوی العقول دپاره استعمالیږی او کلمه
کله دا نوی په وجه د غیر ذوی العقول دپاره هم استعمالیږی او ما
د دی برعکس استعمالیږی

**قوله فاذا قال من شاء من عبیدی العتق فهوحر فشاء واعتقوا**

## د من په عموم باندی تفریع

نو که د یو سړی اوویل چې من شاءمن عبیدی العتق فهوحربیا
ټولو غلامانو آزادی طلب کړه نو ټول به آزاد شی ځکه چې د من
کلمه عامه ده او موصوف دی د صفت عامه سره یعنی مشیئت او من
بیانیه دتبعیض دپاره دی لیکن که چا اووی من شئت من
عبیدی عتقه فاعتقه نو دی صورت کښې به مخاطب ته د یو نه علاوه
د ټولو د آزادولو اختیار دی ځکه چې د من کلمه عام ده او من
بیانیه د تبعیض دپاره دی او د دی دواړو (عموم او تبعیض) په
مقتضی باندی به عمل وخت عمل کیدی شی چې کله د یو نه علاوه
باقی ټول آزاد شی

## د صاحب توضیح توجیه

صاحب توضیح د دی مسئلي دویمه توجیه بیانولو کښې
لیکلي دی چې دواړو مثالونو کښې من جاره تبعیضیه ده لیکن د
فرق وجه دا ده چې وړومبی مثال کښې (من شاءمن عبیدی العتق
فهوحر) کښې د من په عموم کښې هر غلام داخل دي چې د خپلي
آزادی خواهش ښکاره کوی او دا ټول د غیر نه قطع نظر هم بعض دی او
په دویم مثال کښې من شئت من عبیدی عتقه فاعتقه کښې د آزادی

خواهش مند صرف فرد مخصوص یعنی مخاطب دې چې یو دې لهذا د دې حاجت د د مشیئت تعلق به هم د هر یو غلام سره یو ځل وی لیکن دغه شان د من تبعیضیه مقتضاء باطل کیده لهذا مجبورا یو لره خاص کول ضروری شو

**په مذکوره توجیه باندې اعتراض**

دا توجیه خو هغه صورت کښې صحیح کیدې شی چې کله مخاطب غلامانو لره ترتیب وار فرداً فرداً آزاد کړی ورنه صحیح نه ده لهذا هم وړومبی توجیه غوره ده

**قوله**: فان قال لامته ان کان ما فی بطنک غلاماً فانت حرة فولدت غلاماً وجاریةً لم تعتق

**د ما د عموم مثال** امام محمد ﷺ یومثال ذکر کړې دې چې که یو سړې خپلې وینځې ته اووائی ان کان مافی بطنك غلاماً فانت حرة، او هغه وینځه یو ماشوم او یو ع ثومه اوزیګوی نو هغه به نه آزادیږی ځکه چې ما د عموم تقاضه کوی چې ټول څه چې په خیټه کښې دی نو هغه به ټول یو ماشوم وی خواه چې هرڅومره څه وی

**اعتراض**: اعتراض کیږی چې که ما کښې تعمیم لازمی اوګرزلې شی نو بیاخو ضروری ده چې مانځه د مونځګذار پاره ټول قرآن لوستل واجب وي . چې څومره څوک لوستې شی ځکه چې ما تیسر من القرآن کښې هم ما د عموم د پاره ده

**جواب**: مونږ جواب ورکوو چې ما عموم خو د دې متقاضی دی لیکن وړاندې لفظ د تیسر مشتق دې د تیسیر نه او د تیسیر معنی

**جمیع** : عموم ځلورمه صیغه لفظ د جیمع ده دا عموم ثابتوی علی سبیل الاجتماع نو که د یو لښکر امیر اووې (جمیع من دخل هذا الحصن فله الف درهم) بیا په یو ځایې لس سړی داخل شو نو دا زر دراهم به د هغوی مینځ کښې تقسیمولې شی او که هم دغه لس سړی جدا جدا داخل شو نو د ټولو نه مخکښې چې څوک داخل شوې دی هغهٔ ته به ملاویږی دویمې صورت کښې د کلمه جمیع حقیقت باندې عمل وو او دویم صورت کښې د کلمه جمیع په مجاز باندې عمل اوکړې شو ځکه چې دې وخت کښې به دا جمیع د کل په معنی کښې مستعمل وی ۔

**اعتراض** : اعتراض دا کیږی چې تاسو حقیقت او مجاز جمع کړې دې چې جائز نه دې ۔

**دویم جواب** : مونږ داسې نه دی وئیلې بلکه مونږ په عموم مجاز باندې عمل کړې دې یعنی د اول نه مو سابق فی الدخول مراد اخستلې دې خواه هغه یو وی یا جماعت وی لهذا عمل به په عموم مجاز باندې وی ۔

**قوله** فی کلمة کل یجب لکل منهم النفل

و د لفظ کل په صورت کښې په لسو کښې هر یو ته به مستقل نعام ورکولې شی ځکه چې لفظ کل علی سبیل الافراد د احاطې پاره راځی او که یو سړې مخکښې داخل شو نو صرف هم هغهٔ ته انعام ورکولې شی ځکه چې لفظ کل د خصوص هم احتمال لری ۔

**قوله** : وفی کلمة من یبطل النفل

او دریم صورت منْ دخل ..... الخصورت کښي به انعام باطل شی ځکه چې اول د فرد سابق نوم دې چې د ټولو نه مخکښې داخل شوې وی او د دهٔ نه وړاندې څوک داخل شوې نه وی او دلته هیڅ یو فرد داسې نشته بلکه څو کسان داخلیدونکی دی او کلمه د من عموم کښې دومره محکم نه دهٔ چې د اول معنی کښې تبدیلی راولی

**قوله** :النکرة فی موضع النفی تعم وفی الاثبات تخص لکنها مطلقة وعند الشافعی رحمه الله تعم حتی قال بعموم الرقبة المذکورة فی الظهار ـ

**قاعده** : نکره چې کله تحت النفی واقع وی نو عام وی ځکه چې نکره د اصل وضع په اعتبار سره یا خو ماهیت وی یا فرد واحد غیرمتعین دپاره وی لهذا کله چې په دې بآندې نفی داخل شی نو هغه به عام شی ځکه چې که نفی عام نه وی نو بیا به د ماهیت یا د فرد غیر معین نفی نه کیږی بیا که نکره د من استغراقیه معنې ته شامل وی نو هغه به عموم کښې نص وی او که د من استغراقیه معنې ته شامل نه وی نو عموم کښې به ظاهر وی اګرچه د خصوص احتمال هم لری ـ .

او د دې عموم دلیل اجماع د اهل لغت دهٔ چې لااله الاالله بالاجماع کلمه د توحید دهٔ نو که دا کلمه د لاعموم یعنې د تمام معبود برحق د نفی دپاره نه وې نو د دې نه به د الله تعالی وحدت څنګه ثابت کیدو ؟

دویم دلیل د الله تعالی فرمان دي اذقالواماانزل الله علی بشرمن شئ قل من انزل الکتاب الذی جاءبه موسی الخ ځکه چې من انزل الکتٰب کښې ایجاب جزئی دي او ایجاب جزئی د سلب کلی نقیض جوړیدې شی نو معلومه شوه چې ماانزل الله کښې سلب کلی دي

او نکره د اثبات په ځایونو کښې خاص وی یعنی فرد واحد د غیرمعین دپاره وی لیکن د اوصاف په اعتبار سره مطلق وی لکه اعتق رقبة کښې رقبه نکره د اثبات په ځایې کښې ده لهذا دا جمله به د یو غلام په آزادیدو باندې دلالت کوی لیکن د غلام اوصاف متعدد کیدې شی۔

**د شوافعو مذهب** : لیکن امام شافعی رحمہ اللہ فرمائی چې دې صورت کښې به هم هغه عام وی نو هغوی وائی فتحریررقبة دا عام هر قسم غلامانو ته شامل دې بیا په دې کښې بالاجماع معذور او مدبر خاص کړې شو نو په دې کښې کافر غلام هم هغوی خاص کړې دې

**شوافعو ته جواب** :

مونږ جواب ورکوو چې معذور رقبه مطلقه کښې بالکل داخل نه دې ځکه چې په دې کښې جنس منفعت فوت کیږی دغه شان مدبر هم شامل نه دې ځکه چې هغه من وجه غلام دې او من وجه غلام نه دې نو دلته مونږ په دواؤ قاعدو باندې عمل کوو

**د احنافو دوه قاعدې**

وړومبی قاعده دا ده چې مطلق په خپل اطلاق باندې باقی وی المطلق یجری علی اطلاقه لهذا ایت مذکوره کښې لفظ د رقبة مؤمنة او کافر دواړو ته شامل دې

دويمه قاعده داده چې كله يو څيز مطلق ذكر كړې شي نو د هغې ذكر كامل مراد وی المطلق اذااطلق يرادبه الفردالكامل نو چونكه مدبر او معذور كامل غلامان نه دی بلكه ناقص دی لهذا د دې آيت په حكم كښې بالكل داخل نه دی

**قوله** : **وان وصفت بصفة عامة تعم كقوله والله لا اكلم احداً الا رجلاً كوفياً وقوله والله لا اقربكما الا يوماً اقربكما فيه وكذا اذا قال اى عبيدى ضربک فهو حر فضربوه انهم يعتقون**

كه نكره صفت عامه سره موصوف وی نو عام به وی دا د عرف او د استعمال په اعتبار سره دی ورنه د صفت مفهوم خو خصوص او تقييد دې بيا دا قاعده كليه نه ده بلكه اكثری ده ځكه چې بغير د صفت نه هم نكره عام وی لكه د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمان **تمرة خيرمن جرادة** او **علمت نفس ما احضرت** كښې دغه شان **علمت نفس ما قدمت واخرت** كښې او كله د صفت عامه باوجود هم نكره خاص وی لكه يو كس اووائی **والله لا تزوجن امراة كوفية** نو په دې صورت كښې خو ټولو ښځو سره واده كول ضروری نه دی بلكه يو ښځې سره واده كولو سره به هم قائل د حانث كيدو نه اوځی د دې مثال :

(۱) لكه **والله لا اكلم احداً الا رجلاً كوفيا** نو كه كوفيان يې نه وو وئيلې نو د يو نه زيات كس سره خبرې كولو باندې به حانث كيدو ليكن چې كله يې كوفيا اووې نو اوس به د هر كس سره د خبرې كولو اجازت وی ـ

۲. **دویم مثال** دا دي چې که یو سړي خپلو دواړو ښځو ته مخاطب کیدو سره ووائی والله لااقربکما الایوماً أقربکما فیه که صرف یوما یی وئیلي وو نو د یو ورځ نزدیکت نه پس به مولی (ایلاء کونکي) کیدو لیکن د اقربکما صفت راوړلو سره به اوس کله هم مولی (ایلاء کونکي) نه ګرځی ځکه چې په کومه ورځ هم ښځو ته نزدې شی هغه ورځ به د دې صفت عامه په وجه سره د یمین نه مستثنی وی او حنث به هم نه وی۔

۳. **دریم مثال** د یو سړی د خپلو غلامانو باره کښې دا وئیل دی ای عبیدی ضربك فهوحرزما چې کوم غلام هم تاله اووهی نو هغه آزاد دي او بیا ټولو غلامانو دا سړي اووهو نو ټول به آزاد شی لیکن که دا اووې چې ای عبیدی ضربته....الخ نو که مخاطب ټول اووهل نو ټول به نۀ آزادیږی بلکه په هغوی کښې به یو آزاد شی۔

مصنف ﷫ په دواړو مثالونو کښې فرق بیان کړې دي چې متکلم په اولنی مثال کښې ای لره د ضاربیت صفت سره موصوف کړې دي لهذا د صفت عموم په وجه سره به دا عام وی لیکن دویم مثال کښې د صفت ضرب نسبت د فرد واحد مخاطب طرفته دي چې خاص واقع کیږی لهذا (ای) به عام نه وی۔

**اعتراض** اعتراض دا کیږی چې که تاسو د صفت نه مراد صفت نحوی اخلی نو هغه دواړو مثالونو کښې نشته ځکه چې ای موصوفه نه دې بلکه موصوله یا شرطیه دي او که تاسو صفت معنوی مراد اخلی نو هغه دواړو مثالونو کښې دي ځکه چې په ولنی مثال کښې ای د ضاربیت سره موصوف دی او دویم مثال

کښې د مضروبیت سره موصوف دې لهذا د دواړو حکم یوشان یعنی مساوی او برابر کیدل پکار دی . بیا دا هم کیدې شی چې اولنی مثال کښې الایوما اقربکما اولنې مثال یعنی اقربکما باندې عموم موندې کیږی حالانکه په دې کښې یوماً مفعول فیه دې فاعل نه دې نو مناسب دا ده چې د مفعول به یعنی د دې هم دا حکم وی

**جواب** : جواب د دې دا دې چې ضرب د ضارب سره قائم دې لهذا مضروب سره به قائم نه وی او د مفعول به فضله په کلام باندې قائم وی په خلاف د مفعول فیه ځکه چې هغه د فعل یو جزء وی بعضې خلقو دا فرق بیان کړې دې چې وړومبی مثال کښې چونکه عتق د غلامانو د وهلو سره متعلق کړې شو نو هغه به د ټولو د وهلو دپاره جلدی کوی نو مولی به چاته بلا وجه ترجیح ورکوی لیکن دویم مثال کښې یې عتق متعلق کړې دې د مخاطب سره لهذا مخاطب دپاره مناسب نه ده چې هغه خپل آقا لره اووهی -

**قوله** وكذا اذا دخلت لام التعريف فيما لا يحتمل التعريف بمعنى العهد اوجبت العموم حتى يسقط اعتبار الجمعية اذا دخلت على الجمع عملاً بالدليلين فيحنث بتزوج امراة واحدة اذا حلف لا يتزوج النساء

**د عبارت تشریح** : چې کله لام تعریف په یو داسې لفظ باندې داخل وی چې د تعریف عهدی احتمال نه لری نو هغه به د عموم دپاره وی خواه د عموم جنس په وجه سره وی یا د استغراق په وجه سره او په دې کښې په دې خبره باندې هم تنبیه ده چې لام تعریف کښې اصل

دا دې چې هغه د عهد د پاره وی او چې ترڅو د عهد والا معنی صحیح کیدی شی نو بله معنی به مرانه نه اخستلې کیږی لیکن چې کله د عهد والا معنی صحیح نه وی نو د استغراق په وجه سره به د عموم فائده ورکوی۔

که دا د جمع په صیغه باندې داخل شی نو د جمعیت اعتبار به ساقط شی ځکه که جمعیت باقی او ساتلې شی نو د لام تعریف به هیڅ فائده نه وی لهذا دا به په جنس باندې حمل کړې شی نو د جنس کیدو په وجه به د دې اطلاق په مادون الثلاث باندې شی او د جمع کیدو په وجه به د دې اطلاق په مافوق الثلاث باندې شی لهذا که چا قسم اوخوړ چې لاتزوج النساء نو صرف یوې ښځې سره واده کولو سره به هم حنث کیږی

د دغه شان قرآن پاک کښې نبی کریم ﷺ ته خطاب دې لا یحل لك النساء من بعد (یعنی د دې ازواج مطهرات نه پس تاسو د پاره هیڅ یو بی بی حلال نه ده، نو دلته د نساء نه یو ښځه هم مراد ده د دغه شان انما الصدقات للفقراء الخ کښې هر یو فقیر یا مسکین ته صدقه ورکول کافی دی په دې کښې د امام شافعی صاحب رحمه الله اختلاف دې د هغوی په نزد د زکوة په اوو مصارفو کښې د هر یو قسم دریو افرادو ته زکوة ورکول ضروری دی بیا مصنف رحمه الله یو څو قواعد بیان کړې دی نو فرمائی

**قوله** والنكرة اذا اعيدت معرفة كانت الثانية عين الاولى واذا اعيدت نكرة كانت الثانية غير الاولى والمعرفة اذا اعيدت معرفة كانت الثانية عين الاولى و اذا اعيدت نكرة

كانت الثانية غير الاولى

كه نكره دوباره معرفه راوړلې شي نو ثاني به عين اول وي لكه الله تعالى فرمائي ارسلنا الى فرعون رسولاً فعصى فرعون الرسول او كه نكره دوباره مكرر راوړلې شي نو ثاني غير اول وي او كه معرفه دوباره معرفه راوړلې شي نو ثاني به عين اول وي.

د دې دواړو قاعدو مثال د الله تعالى فرمان دې فان مع العسر يسراً ان مع العسر يسراً العسر چونكه دوباره معرفه راوړلې شوې دې لهذا دا عين اول دې او يسر چونكه دوباره نكره راوړلې شوې دې لهذا دا غير د اول دې نو معلومه شوه چې يو عسر سره دوه يسره وي او هم دا خبره د حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما د حديث لن يغلب عسر يسرين او د شاعر د شعر نه هم معلوميږي

اذا اشتدت بك البلوى ففكر فى الم نشرح
فعسر بين يسرين اذا فكرته فافرح

او چې كله معرفه دوباره نكره راوړلې شي نو ثاني به غير د اول وي ځكه چې عين اول وي نو ګويا كه هغه بغير د څه حرف د اشارې نه متعين شو حالانكه نكره نه متعين كيږي د دې مثال دا دې چې كه يو سړى اولاً اقرار اوكړو د داسې زرو چې دستاويزي دي بيا هغهٔ مطلق د زرو اقرار اوكړو په دويم مجلس كښې نو دا به ثاني غير اول وي او دوه زره به پرې لازم شي

**نكته** : پورته چې څه ذكر كړې شو دا د اطلاق په وخت كښې وي الغرض قاعده كليه نه ده بلكه قاعده اكثريه ده ورنه داسې هم كيدې شي چې نكره دوباره معرفه راوړلې شي ليكن هغه غير اول

وی لکه د الله تعالی فرمان هذاکتاب انزلناه.........الخ د ورمبی کتاب نه مراد قرآن پاک او د دویم کتاب نه مراد تورات او انجیل دی او دا هم کیدې شی چې نکره دوباره نکره راؤړلې شی لیکن هغه به د غیر اول په ځایی عین اول وی لکه د الله تعالی فرمان وهوالذی فی السماء اله وفی الارض اله دغه شان دا هم کیدې شی چې معرفه دوباره معرفه راؤړلې شی لیکن هغه غیر اول وی لکه قرآن پاک کښې دی وهوالذی انزل علیك الکتاب د ورومبی کتاب نه مراد قران پاک دې او د دویم نه مراد تورات وغیره دی او دا هم کیدې شی چې معرفه دوباره نکره راؤړلې شی لیکن هغه عین اول وی لکه قران پاک کښې دی انما الحکم اله واحد

د دې نه پس مصنف رحمه الله فرمائی چې دکوم مقدار پورې د خصوص انتهاء وی د دې دوه قسمونه دی

**قوله** وما ینتهی الیه الخصوص نوعان

النوع الاول الواحد فیما هو فرد بصیغة او ملحق به کالمراة والنساء والنوع الثانی فیما کان جمعاً وصیغةً معنی لان ادنی الجمع الثلاثة باجماع اهل اللغة

### د ما ینتهی الیه الخصوص تقسیم

(۱) ورومبې قسم دا دې چې که صیغه د مفرد وی یا ملحق بالمفرد وی لکه جمع معرف بلام الجنس نو د دې انتهاء به یو پورې وی ځکه چې لفظ اوس د دې یو نه هم خالی شی نو لفظ به د خپل مدلول نه هم خالی شی لکه المراة والنساء

(۲) دويم قسم دا دي چې لفظ د صيغې او معنې په اعتبار سره جمع وي لکه رجال او نساء يا صرف د معنې په اعتبار سره جمع وي لکه قوم او رهط نو د دې انتهاء به دريو پورې وي ځکه چې اقل د جمع درې دي نو که په دې کښې درې هم پاتې نه شي نو لفظ به د خپل مقصود نه خالي پاتې شي

د امام شافعي صاحب رحمه الله او د امام مالک صاحب رحمه الله بعضې ملګرې فرمائي چې اقل د جمع دوه دي د هغوی دليل د حضور ﷺ فرمان دې الاثنان فما فوقها جماعة

مصنف رحمه الله د دې دوه جوابونه ورکوي اوګورئ!

**قوله** : **وقوله عليه السلام الاثنان فما فوقها جماعة محمول على المواريث والوصايا او على سنة تقدم الامام**

**رومبې جواب** : د دې جواب دا دې چې دا حديث د ميراث او وصيت باره کښې دې ځکه چې ميراث کښې استحقاق او د حجب په اعتبار سره د دواؤ هم هغه حکم دې کوم چې د دواؤ نه د زياتو دې مثلاً دواؤ لونړو او دواؤ خويندو ته دوه ثلثه ملاويږي او د دواؤ نه زياتو ته هم دا ملاويږي او دوه ورونړه د مور حصې لره د ثلث نه سدس ته منتقل کوي او د دواؤ نه د زياتو هم دا حکم دې

**دويم جواب** : د دې دويم جواب دا دې چې دا حديث د امام په وړاندې کيدو والا مسئله باندې محمول دې يعنې که مقتديان درې وي يا زيات وي نو امام به مخکښې اودريږي او که دوه وي نو هم به امام وړاندې اودريږي ماسوا د جمعې نه ځکه چې جمعه کښې د امام نه علاوه د دريو کسانو کيدل ضروري دي دامام ابويوسف صاحب

اختلاف دی : هغوی په نزد امام سره دري سړی کیدل کافی دی.
د دې اشکال یو بل جواب صاحب نورالانوار لیکلي دي هغه دا دي.

**دریم جواب** : دا حدیث د سفر باره کښې دې اصل کښې د اسلام په ابتدائی زمانه کښې د واؤ کسانو ته د سفر کولو اجازت نه وو چې کله اسلام قوی شو نو د دریو په شان دواؤ ته هم اجازت ورکړې شو په دې بنیاد باندې پیغمبر ﷺ او فرمائیل الاثنان فما فوقها جماعة د دې نه مخکښې پیغمبر ﷺ ممانعت فرمائیلي وو۔

الواحد شیطان والاثنان شیطانان

## د مشترک بحث

**قوله** واما المشترک فما یتناول افراد مختلفة الحدود علی سبیل البدل کالقرء للحیض والطهر

**د مشترک تعریف**

ما یتناول افراد مختلفة الحدود علی سبیل البدل

**ترجمه** مشترک هغه لفظ دې چې علی سبیل البدل داسې الفاظو ته شامل وی چې د هغې تعریفونه خپلو کښې مختلف او بدل وی

**فوائد قیود**

(۱) **افراد** د دې نه خاص خارج شو چې په هغې کښې افراد نه وی
(۲) **مختلفة الحدود** په دې قید سره عام خارج شو ځکه چې د هغې افراد ټول په اعتبار د حدود متفق وی .

(۳) **على سبيل البدل** : دې قيد سره څو فوائد حاصليږي چې هغه لاندې ذکر کړې کيږي

**الف** : که دا قيد احترازي نه وي نو صرف د بيان واقع او حقيقت دپاره دې ـ

**ب** : که دا قيد احترازي او منلې شي نو د امام محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله نه على سبيل الشمول نه احتراز مقصود دې چې د شوافعو په نزد د مشترک ټو معانی بيک وقت مراد کيدې شي يا يا د بعضې علماؤ په نزد د شئ نه د احتراز دپاره دې چې د شئ معنى په موجود کښې د کيدو په اعتبار سره مشترک معنوى ده او د افرادو د مختلفة الحقائق کيدو په اعتبار سره هغه مشترک لفظى کښې داخل ده ليکن د دې خپل افرادو سره تعلق على سبيل الشمول وى لهذا د على سبيل البدل قيد سره د دې نه احتراز اوشو.

(۲) **د مشترک مثال** : د مشترک مثال لفظ قروء دې چې دا د حيض او طهر درميان کښې مشترک دې

**قوله** : **وحكمه التوقف فيه بشرط التامل ليترجح بعض وجوهه للعمل به**

**د مشترک حکم** : د مشترک حکم دا دې چې د دې په متعددو معنو باندې لحاظ کولو سره د مقام نسبت سره په سياق وسباق باندې غور کولو سره به يو معنى ته ترجيح ورکولې شي چې په هغې باندې عمل اوکړې شي ـ

**د مثال په ذریعې سره وضاحت**

قروء یو لفظ مشترک دې مونږ په دې لفظ کښې څو طریقو سره غوروفکر اوکړو مثلاً مونږ اوکتل

۱. د دې لفظ صفت لفظ ثلاثة دې او خاص دې

۲. دویم دا چې اقل د جمع درې دی

۳. دریم دا چې د جمع او د انتقال په معنی کښې دې

نو س که د قروء نه مراد د حیض وینه وی نو ښکاره ده چې وینه کښې جمع کیدل او منتقل کیدو معنی موندې کیږی

نو که د دې نه مراد د حیض ایام وی نو د حیض ایام د اجتماع او د انتقال محل دی په خلاف د طهر چې نه هغه جمع کیدونکې دې او نه منتقل کیدونکې دې او نه د جمع کیدو او منتقل کیدو محل دې

**قوله ولا عموم له _**

**آیا عموم مشترک جائز دې که نه ؟**

زمونږ په نزد مشترک کښې عموم نه وی لهذا د یو لفظ نه په یو وخت کښې د هغې دود یا د دواؤ نه زیاتې معنې مراد اخستل جائز نه دی

**د امام شافعی رحمه الله مذهب**

د امام شافعی رحمه الله په نزد عموم مشترک جائز دې یعنی هم په یو وخت کښې د عموم څو معنې مراد اخستلې کیدې شی

**د امام شافعی رحمه الله دلیل**

هغوی د قرآن مجید د دې آیت کریمه نه استدلال کوی ان الله.

وملائكته يصلون على النبى يا ايها الذين آمنوا صلوا عليه وسلموا تسليماً

**د استدلال طرز** په دې آيت کريمه کښې يو لفظ مشترک (صلوة) استعمال شوې دې چې د هغې نسبت الله تعالى . فرشتو او بندګانو طرفته شوې دې او ښکاره خبره ده چې کله د صلوة نسبت الله تعالى طرفته اوشي نو مراد ترې رحمت کامله وي او هم د دې لفظ نسبت چې کله فرشتو ته اوشي نو د دې نه مراد دعا او استغفار وي او چې کله د دې نسبت بندګانو طرفته اوشي نو د دې نه مراد صرف دعاء وي لهذا معلومه شوه چې هم د يو لفظ مشترک (صلوة) نه په يو آيت کريمه کښې په يو وخت درې معانى مراد اخستلې شوې دى او د دې نوم عموم مشترک دې.

**د شوافعو د دليل جواب** : د دې آيت غرض دا دې چې په مؤمنانو بانْدې د الله تعالى او د فرشتو اقتداء واجب ده او دا غرض هغه وخت حاصليدې شى چې کله د دې نه مونږ يو معنى مراد واخلو چې ټولو ته شامله شى او هغه معنى ده اعتناء بشانه او س مطلب دا دې چې الله تعالى او فرشتې د حضور عليه السلام د شان اهتمام کوى لهذا اې ايمان والو ! تاسو هم د حضور عليه السلام د شان اهتمام اوکړئ او ښکاره خبره ده چې دا اهتمام د الله تعالى له طرفه رحمت. د فرشتو له طرفه استغفار او د مؤمنانو له طرفه دعا ده

**د احنافو دليل** : زمونږ دليل دا دې چې واضع هر يو لفظ د يوې معنې دپاره وضع کړې دې او بل واضع هم دغه لفظ د دويمې معنې دپاره وضع کړې دې دغه شان چې د هغې نه دويمه معنى مراد اخستل جائز نه دى نو که عموم مشترک جائز وې يا زياتې معنې

مراد واخستلی شی نو لازم به راشی چې هره معنی مراد هم وی او غیرمراد هم وی نو دا د متضادینو اجتماع شوه او جائز نه ده او که تاسو دا وایئ چې معنی متعدد کنبې یو معنی مراد اخلو د موضوع کیدو په وجه او دویمه د مناسبت په وجه نو دا د حقیقت او مجاز جمع کول لازم راغلل او دا د احنافو په نزد خو بالکل مطلقاً ناجائز دی او د شوافعو په نزد هغه صورت کنبې جائز دی چې د معنی مجازی او د معنی موضوع له درمیان کنبې په ځلیریشتو ۲۴ تعلقاتو کنبې څه تعلق او منلې شی او دا معنی خپلو کنبې متضاد هم نه وی که خپلو کنبې متضاد وی نو د هغوی په نزد هم د حقیقت او مجاز مینځ کنبې جمع راوستل باطل دی۔

دغه شان من حیث المجموع مراد اخستل هم بالاتفاق جائز نه دی نو د عموم مشترک بطلان ثابت شو لهذا یو وخت کنبې به د یو لفظ مشترک نه هم یو معنی مراد اخستلې کیږی۔

**قوله** : **واما المؤول فما ترجح من المشترک بعض وجوهه بغالب الرای**

**د مؤول تعریف** : مؤول هغه یو معنی ده چې هغه وخت حاصلیږی چې کله د مشترک بعضې وجوه یعنی یو معنې ته په غالب رائې سره ترجیح ورکړې شی ګویا که د ترجیح نه مخکنبې دا مشترک وو او چې ورته ترجیح ورکړې شوه نو د دې نه پس مؤول جوړ شو۔

**نکته** : ظن غالب کنبې عموم دې چې د هغې څو صورتونه دی کله خو به ظن غالب د خبر واحد په ذریعې سره حاصلیږی کله د قیاس په ذریعې سره او کله به لفظ مشترک کنبې ډیر زیات غور وفکر

کولو سره او کله چې کوم کلام کښې لفظ مشترک وارد شوې دې د
هغې په سیاق و سباق کښې تامل او غورفکر کولو سره بهرحال هیڅ
یو ذریعې سره هم د مشترک په بعضې وجوهو کښې یو ته ترجیح
ورکول تاویل دې او هغه معنې چې هغې ته ترجیح ورکړې شوه هغه
مؤول دې۔

**اعتراض** : اعتراض دا کیږی چې مؤول خو د تاویل په ذریعې سره
حاصلیږی نو تاسو دا د نظم په قسمونو کښې ولې شامل کړو؟

**جواب** : مونږ د دې نه انکار نه کوو چې مؤول د تاویل یعنی د
مجتهد د فعل نه حاصلیږی لیکن چونکه د تاویل نه پس د حکم
نسبت هم د نظم طرفته کیږی په دې وجه مونږ دې لره د نظم په
قسمونو کښې شمار کړو۔

**قوله** : **وحکمه العمل به علی احتمال الغلط**

**د مؤول حکم** : په دې عمل کول واجب دی ظنی طور سره چونکه
په دې کښې د یوې معنې ترجیح د مجتهد په فعل سره وی او
حدیث مبارک کښې راځی چې مجتهد په خپل اجتهاد کښې کله په
حقه وی او کله په غلطی بآندې لیکن اجر ورته ضرور ملاویږی۔

الغرض چې هرکله دې کښې د خطاء او د غلطی احتمال
راغې نو په دې کښې ظنیت پیدا شو نو دې کښې به د ظنیت فائده
دا وی چې د دې معنې مؤوله منکِر ته به کافر نه وئیلې کیږی ځکه
چې ممکن ده چې دا حق معنی نه وی بلکه د دې برخلاف وی۔

**قوله** واما الظاهر فاسم لكلام ظهر المراد به للسامع بصيغته وحكمه وجوب العمل بالذى ظهر منه على سبيل القطع واليقين ـ

د دې ځای نه مصنف رحمه الله تقسيم ثانى شروع فرمائى د دې تقسيم تېن ظهور افراد په اعتبار د معنې او خفاء افراد په اعتبار د خفاء د معنې دی چې لاندې ذکر کولې شی

## د ظهور د معنى په اعتبار سره د نص تقسيم

(۱) ظاهر (۲) نص (۳) مفسر (۴) محكم

(۱) **رومبې قسم د ظاهر تعريف**

ظاهر دهغه کلام نوم دې چه صرف دهغې صيغې سره دهغې مراد د سامع په مخکښې ښکاره شي.

**د ظاهر مثال** احل الله البيع وحرم الربوا»_دا آيت د بيع په حلت او د ربوا په حرمت کښې ظاهر دې

**د ظاهر حکم** ددې حکم دادې چه ددې په مراد باندې عمل کول واجب دی يقينی طورسره.

**قوله** واما النص فما ازداد وضوحاً على الظاهر لمعنى من المتكلم لا فى نفس الصغية وحكمه وجوب العمل بما وضح على احتمال التاويل وهو فى حيز المجاز.

(۲) **دويم قسم د نص تعريف** نص هغه کلام دې چه هغه هم ددې

مقصد دپاره متکلم راوړلې وی. ماتن رحمه الله ددې تعریف ،،ماسیق الکلام لاجله،،نه دې فرمائیلې. لکه څنګه چه صاحب داصول الشاشی اونورو داصول علماؤ کړې دې.بلکه هغوی دا تعریف کوی:
نص هغه دې چه په هغې کښې د ظاهر نه زیات ظاهریت موندلې کیږی د متکلم د طرفه د یوې معنی په وجه. داسې چه متکلم دا نظم هم دې معنی دپاره راوړلې وی. مشهور دادی چه په نص کښې سوق دکلام شرط دې اوپه ظاهر کښې عدم د سوق شرط دې. لیکن صحیح داده چه په نص کښې خو سوق شرط دې لیکن په ظاهرکښې په سوق یا عدم سوق کښې یوهم شرط نه دې.

**د نص مثال**: الله تعالی په قرآن مجید کښې د ازواج (ښځو) د شمیر متعلق ارشاد فرمائیلې دې:
،،فانکحوا ما طاب لکم من النساء مثنی وثلث وربٰع،،_ دا آیت په تعدد د ازواج کښې نص دې ځکه چه صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه سوال کړې وو چه اې دالله رسوله صلی الله علیه وسلم! مونږ په یو وخت څومره ښځې په خپله نکاح کښې ساتلې شو؟ چه په دې سره دا آیت نازل شوې وو.

**د نص حکم**: دنص حکم دادې چه کومه معنی واضحه وی په هغې باندې عمل کول واجب دی لیکن په دې کښې به د تاویل احتمال وی اودا تاویل به داسې وی چه که عام وی نود تخصیص احتمال به وی اوکه حقیقت وی نود مجاز احتمال به وی

**قوله** واما المفسر فما ازداد وضوحاً على النص على وجه لا يبقى معه احتمال التاويل والتخصيص وحكمه وجوب العمل به على احتمال النسخ.

**۳. دریم قسم د مفسر تعریف:**

مفسر هغه دي چه په هغې کښې د نص نه هم زیات وضاحت وي. تر دې چه په دې کښې د تاویل او تخصیص احتمال پاتې نه شي. او دا احتمال به یا د نبي په بیان سره ختمیږي یا د الله تعالی په قول سره.

**د مفسر مثال** د الله تعالی فرمان دي (فسجد الملائكة كلهم اجمعون) د دې مثال وضاحت دا دي چه کله ئې (فسجد الملائكة) وفرمائیل نو فرشتو ته د سجدې کولو علم اوشو. خو په دې کښې د تخصیص احتمال وو. چه شاید ټولو فرشتو سجده نه وي کړې، بلکه اکثرو فرشتو کړې وي. او د وللاکثر حکم الکل په طریقه ئې عام ساتې وي. خو (كلهم) لفظ دا احتمال رد کړو. اوس دا احتمال هم وو چه ټولو فرشتو کومه سجده اوکړه شاید د دې کیفیت اجتماعي نه وي بلکه ډلې ډلې په شکل کښې یا یو اخې خانله ئې پرله پسې کړې وي. د (اجمعون) لفظ دا احتمال هم ختم کړو. لهذا اوس دا آیت مفسر جوړ شو

**د مفسر حکم** د مفسر حکم دا دي چه په دې باندې عمل کول واجب دي لیکن په دې کښې د نسخ احتمال وي

**قوله** واما المحكم فما احكم المراد به عن احتمال النسخ والتبديل تعدية وحكمه وجوب العمل به من غير احتمال.

**۴، څلورم قسم د محکم تعریف.**

محکم هغه دي چه دهغي مراد دنسخ او تبديلئ احتمال نه محفوظ وی یا به دا محفوظ وی ځکه چه تبديلی به عقلا محال وی لکه د توحيد رسالت وغيره صفاتو کښي تبديلی عقلا محال ده. دي ته محکم لعينه وائی. یا دنبی علیه السلام د وفات په وجه په دي کښي دنسخ احتمال ختم شوي وی. او دي ته محکم لغيره وائی. او ددي حکم هم د محکم لعينه په شان دي

**د محکم حکم:** دمحکم حکم دادي چه په دي باندي عمل کول واجب او قطعی دي بغير د تويل او تخصيص او نسخ د احتمال نه. ددي منکر ته کافر ونيلي شی

**قوله: كقول الله تعالى احل الله البيع وحرم الربوا وقوله تعالى: فسجد الملائكة كلهم اجمعون الا ابليس. وقوله تعالى: ان الله بكل شيء عليم.**

**په کتاب کښي د ذکر شوی مثال وضاحت:**

د ظاهر او نص مثال (احل الله البيع وحرم الربوا) دا آيت ظاهردي د بيع حلت اود ربوا حرمت بيانولو کښي. اونص دي ددي دواړو په مينځ کښي فرق کولو کښي

**او بل مثال:** فانكحوا ما طاب لكم من النساء مثنى وثلث ورباع، دا آيت ظاهردي په نکاح جائز کيدو کښي او نص دي د عدد په بيان کښي

**د مفسر مثال** فسجد الملائكة كلهم اجمعون، په دي آيت کښي د

تخصيص او تويل احتمال وو مګر (کلهم)راوړلو سره ئې د
تخصيص احتمال او (اجمعون)راوړلو سره ئې د تاويل احتمال ختم
کړو چه ددې بيان مونږ تفضيل سره کړې دې.

**د مفسر په مثال باندې ړومبې اعتراض**: اوس هم احتمال دې چه
دوی حلقه جوړولو سره سجده کړې وی يا ئې صف جوړولو سره کړې
وی. لهذا هرکله چه په دې کښې احتمال باقی دې نو دې لره د مفسر
مثال جوړول په څنګه صحيح وی؟

**جواب**: دې احتمال سره د تعظيم په بيان کښې هيڅ فرق نه راځی.

**دويم جواب**: دادې چه زمونږ دا دعوی نه ده چه دا آيت من کل
الوجوه مفسر دې لهذا په دې کښې مذکوره احتمال راتلل ددې
مفسر کيدو ته ضرر نه رسوی

**دويم اعتراض**: په دې کښې د ابليس استثناء شوې ده. کما
فی قوله تعالى: (فسجد الملائکة کلهم اجمعون الاابليس)او استثناء د
تخصيص په شان ده. لهذا دا مفسرنه شی کيدې.څکه چه مفسر خو
د تخصيص احتمال نه لری؟

**جواب**: استثناء د تخصيص د قبيل څنې نه ده څکه چه تخصيص
مستقل کلام سره کيږی او مستثنی مستقل کلام سره نه کيږی.

**دويم جواب**: دادې چه دا مستثنی منقطع ده لهذا دا په مستثنی
منه کښې د سره داخل نه ده. حالانکه تخصيص خو په عام کښې
داخل وی. پس معلومه شوه چه دا ونيل صحيح نه دی چه استثناء د
تخصيص په شان وی

**دریم اعتراض** : دریم اعتراض دا کیږی چه دا آیت دا سې خبر دي چه په دې کښې د نسخ احتمال نه دې لهذا دې لره د مفسر په ځائې د محکم مثال کیدل پکار وو.

**جواب** . اصل کښې خو په دې کښې د نسخ احتمال وو. په دې وجه دا د مفسر مثال جوړیدې شی. صاحب د توضیح وائی چه ددې په ځائې دا مثال زیات واضحه دې. **وقاتلوا المشركين كافة**، ځکه چه دا د شرعي د احکامو څنې دې

او د محکم مثال . (**ان الله بكل شیء عليم**) دې چونکه دا د عقائدو باره کښې دې لهذا په دې کښې د تاویل او تخصیص او نسخ وغیره احتمال نشته.

**نکته** : صاحب د توضیح وائی چه ددې بهتر مثال دا دې چه . **الجهاد ماض الى يوم القيامة**، ځکه چه دا د احکامو د باب نه دې

**قوله** : **ويظهر التفاوت عند التعارض ليصير الادنى متروكا بالاعلى حتى قلنا اذا تزوج امراة الى شهر انه متعة.**

ددې څلور وارو په مینځ کښې به فرق هغه وخت ښکاره کیږی کله چه په دې کښې تعارض وی ځکه چه هغه وخت به د اعلى په وجه ادنى پریښودلې شی. مثلاً د ظاهر او نص تعارض وی نو په نص باندې عمل کولو سره به ظاهر پریښودې شی

ددې مثال دا دې چه په قرآن کریم کښې دی **واحل لكم ما وراء ذلكم**، او بل ځائې کښې دی **فانكحوا ما طاب لكم من النساء...الخ**، د دوميی آيت د ظاهر نه معلوميږی چه د څلورو نه

زیتې ښځې حلالې دي ځکه چه مخکښې محارمو ذکر دې. بیا ئې اوفرمائیل چه ددوی نه علاوه سره نکاح ستاسو دپاره حلال ده. چه په دې کښې د هیڅ عدد (شمیر) تحدید نشته. او ددویم آیت د نص نه معلومیږي چه د څلورو نه زیات نکاح (ودونه) کول په یو وخت کښې جائز نه دي. لهٰذا په نص باندې به عمل کولې شي.

د نص او مفسر د تعارض مثال دادې چه په یو حدیث کښې حضور ﷺ اوفرمائیل (المستحاضة تتوضا لكل صلوة) او په دویم حدیث کښې ئې فرمائي چه (المستحاضة تتوضا لوقت كل صلوة)

د اول حدیث په دې کښې نص دې چه هر مونځ دپاره نوې اودس ضروري دې. که ادا وي او که قضا، یا نفل. لیکن په دې کښې د احتمال دې چه لام د وخت په معنی کښې وي. او په دویم حدیث کښې مفسر دې. په دې کښې د تاویل هیڅ احتمال نشته. لهٰذا د دویم حدیث مطابق د یو مونځ په وخت کښې د هرقسم مونځونو دپاره به یو اودس کافي وي

د مفسر او محکم د تعارض مثال د الله تعالی دا فرمان دې: (واشهدوا ذوى عدل منكم) دا آیت د عادل خلقو د ګواهئ قبلولو په حکم کښې مفسر دې. که هغوی اصلا عادل وي یا محدودین فی القذف وي. چه هغوی د حد لګولو نه پس د شریعت په روسره عادل جوړ شوي دي. غرض دا چه دا آیت تقاضا کوي چه د محدودین فی القذف ګواهي به معتبره وي خو ددې تعارض د یو بل آیت (فلا تقبلوا لهم شهادة ابداً) سره دې چه هغه په دې امر کښې محکم دې چه د محدودین فی القذف ګواهي کله هم ترقیامته پورې قبول نه کړې

شي. د ترجيح صورت به داوی چه محکم ته به ترجیح ورکولو سره وئیلي شي چه د محدودین في القذف گواهي د قبلولو قابل نه ده

**د نص او مفسر د تعارض وضاحت يوې فقهي مسئلې سره**

مصنف يوه فقهي مسئله دمثال په طور ذکر کړې ده. چه يو سړی او وئيل: اتزوج امراة الى شهر په دې کښي اتزوج د نکاح باره کښي نص دې. ليکن په دې کښي د نکاح الى اجل احتمال هم شته. نو کله چه هغهٔ الی شهر او وئيل نو مفسر شو. لهذا دا اوس د متعه نه علاوه دبلې نکاح احتمال نه لري

## د خفائي معنى په اعتبار سره د نص تقسيم

ددې څلورو قسمونو د بيان نه د فارغيدو نه پس مصنف ددې مقابلات ذکر کوی نو فرمائي چه

**قوله**: **واما الخفى فما خفى مراده بعارض غير الصيغة لا ينال الا بالطلب حكمه النظر فيه ليعلم ان اختفاءه لمزية او نقصان فيظهر المراد به كاية السرقة فى حق الطرار والنباش.**

(۱) **رومبي قسم: د خفی تعريف.**

خفی هغه دې چه دهغې مراد د صيغې نه علاوه دبل څه عارض په وجه مخفی شوې وی چه بغير د طلب نه نهٔ حاصليږی

**د خفی د تعريف وضاحت يو محسوس امر سره:**

مصنف د نورالانوار دخفی تعریف چه يو امرمعقول دې وضاحت ئې يو امرمحسوس سره کړې دې چه: هغې حاصل دادې چه دمثال په

ضوربندي یوسړي چه هغه د جامو او هیئت بدلولو نه بغیر یوقسم عارضي حیلي سره ښارکښي پټ شي. نو اوس د هغهٔ تلاش کولو دپاره د کافي کوشش او لټون ضرورت وي. دغسي د خفی مراد هم داسي مخفی شي چه د هغي نه د خبریدو دپاره د طلب ضرورت وي.

**د خفی حکم** په دي لفظ خفی کښي په دي طریقې سره غور او فکر وکړی شي چه آیا ددي د مراد خفاء دمعنی د زیاتوالی په وجه ده یا دنقصان او کمی په وجه. که چرې دا خفاء د معنی د زیاتوالی په وجه وي نو د اصل والا حکم به نه شی لګولي. او که دا خفاء د معنی دنقصان په وجه وي نو د اصل والا حکم به نه شی لګولي.

**د حکم مثال سره وضاحت**

الله تعالی په قرآن حکیم کښي ارشاد فرمائیلي (والسارق والسارقة فاقطعوا ایدیهما) ددي آیت سره د غلا کولو والا سړی او ښځي حکم په طریقه دظاهر سره معلوم شو. چه د دوی لاس به کټ کولی شي. لیکن آیا دا سزا به په طرار (جیب تراش) او په نباش (کفن چور) باندی وي یا به نه وي. په دي باره کښي آیت کښي خفاء ده. او خفاء د سرقه په معنی کښي تامل او د طرار او نباش د فعل سره د مقابله نه بغیر نه لري کیږي. دتیولو نه اول مونږ د سرقه په اصطلاح د شرع کښي تعریف نه او کتل. چه هغه دادي (اخذ مال محترم محرز خفیة) یعنی داسي مال په پټه اخستل چه هغه د نصاب مقدار ته رسیږي. او د هغي حفاظت هم شوي وي. اوس مونږ ددي د معنی تقابل د طرار (جیب تراش) فعل سره اوکړو. نو معلومه شوه چه په دي کښي دا معنی زیاتوالی سره موندلي شي. ځکه چه هغه

محرز (محفوظ) او محترم مال په ښکاره اخلي

لهذا په طرار باندې به هم د لاس کټ کولو حکم لګولې شي. البته په نباش (کفن چور) باندې به دا حکم نه شي لګولې. ځکه چه دده په فعل کښې د سرقې والا معنی نقصان سره بیاموندې شي. ځکه چه هغه داسې مال په پټه د اخستلو جرم کوی چه هغه محفوظ نه وی، ځکه چه دا خبره دهیڅا نه پټه نه ده. چه مړي دخپل کفن په حفاظت باندې قادر نه دې. که د مړی تدفین په داسې ځائې کښې شوې وی چه هغه محفوظ او په امن کښې وی او دهغه ځائې نه کفن پټ کړې شو. نو د داسې نباش په حکم کښې دوه اقوال دی

**اول قول:** دادې چه په ده به د سارق والا سزا جاری کولې شی. ځکه چه دده په فعل باندې د سرقې تعریف من کل الوجوه صادق راځی.

**دویم قول** دادې چه په ده به هم د سارق والا سزا نه جاری کیږی ځکه چه دا صورت نادر دې او د نادر اعتبار نه کیږی.

په نباش باندې د لاس کټ کولو سزا نه جاری کیدل د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله او دهغهٔ د متبعینو مذهب دې او امام ابو یوسف رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د نباش لاس به هم کټ کولې شی ځکه چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی **من نبش قطعنا**۔

مونږ وایو چه دا په سیاست باندې محمول دې ځکه چه بل حدیث دې **لاقطع علی المختفی**، په کفن چور باندې د لاس کټ کولو سزا نشته. او دغسې د نبی کریم ﷺ او خلفائې راشدین رضی الله عنهم اجمعین هم دا عمل پاتې شوې دې

**قوله** واما المشكل فهو الداخل فى اشكاله وحكمه اعتقادا لحقيقة فيما هو المراد ثم الاقبال على الطلب والتامل فيه الى ان يتبين المراد۔

**دويم قسم : د مشكل تعريف :**

مشكل هغه دي چه په خپلو اشكال او امثالو كښې داخل كيږي په وجه بندې مشتبه شى او د طلب نه پس د تامل نه بغير دده مراد حاصل نه وي. لكه مثلاً هغه سړې چه هغه خپل شكل وصورت بدلولو سره د خلقو كښې ملاؤ شى. چه د هغه صرف تلاش كول كافى نه دى بلكه د حليې بدلولو په وجه د هغه پيژندلو دپاره د غور اوفكر هم ضرورت دي.

**د مشكل حكم** دادي حكم دادي چه ددې د مراد حق كيدو اعتقاد به ساتلې شى. بيا به په دي كښې غور او فكر كولې شى چه ددې مراد واضح شى لكه چه په قرآن كښې دى (فاتوا حرثكم انى شئتم)_

لفظ (انى) مشكل دي ځكه چه كله دا د من اين يعنى د مكان او محل د عموم په معنى كښې راځى. لكه چه په قرآن كښې دى چه حضرت زكريا عليه السلام د حضرت بى بى مريم (رضى الله عنها) نه د بې موسمه ميوو باره كښې معلومات كړى وو (انى لك هذا) اې مريمې تا سره دا بې موسمه ميوې د كوم ځاى نه راغلې؟.. او كله دا د كيفيت به معنى كښې راځى لكه چه په قرآن مجيد كښې د بى بى مريم قول دي (انى يكون لى غلام ولم يمسسنى بشر) زما بچې به څنګه اوشى ؟..

ليكن مونږ چه کله په لفظ (حرث) کښې غور او فکر وکړو نو مونږ ته معلومه شوه چه دلته (انی) د کیف په معنې کښې دی. ځکه چه ..دُبر.. د حرث ځائې نه دې. د حرث ځائې ..فرث.. دې. لهٰذا مذکوره آیت (فأتوا حرثکم انی شئتم) کښې انی د مکان د عموم دپاره دې یا عموم د احوال دپاره. مخکښې مونږه معنی طلب کړله. اوس که انی د عموم مکان دپاره یعنې په معنی د این وی نو مطلب به داوی چه ښځې سره لواطت ..اتیان من قبل الدبر» به هم حلال وی خو د دې نه سیاق د آیت (فأتوا حرثکم) مانع دې. ځکه چه ښځه حرث (پټې) ګرځولې شوې ده. او ښکاره خبره ده چه دُبر د حرث ځائې نه دې. بلکه دا د فرث (متیازو او ګندګۍ) ځائې دې. لهٰذا متعین شوه چه هر کله (انی) د مکان د عموم دپاره نه دې نو لامحاله عموم د احوالو دپاره دې. او د آیت نه مراد دا دې چه خپلو ښځو سره وطی او مباشرت کوئ چه په کوم حالت کښې ستاسو زړهٔ غواړی. په ولاړه وی یا په ناسته یا په ملاسته. البته صحیح طریقه هغه ده. د کومې چه نبی کریم ﷺ امت ته تعلیم ورکړې دې. د هغې نه علاوه ټولې طریقې د سنت خلاف دی. او انسانی عقل هم د جواز باوجود په هغې باندې نه راضی کیږی. غرض داچه په مذکوره آیت کښې (انی) د کیف په معنی کښې دی

**نکته**: د لواطت حرمت د حیض په حالت کښې د وطی په حرمت باندې هم قیاس کړې شوې دې. چه د حیض په حالت کښې د وطی د حرمت وجه اذی (ګندګی) ده. چه دا په لواطت کښې په اتم او اکمل درجه کښې موندلې کیږی.

او کله کله اشکال د يوې مخفي استعارې په وجه هم کيږي.
لکه چه په قرآن مجيد کښې دی (قواريرمن فضة) په دې کښې مشکل دا دی چه قارورة (چه د دې جمع په آيت کښې مذکوره) د چندۍ سپينو زرو نه وي. بلکه د شيشې وي خو کله چه مونږ غور وکړو نو مونږ دې نتيجې ته اورسيدو چه د جنت لوخي به په صفا والي کښې د شيشې په شان وي او په سپين والي کښې به د چندۍ په شان وي

**قوله** واما المجمل فما ازدحمت فيه المعاني واشتبه المراد به اشتباهاً لا يدرک بنفس العبارة بل بالرجوع الى الاستفسار ثم الطلب ثم التامل وحکمه اعتقاد الحقيقة فيما هو المراد والتوقف فيه الى ان يتبين ببيان المجمل کالصلوة والزکوة۔

**۳. دريم قسم د مجمل تعريف**

مجمل هغه دې چه په هغې کښې معاني ګڼړې (ډيرې) شي. او د يو والي (مترادف) کيدو په وجه مراد د نفس عبارت نه معلوم نه شي. بلکه د استفسار او د غور او فکر کولو نه علاوه د طلب او تلاش ضرورت وي

په دې کښې به اجمال وی د لفظ د غرابت (نا آشنا والي) په اعتبار سره. لکه چه قرآن مجيد کښې دی (ان الانسان خلق هلوعا) لفظ (هلوع) د بيان نه مخکښې د خپل غرابت په وجه مجمل وو. ليکن دا غرابت دې بيان سره ختم شو چه کله هغې ته ضرر رسيږي. نو هغه بې قراره (پريشانه) کيږي. او کله چه ورته خير (خوشحالي) رسيږي نو پوره منع کونکې او بخيل جوړيږي۔

د نورالانوار مصنف د عادت مطابق ددې امر معقول تشبیه امر
محسوس سره وکړې ده چه ددې مثال داسې دې لکه چه یو اجنبی
سړې د خپل وطن نه وځی. اوپه عامو خلقو کښې لاړ شی نو په هغه
خبر یدل نه شی کیدې ترڅو چه د عامو خلقو نه معلومات اونه کړې شی

**د مجمل حکم** د مجمل حکم دادې چه ددې د مراد د حق
کیدو اعتقاد اوساتلې شی او په دې کښې توقف وکړې شی تردې
چه د مجمل بیان سره ددې وضاحت اوکړې شی

بیا کله خو نه کافی وضاحت وکړې شی لکه (صلوة) او
(زکوة) چه صلوة په لغت کښې دعاء ته وائی. مونږ چه تلاش وکړو
نو نبی کریم ﷺ په خپلو افعالو سره د اول نه تر آخره پورې د مونځ
وضاحت وکړو. بیا مونږ طلب وکړو چه دا مونځ په کومو معانیو
بندې مشتمل دې نو معلومه شوه چه مونځ په قیام وغیره باندې
مشتمل دې. بیا مونږ غور وکړو نو معلومه شوه چه د مونځ بعضې
څیزونه فرض دی او بعض واجب دی وغیره

د غسې د زکوة په لغت کښې معنی راځی نماء زیاتوالې
لیکن دا خو مراد نه دې نو حضور ﷺ دا بیان کړو چه (هاتوا ربع
عشر اموالکم) بیا مونږ اسباب وغیره طلب کړو نو معلومه شوه چه د نصاب
مالک کیدل علت دې او حولان حول .کال تیریدل، ورله شرط دی
یا به کافی شافی وضاحت نه وی شوې. لکه چه (ربوا) مجمل
وو. نبی علیه السلام دې لره خپل دې حدیث سره بیان اوفرمائیلو (الحنطة
بالحنطة والشعیر بالشعیر......الخ) بیا مونږ ددې علت تلاش کړو نو دا د

بعضو په نزد قدر او جنس. او د بعضو په نزد طعم. ثمنیت. او د بعضو په نزد اقتیات او ازدخار دي

**قوله** واما المتشابه فهو اسم لما انطع رجاء معرفة المراد منه وحكمه اعتقاد الحقیقة قبل الاصابة كالمقطعات فی اوائل السور مثل الم حم.

**۴. خلورم قسم د متشابه تعریف**

متشابه دهغي لفظ نوم دي چه دهغي د مراد پیژندلو اُمید ختم شي.

**د متشابه حکم**

او د دي حکم دا دی چه د قیامت نه مخکښې دهغې د حق کیدو اعتقاد او ساتلي شي. ځکه چه د قیامت نه پس به پته اولګی چه دا حکمت داسې وه دې. باقي نبي علیه الصلوة والسلام ته خو هسي هم علم وو. او امام شافعي رحمه الله او عام معتزله وائي چه علماء راسخین ته هم د متشابه معنی معلومیږي

**منشاء د اختلاف**

منشاء د اختلاف. د الله تعالی دا قول دی (وما یعلم تأویله الا الله والراسخون في العلم یقولون آمنا به) زمونږ په نزد (الا الله) باندي وقف کول واجب دي. او (والراسخون) نوي جمله ده. ځکه چه الله تعالی د کسانو حصه دا وبنودله چه هغوی په متشابهاتو پسې وریسې کیږي

او دویمه خبره دا ده چه یو قراءت د واؤ نه بغیر (الراسخون) دي. یو بل قراءة کښې د (والراسخون یقولون) په ځائې (ویقول

الراسخون) دي. چه مانع للعطف دي. لهذا راسخين به د (آمنـا بـه) قائل منل وي. د امام شافعي رحمه الله په نزد (والراسخون) عطف دي په (الاالله) باندې. او په (والراسخون فی العلم) باندې وقف دې. لهذا مطلب به داوي چه راسخين فی العلم ته د متشابهاتو علم دې.

د بعضې حضراتو وينا ده چه په حقيقت کښې دا ټول اختلاف لفظي دې، ځکه چه امام شافعي رحمه الله وغيره وائي چه راسخين فی العلم ته د متشابهاتو ظني علم وي. او مونږ وايو چه هغوی ته ددې قطعي علم نه کيږي

**اعتراض** : د متشابهاتو د نزول څه فائده کله چه ددې مراد معلوم هم نه وي؟

**جواب** : مونږ وايو چه ددې فائده د بنده آزمائش کول دی. ځکه چه دهرسړی آزمائش دهغهٔ د خواهش خلاف وي. نو د جاهل آزمائش دادې چه هغهٔ ته دعلم زده کولو حکم وکړې شي او د عالم آزمائش دادې چه هغه د علم (مثلاً په متشابهات وغيره کښې دغور اوفکر کولو) نه منع کړې شي

**د متشابهاتو تقسيم** : بيا متشابه په دوه قسمه دي

(۱) **متشابه المعنی** : وړمبې قسم هغه دې چه دهغې معنی هم معلومه نه وي. لکه حروف مقطعات

(۲) **متشابه المراد** : دويم قسم دادې چه دهغې معنی معلومه وي ليکن ددې نه دا الله تعالى څه مراد دې؟ هغه معلوم نه وي لکه يد الله، وجه الله وغيره

**قوله** اما الحقيقة فاسم لكل لفظ اريد به ما وضع له وحكمها وجود ما وضع له خاصاً كان او عاماً۔

## دريم تقسيم :

د دويم تقسيم نه د فارغيدو نه پس اوس مصنف رحمه الله دريم تقسيم شروع كوى اوهغه دې (۱) حقيت او مجاز (۲) صريح او كنايه۔

**د حقيقت تعريف**

حقيقت دهغې لفظ نوم دې چه دهغې نه هغه معنى مراد وى دكوم دپاره چه دا وضع كړې شوې وى.

**د وضع تعريف** : اوس دوضع مطلب دادې چه دا لفظ د يوې معنى دپاره تعين كول. بيا معين كول كه د لغت د واضع دطرفه وى نودا به وضع لغوى وى. لكه د انسان وضع د حيوان ناطق دپاره. اوكه د شارع دطرفه وى نووضع شرعى به وى لكه د صلوة وضع د مونځ دپاره. اوكه دا تعين د يومخصوص قوم دطرفه وى نو وضع عرفى خاص به وى لكه د فعل وضع كلمه مخصوص دپاره. اوكه تعين عوام (عرف عام) طرف نه وى نو وضع عرفى عام به وى. ددې مثال دابة دې. چه دا د خناورو دپاره وضع كړې شوې دې.

**د حقيقت حكم**

دحقيقت حكم دادې چه دكومې معنى دپاره دا وضع كړې شوې دې هغه بيامونديې شى كه دغه معنى خاص وى اوكه عام وى

**قوله**: واما المجاز فاسم لما ارید به غیر ما وضع له لمناسبة بینها وحکمه وجود ما استعیر له خاصاً کان او عام۔

**د مجاز تعریف**: مجاز د هرهغه لفظ نوم دې چه دهغې نه مراد غیرموضوع له معنی وی. په دواړو ..معنی حقیقی او معنی مجازی.. په منځ کښې د مناسبت په وجه

**د مناسبت د قید فائده**:

د مناسبت قید لګولو سره ئې احتراز وکړودې نه چه ارض د سماء دپاره استعمال کړې شی. ځکه چه زمکه او آسمان کښې هیڅ مناسبت نشته. دغسې د هزل یعنی ټوقو نه احتراز شوې دې.

**نکته**: بیا صاحب دکتاب وائی چه د حقیقت او مجاز دواړو په تعریف کښې د حیثیت قید لګول ضروری دې چه دواړه تعریفونه د جامع مانع کیدو په اعتبارسره مات نه شی. ځکه چه د صلوة لفظ په لغت کښې دعا دپاره دې او په شریعت کښې د ارکان معلومه مخصوصه دپاره دې. نو لفظ د صلوة د لغت په اعتبارسره په دعاء کښې حقیقت دې او په ارکان معلومه مخصوصه کښې مجاز دې او د شریعت په اعتبارسره په ارکان معلومه مخصوصه کښې حقیقت دې او په دعاء کښې مجازدې.

**د مجاز حکم**: د مجاز حکم دادې چه د کومې معنی دپاره دا مستعار اخستلې شوې وی هغه معنی به پکښې موندلې شی. که دغه معنی خاص وی او که عام وی

**قوله** وقال الشافعی رحمه الله لا عموم للمجاز لانه ضروری وانا نقول ان عموم الحقیقة لم یکن لکونها حقیقة بل لدلالة زائدة علی تلک الحقیقة وکیف یقال انه ضروری وقد کثر ذلک فی کتاب الله تعالی ۔

**عموم مجاز جائز دې یا نه؟**

**د شوافعو مذهب** امام شافعي رحمه الله فرمائی چه په مجاز کښې عموم نه وی یعنې عموم مجاز جائز نه دې. د امام شافعي رحمه الله د دلیل حاصل دا دې چه مجاز ضروری دې یعنې د ضرورت په وجه دې طرف ته رجوع کولې شی کله چه حقیقی معنی مراد اخستل متعذر وی او ضرورت په قدر د ضرورت مقدر منلې کیږی (الضرورة تتقدر بقدرها)

**د احنافو مذهب**

د احنافو په نزد عموم مجاز جائزدې یعنې معنی د ومره عامه کړې شی چه په هغې کښې حقیقی او مجازی دواړه معانې راشی

**د احنافو دلیل**

مونږ وایو چه په حقیقت کښې کوم عموم وی هغه د حقیقت کیدو په وجه نه وی بلکه د یو زیاتې دلالت په وجه وی مثلاً د جمع صیغه کیدل. نکره د نفی په سیاق کښې واقع کیدل وغیره

**شوافعو ته جواب**

لهذا کله چه دا دلالتونه په مجاز کښې وموندلې شی نو هغه به هم عام وی. باقی ستاسو دا دلیل چه مجاز ضروری وی دا صحیح نه

دہ څکہ چہ پہ کتاب اللہ کښې مجاز کثرت سرہ راغلي دي.
حالانکہ اللہ تعالی دضرورت نہ پاک دي، کہ مونږ مجاز د ضرورت
حدہ پورې جائز وګرځوو. نو اللہ تعالی دپارہ بہ ضرورت ثابتول لازم
شي چہ دا دعجز علامت دي او اللہ تعالی د عجز نہ پاک دي.

**اعتراض**: شوافع پہ احنافو باندې اعتراض کوي چہ هم دا خبرہ خو
د مقتضی پہ صورت کښې هم لازمیږي مقتضی پہ قرآن مجید
کښې کثرت سرہ واقع دہ حالانکہ دا هم ضروري دہ.

**جواب**: مقتضاء د استدلال د اقسامو څخہ دہ لہذا هلتہ دضرورت
تعلق مجتهد سرہ دي، متکلم سرہ نہ دي چہ اللہ تعالی دي. لہذا
اللہ تعالی دپارہ عجز اوضرورت نہ ثابتیږي. شارح فرمائی چہ
دانصاف خبرہ دادہ چہ د مجاز ضرورت کیدل هم د سامع پہ
اعتبارسرہ دي.

**قوله**: ولهذا جعلنا لفظ الصاع فی حديث ابن عمر رضی اللہ
عنه عاماً فيما يحله_

**د عموم مجاز یو مثال**:
هم پہ دي وجہ مونږ وایو چہ چونکہ پہ مجاز کښې عموم وي لہذا
دحضرت عبد اللہ ابن عمر رضی اللہ عنهما پہ دې حدیث کښې چہ
(لاتبيعوا الدرهم بالدرهمين ولا الصاع بالصاعين) صاع دهر هغہ
څیز نوم دي چہ هغہ پہ صاع کښې حلول کوي. د لوښي (صاع) بیع
دوہ لوښو (صاع) سرہ جائزدہ، نو امام شافعي رحمه الله دلتہ لفظ د طعام
(مقدر) راوباسي ګویا اصل عبارت داسې دي (لاتبيعوا الطعام

الحث في الصاع بأطعام الحال في الصاعين) او مونږ داسې تقدير راوړو سو چه (لاتبيعوا كل مايحل في الصاع بالصاعين)

**قوله** والحقيقة لا تسقط عن المسمى بخلاف المجاز و متى امكن العمل بها سقط المجاز فيكون العقد لما ينعقد دون العزم والنكاح للوطى دون العقد۔

**د حقيقت او مجاز پيژندلو علامت**

مصنف دلته د يو سوال جواب ورکوی چه د حقيقت او مجاز پيژندګلو به څنګه کيږي يعنی څنګه به معلوميږی چه دلته لفظ په معنی حقيقی باندې محمول دې يا په معنی مجازی باندې. نو وې فرمائيل چه د حقيقت په صورت کښې معنی حقيقی د خپلې مسمی نه نه ساقطيږی. مثلاً (اب) ته (اب) وئيلې شی، نو (ليس باب) نه شی وئيلې کيدې. چه هغه (اب) نه دې، ليکن مجاز د خپلې مسمی نه ساقطيږی مثلاً (جد) ته هم (اب) وئيلې شی. ليکن جد ته (ليس باب) وئيل هم صحيح دی

وروسته مصنف رحمه الله يو اصول او قاعده بيانوی چه ترڅو پورې په حقيقت باندې عمل کول ممکن وی ترهغه وخته پورې به مجاز ساقط وی. ځکه چه مجاز د حقيقت نائب. خليفه او مستعار دې. او کله چه اصل وی نو نائب. خليفه او مستعار څيز طرف ته رجوع نه شی کيدلې. (المستعار لايزاحم الاصل) په دې اصول باندې مصنف رحمه الله دوه تفريعات پيش کړی دی.

(۱) **اوله تفریع** : په قرآن کریم کښې دی : (ولکن یؤاخذکم بما عقدتم الایمان...الخ) د عقد لفظ یمین منعقده دپاره حقیقت دې او د عزم معنی دپاره مجاز دې. نو چونکه دلته دا حقیقت مراد واخستلې شو. نو مجاز به ساقط شی. ددې اجمال تفصیل دا دې چه په اصل کښې یمین په درې قسمه دې:

(۱) **یمین لغو** : یو خبره رښتیا کنړلو سره په هغې باندې قسم اوخوری یا هغه قسم چې د عادت په طور په ژبه باندې جاری وی د دې حکم دا دې چې په کښې نهٔ گناه ده او نه کفاره

(۲) **یمین غموس** : یو کس ته دهوکه ورکولو دپاره د زمانه ماضی په یو خبره باندې قصداً په دروغه قسم خوړل د دې حکم دا دې چې گناه شته او کفاره نشته

(۳) **یمین منعقده** : د یو کار کولو یا د نه کولو په اراده باندې قسم خوړل چې دا کار به کوم یا بهٔ نه کوم او بیا د خپلې اراد خلاف اوکړی نو د دې حکم دا دې چې گناه هم شته او کفاره هم شتهٔ

اصل خبره دا ده چې الله تعالی د یمین مسئله په قرآن پاک کښې دوه ځله ذکر کړې ده اول سورة بقرة کښې فرمائی (ولکن یؤاخذکم بما کسبت قلوبکم) بیا سورة مائده کښې فرمائی (ولکن یؤاخذکم بما عقدتم الایمان) نو امام شافعی رحمه الله فرمائی چې په دواړو ځایونو کښې هم یو معنی ده لهذا غموس او منعقده دواړو کښې کفاره ده _

مونږ وايو چې د عقد لفظ د يمين منعقده دپاره حقيقت دي لهذا د سورة مائده آيت کريمه په دې باندې دلالت کوی چې کفاره صرف منعقده کښې ده په خلاف د سورة بقرې د آيت مبارک چې هغه په عدم باندې دلالت کوی چې غموس او منعقده دواړو ته شامل دي او په دې کښې مواخذه هم مطلق ده لهذا د دې فرد کامل به مراد اخستلې کيږی او هغه مواخذه اخرويه ده يعنی گناه

**دويمه تفريع** : په دې مسئلې باندې مصنف رحمه الله د بلې مسئلې تفريع کړې ده چې قرآن پاک کښې دی ﴿ ولا تنكحوا ما نكح آباؤكم الخ ﴾ مونږ وايو چې دلته د نکاح نه مراد وطی ده صرف د نکاح عقد نه دي لهذا دا آيت کريمه وطی حلال او حرام دواړو ته شامل دي او دواړو صورتونو کښې به حرمت مصاهرت ثابتيږی ځکه چې د نکاح معنی لغت کښې ده الضم يعنی ملاويدل او ملاويدل هم د وطی په ذريعې سره کيږی او عقد ته نکاح ځکه وئيلې کيږی چې هغه د ملاوولو يعنی د ښځې خاوند خپلو کښې د ملاوولو سبب جوړيږی

لیکن امام شافعی صاحب رحمه الله فرمائی چې دلته صرف د نکاح عقد مراد دي لهذا وطی مراد نه ده حرمت مصاهرت به صرف عقد نکاح سره ثابتيږی زنا سره به نه ثابتيږی

**قوله** : ويستحيل اجتماعهما مرادين بلفظ واحد كما استحال ان يكون الثوب الواحد على اللابس ملكاً وعارية فی زمان واحد حتى قلنا ان الوصية للموالی لا تتناول موالی الموالی واذا كان له معتق واحد يستحق النصف ـ

**د حقيت او مجاز مينځ کنبې جمع والې جائز دې که نه ؟**

د امام شافعي رحمه الله او زمونږ مينځ کنبې په دې خبره خو اتفاق دې چې يو لفظ ظاهرى اعتبار سره د حقيقت او مجاز دواړو احتمال لرى او په دې خبره هم اتفاق دې چې د لفظ يو داسې معنى مجازى مراد اخستلې کيدې شى چې حقيقت د عموم مجاز په طريقې سره د دې معنى مجازى په افرادو کنبې يو فرد وى

ليکن اختلاف په دې خبره کنبې دې چې امام شافعي رحمه الله فرمائى چې د يو لفظ حقيقى او مجازى معنى دواړو لره مستقل طور باندې مراد اخستل جائز دى او زمونږ په نزد دا جائز نه دى مثلاً داسې نه شى کيدې چې لفظ اسد اووئيلې شى او د دې نه هم په يو وخت کنبې درنده هم مراد وى او بهادر سړې ترې هم مراد وى

**د احنافو استدلال** : زمونږ په نزد يا خو دا عقلاً محال ده يا په دې وجه محال ده چې عرف او استعمال کنبې داسې نه کيږى

**د امر معقول مثال په امر محسوس سره**

مصنف رحمه الله د دې محسوس مثال دا ورکړې دې چې لفظ په منزله د لباس دې او معنى په منزله د لابس (اغوستونکى) ده او حقيقت او مجاز بالترتيب په منزله د ملک او د عاريت دى څنګه چې دا نه شى کيدې چې د يو لباس د يو سړى دپاره په يو وخت کنبې د ملک په طور باندې هم وى او د عاريت په طور باندې هم وى دغه شان دا هم نه شى کيدې چې يو لفظ په يو وخت کنبې د حقيقت په طور باندې هم مستعمل وى او د مجاز په طور باندې دې هم مستعمل وى ـ

**اعتراض:** چي کله راهن د مرتهن نه ثوب مرهون مستعار واخلي او واچوي نو په دي باندې دا خبره صادق راځي چې دا کپړه بطور ملک هم ده او بطور عاريت هم ده

**جواب:** کپړه د راهن سره بطور عاريت نه ده بلکه بطور ملک ده او د دې اچول ممنوع وو د مرتهن د حق په وجه سره چې هرکله د هغهٔ حق نړې شو نو اوس خپل اصل طرفته راغله

**د جمع بين الحقيقت والمجاز په استحاله باندې تفريعات**

په دې اصولو باندې مصنف رحمه الله څو مسائل تفريع کړې دی

(١) **رومبی تفريع:** که يو سړی په خپل ثلث مال کښې وصيت اوکړو د خپل موالي دپاره او حالت دا دې چې د دهٔ يو معتَق بالفتح يعني آزاد کړه غلام دې نو هغه به د پوره نيم حقدار وی ليکن که د دهٔ آزاد کنندهٔ او آزاد کړه هر قسم موالي دی نو وصيت به باطل شي ځکه چې د موالي اطلاق په حقيقة **معتِق** او**معتَق** دواړو باندې کيږي او مجازاً د دې اطلاق په **معتِق المعتِق** او **معتَقِ المعتَق** باندې کيږي نو اوس که د دهٔ معتِق او معتَق دواړه دی نو د اشتراک معنوی په وجه به وصيت باطل شي او که د دهٔ معتِق نه وی بلکه صرف معتَق وی او معتق المعتَق وی نو صرف معتق به مستحق وی البته که د دهٔ څوک معتق نه وو بلکه صرف معتق المعتَق وو نو هغه به د وصيت مستحق وی

**قوله** ولا يلحق غير الخمر بالخمر

(٢) **دويمه تفريع** شرابو سره غير شراب نشه آور څيزونه مثلاً طلاء

نقیع التمر والزبیب به نه شی لاحق کولې ځکه چې شرابو کښې خو
بو قطرې څکلو سره هم حد واجب کیږی لیکن د شرابو نه علاوه چې
ترڅو پورې نشه نه وی نو هغه وخت پورې به حد نه واجب کیږی او
شراب د انګورو کچه اوبهٔ وی چې کله هغه اوخوټکیږی او کلک
شی او زګ اونولی ـ

**د امام شافعی رحمه الله مذهب** : امام شافعی رحمه الله فرمائی چې کوم
څیز هم نشه آور وی نو هغه شراب دی

**قوله** : **فلا يراد بنوبنيه في الوصية لابنائه**

**۳، دریمه تفریع** : که یو سړی د زید د ځوئی دپاره وصیت اوکړو
او حال دا دې چې د هغهٔ ابن هم دی او ابن الابن هم دی نو وصیت
کښې به صرف ابن داخلیږی نه چې ابن الابن

**قوله** : **و لا يراد اللمس باليد في قوله تعالى اولا مستم النساء
لان الحقيقة فيما سوى الاخير والمجاز فيه مراد فلم يبق
الاخر مراداً** ـ

**څلورمه تفریع** : قرآن کریم کښې دی ‹ اولامستم النساء › د لمس
حقیقی معنی ده لمس بالید یعنی لاس سره مس کول او مجازی
معنی یې جماع ده نو امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دلته دواړه
معنې مراد دی ځکه چې که لمس په لاس سره وی نو د حدیث په
وجه به د تیمم اجازت وی او که لمس په جماع سره وی نو د جنابت
په وجه سره به د تیمم اجازت وی ـ

**د احنافو مذهب** : مونږ وايو چې دلته مراد جماع يعني مجازی معنی ده لهٰذا حقيقی معنی به مراد نه اخستلې کيږی ځکه چې د دواړو جمع‌کيدل محال دی

خلاصه دا ده چې اولنی مثالونو کښې حقيقی معنی مراد اخستلې شوې ده او څلورم مثال کښې مجازی معنی مراد ده

**د احنافو په مذهب باندې د وارد شوې اعتراضاتو جوابات**

**قوله** : وفی الاستيمان علی الابناء والموالی تدخل الفروع لان ظاهر الاسم صار شبهة فی حقن الدم

**ورومبې اعتراض** : اعتراض کيږی چې کله حربی د خپل ابن او موالی د پاره امن طلب کړی نو په دې کښې ابن الابن او موالی الموالی ولې داخليږی؟ حالانکه چې کله ابن حقيقی مراد واخستلې شو نو مجازی معنی يعنی ابن الابن مراد اخستل نه وو پکار دغه شان په موالی کښې هم؟

**جواب** : جواب دا دې چې د ظاهری اسم په اعتبار سره حفاظت دم کښې شبه راغله ځکه چې د انسان قتل او د حدودو واقع کيدو کښې ډير زيات د احتياط ضرورت وی په دې وجه د حديث نه معلوميږی چې حدود د شبهاتو په بناء باندې ساقطيږی او دلته عرفاً نوسی هم ابن او موالی الموالی ته هم موالی وئيلې کيږی لهٰذا شبه قوی شوه او ډيره ممکن ده چې دې خلقو ته هم امن ورکړې شوې وی د امن نه پس نقض امن جائز نه دې ـ

**قوله** : بخلاف الاستيمان على الاباء والامهات حيث لا يدخل الاجداد والجدات لان ذا بطريق التبعية فيليق بالفروع دون الاصول

**دويم اعتراض** : اعتراض كيږي كه داسې وي نو بيا چې كله د پلارانو او ميانـدو دپاره امان طلب كړې شي نو په هغې كښې اجداد او جدات هم داخليدل پكار دي حالانكه داسې نه ده ؟

**جواب** : د لفظ مجاز ته شامليدل دا د تابعيت په طريقې سره دي لهذا فروع لره تابع جوړول خو جائز دي ليكن اصول لره تابع جوړول جائز نه دي نو ابن الابن خو فروع دي ليكن اجداد او جدات وغيره خو اصول دي.

**قوله** : وانما يقع على الملك والاجارة والدخول جافياً او متنعلاً فيما اذا حلف لا يضع قدمه فى دار فلان باعتبار عموم المجاز وهو الدخول ونسبة السكنى

**دريم اعتراض** : اعتراض كيږي چې كه چا قسم اوخوړ لااضع قدمي في دارفلان (زهٔ به د فلانى سرې په كور كښې قدم نږدم) حقيقتاً د قدم كيخودل خو دا دي چې بغير چپلو وي او مجازاً دا دي چې خپو كښې چپل وي حالانكه تاسو وايئ چې دواړو صورتونو كښې به حانث كيږي دغه شان دار فلان كښې خو حقيقت دا دې چې مكان د ملكيت وي او مجاز دا دې چې د اجارې او عاريت په طور وي حالانكه تاسو وايئ چې هرمكان كښې داخليدو سره به حانث كيږي نو حقيقت او مجاز لره جمع كول لازم شو ؟

**جواب** جواب دا دي چې دا د عموم مجاز په طريقې باندې دې يعنې داسې معنى مجازى مراد اخستلې شوې ده چې حقيقى معنى د هغې يو فرد وى مثلاً قدم كيخودل د دخول نه كنايه ده او دخول هر قسم دخول ته شامل دې خواه هغه حافياً وى يا متنعلاً وى البته كه څه خاص نيت وى نو د هغې به اعتبار كولې شى ليكن كه چا بغير د دخول نه قدم كيخودلو نو د هغې به اعتبار نه شى كولې ځكه چې دا حقيقت مهجوره دې او دارفلان دا د دار سكنى د چې په كوم كوركښې اوسيدل اختيار كړې شى، نه كنايه ده خواه هغه بطور ملک وى يا اجاره يا عاريت۔

**قوله** وانما يحنث اذا قدم ليلاً او نهاراً فى قوله عبده حر يوم يقدم فلان لان المراد باليوم الوقت وهو عام

**خلورم اعتراض** اعتراض كيږى چې كه چا قسم اوخوړه چې عبدى حريوم يقدم فلان نو د دې حقيقى معنى خو دا ده چې د يوم نه مراد صرف ورځ وى او مجازى معنى دا ده چې د شپې د پاره استعمال شى حالانكه تاسو حقيقت او مجاز جمع كړل او تاسو وايئ چې فلانى څه وخت راغې خواه د ورځې وى يا د شپې نو هرصورت كښې به غلام آزاديږى

**جواب** د يوم نه د عموم مجاز په طريقې سره صرف وخت مراد دې او دا ورځ او شپې دواړو ته شامل دې

بعضې خلق وائى چې د يوم لفظ د نهار او د مطلق وقت سنځ كښى مشترک دې او دلته د مطلق وخت معنى مراد ده او د

دي دپاره ضابطه بيان کړې شوې ده چې که دواړه فعل ممتد وی نو بيا به د يوم نه مراد نهار وی او که دواړه غيرممتد وی نو بيا ترې مراد وخت وی او که يو ممتد وی او دويم غيرممتد وی نو د فعل د عامل اعتبار به وی اود فعل مضاف اليه اعتبار به‌نه کيږی

**قوله** : وانما اريد النذر واليمين فيما اذا قال لله علی صوم رجب لانه نذر بصيغته يمين بموجبه کشراء القريب فانه تملک بصيغته وتحرير بموجبه

**پنځم اعتراض** : اعتراض کيږی چې که يو سړې اووائی (لله علی صوم رجب)او د دې نه نيت د نذر او يمين دواړو اوکړی يا صرف د يمين نيت اوکړی نوتاسووايې چې د دې نه نذر او يمين دواړه مراد وی حالانکه د دې حقيقی معنی نذر ده او مجازی معنی يمين ده۔

هم په دې وجه وائی چې د دې فوت کيدو سره به د نذر قضا لازم راشی او د يمين کفاره هم ياد دې وی چې دا اعتراض صرف د امام اعظم ابوحنيفه او د امام محمد رحمه الله په مذهب باندې وارديږی ځکه چې امام ابويوسف صاحب رحمه الله فرمائی چې اولنی صورت کښې به دا نذر وی او دويم صورت کښې به يمين شی ۔

**جواب** : جواب د دې دا دې چې دا د خپلې صيغې په اعتبار سره نذر دې او د موجب په اعتبار سره يمين دې ځکه چې مباح لره حرامول هم يمين دې لکه مباح لره واجب کول څنګه چې سورة تحريم کښې دی نو د متکلم دپاره د رجب روژه پريخودل حلال وو ليکن هغهٔ په خپل ځان باندې د هغې پريخودل حرام کړل نو دا به يمين وی ۔

**دویم جواب** بعضي خلق وائی چې لله دا د یمین صیغه ده او (علی صوم رجب) دا د نذر صیغه ده بهرحال دا به داسې وی لکه خپل نژدې رشته دار لره اخستل ځکه چې دا د صیغې په اعتبار سره خو تملیک یعنی مالک جوړیدل دی او د موجب په اعتبار سره اعتاق دې یعنی هغه غلام به آزاد شی ځکه چې حضور اقدس ﷺ فرمائی چې څوک د خپل قریبی رشته دار مالک جوړ شی نو هغه آزاد دې ـ من ملك ذارحم محرم منه عتق علیه (الحدیث)

**قوله** و طریق الاستعارة الاتصال بین الشیئین صورة او معنی کما فی تسمیة الشجاع اسد او المطر سماء وفی الشرعیات الاتصال من حیث السببیة والتعلیل نظیراً لصورت والاتصال فی معنی المشروع کیف شرع نظیر المعنی

**د مجاز تعلق**

د دې ځایې نه مصنف رحمه الله د مجاز تعلقات بیانوی فرمائی چې د استعارې سبب دا دې چې د دواؤ څیزونو درمیان کښې صورتاً او معناً اتصال وی د اهل اصول فقه په عرف کښې مجاز او استعاره دواړه یو څیز دې او د اهل بیان په نزد استعاره د مجاز یو قسم دې که مجاز کښې پنځویشت تعلقاتو کښې یو تعلق سره مشابهت وی نو دې ته استعاره وئیلې شی او که هیڅ تعلق نه وی نو دې ته مجاز مرسل وئیلې شی

**نکته** مصنف رحمه الله مجاز مرسل په صورتاً سره تعبیر کړې دې او استعاره یې معنا سره تعبیر کړې دې

**د اتصال صوری مراد** : د اتصال صوری مطلب دا دې چې د معنی مجازي صورت متصل وی د معنی حقیقي د صورت سره مثلاً دا د هغې دپاره سبب وی یا علت وی یا شرط وی وغیره مثلاً باران ته آسمان وئیلې کیږی ځکه چې د باران صورت د آسمان د صورت سره متصل دې یعنی وریځو سره او عرف کښې وئیلې کیږی **کل ما علاك وافلك فهو سماء** او باران ښکاره خبره ده چې هم د وریځو نه وریږی نو د دواړو مینځ کښې به دې ته اتصال وئیلې شی

**د اتصال معنوی مراد** : د اتصال معنوی مطلب دا دې چې دواړه په یو خاص معنی کښې شریک وی لکه شجاع ته اسد وئیلې کیږی ځکه چې بهادر سړې او هغه ځناور یو مشهوره معنی کښې شریک دی او هغه بهادری ده بیا ځنګه چې دا دواړه قسمونه حسیات او محاورات کښې موندې کیږیٔ دغه شان په احکام شرعیه کښې هم موندې کیږی او په شرعیاتو کښې مسببیت او د تعلیل په اعتبار سره اتصال ، د اتصال صوری مثال دې ځکه چې سبب مسبب سره او معلول د علت سره متصل وی لکه ملک شراء سره متصل وی او ملک متعه د ملک رقبه سره متصل وی او معنی شرع کښې اتصال یعنی د کومې معنې په وجه سره چې حکم مشروع شو دا د اتصال معنوی مثال دې مثلاً د کفاله او حواله درمیان کښې اتصال په دې معنی کښې دې چې دواړه د قرض د توثیق دپاره وی او دغه شان د هبې او صدقې په مینځ کښې اتصال په دې معنی کښې دې چې دواړو کښې تملیک بغیر د عوض نه وی۔

**قوله** والاول علی نوعین احدهما اتصال الحکم بالعلة کاتصال الملک بالشراء وانه یوجب الاستعارة عن الطرفین حتی اذا قال ان اشتریت عبداً فهو حر ونوی به الملک او قال ان ملکت عبداً فهو حر ونوی به الشراء یصدق فیهما دیانة

**تقسیم** : وړومبي قسم یعنی هغه اتصال چي د سببیت او تعلیل په اعتبار سره وی د هغي دوه قسمونه دی

(۱) د اولنی قسم تعریف دا دي چي د معلول اتصال د علت سره وی لکه د ملک شراء سره اتصال په دې کښي د طرفینو نه استعاره جائز ده یعنی علت ذکر کولو سره حکم یعنی معلول او حکم ذکر کولو سره علت مراد اخستلي کیدي شی ځکه چي حکم د علت محتاج دي د ثبوت اعتبار په وجه او علت د حکم محتاج دي د مشروع کیدو په اعتبار سره او استعاره کښي اصل دا دي چي محتاج الیه ذکر کړي شی او محتاج تري مراد واخستلي شی

د دې د وضاحت دپاره مثال دا دي چي که یو سړی اووي ان اشتریت عبداًفهوحراو دي شراء سره یي نیت د ملک اوکړو نو دا به جائز وی لیکن دې صورت کښي به دیانتاً خو تصدیق کولي شی لیکن قضاء به یي تصدیق نه شی کولي ځکه چي د دغه شان یي په حق کښي تخفیف کیږی ځکه چي که نیم یي واخستۀ نو د شراء په صورت کښي به دا نیم آزاد شی لیکن د ملک په صورت کښي به نۀ ازادیږی ځکه چي په ملک کښي د ټول جمع کیدل شرط دی البته شراء کښي دا شرط نشته

او که وي وئیل چې ان ملکت عبداًفهوحراو دې ملک سره ئې نیت د شراء اوکړو نو دیانتاً او قضاء به یې تصدیق کولې شی

**اعتراض** : اعتراض دا کیږی چې دې صورت کښې خو هم تخفیف دې ځکه چې ملکیت د شراء په ذریعې سره کیدې شی دغه شان هبه، وصیت اووراثت نه هم کیدې شی. چې هرکله شراء یو سبب معین سره خاص ده لیکن دا اعتراض په مصنف رحمہ اللہ باندې نه کیږی ځکه چې مصنف رحمۃ اللہ صرف دیانت ذکر کړې دې قضاء یې نه ده ذکر کړې

**قوله** : **و الثانی اتصال المسبب بالسبب کاتصال زوال ملک المتعة بزوال ملک الرقبة فیصح استعارة السبب للحکم دون عکسه**۔

(۲) د دویم قسم تعریف دا دې چې د مسبب اتصال سبب سره وی او د سبب نه مراد دا دې چې هغه د حکم په دواړ طرفونو کښې یو طرف وی او د هغې طرفته نه خو د وجوب اضافت کیږی او نه د وجود حکم او نه په کښې د علت معنی سمجهه کښې راځی لکه د زوال ملک متعه اتصال د زوال ملک رقبه سره ځکه چې که چا خپلې وینځې ته اووې ( انت حرة)نو د هغې نه به ملک رقبه زائل شی او په دې زوال سره به ترینه ملک متعه هم زائل شی

نو دلته به استعاره د یو طرفنه وی یعنی سبب وئیلو سره حکم مراد اخستل جائز دی لیکن حکم وئیلو سره سبب مراد اخستل جائز نه دی ګویا انت حرة سره انت طالق مراد اخستل جائز دی لیکن انت طالق وئیلو سره انت حرة مراد نه شی اخستلې ځکه چې مسبب دخپل ثبوت دپاره دسبب خومحتاج دې لیکن سبب د

مشروع كيدو دپاره د مسبب محتاج نه دي ځکه چې اعتاق صرف د زوال د ملک رقبه دپاره مشروع دي او زوال د ملک متعه اتفاقاً حصليږي لهذا دا جائز نه دی چې مسبب ذکر کولو سره سبب مراد واخستلې شی ليکن هغه مسبب سبب سره خاص وی نو بيا دغه شان هم کيدې شی لکه څنګه چې د الله تعالی فرمان دې انی ارانی اعصر خمراً چې دلته د خمر ذکر سره انګور مراد دی ځکه چې نچوړيدل د شرابو وصف نه دې بلکه د انګورو وصف دې ليکن خمر د انګورو سره د خاص کيدو په وجه مسبب وئيلو سره سبب مراد واخستې شو۔

امام شافعي رحمه الله فرمائی چې طلاق وئيلو سره اعتاق او اعتاق وئيلو سره طلاق مراد اخستلې کيږی ځکه چې په دې کښې هريو بناء په سرايت او لزوم ده لهذا د دې اشتراک په بناء به دې کښې اتصال معنوی وی مونږ جواب ورکوو چې طلاق د يو قيد اوچتولو دپاره دې اعتاق د قوت ثابتولو دپاره دې لهذا دواړو کښې هيڅ مشابهت نشته۔

ليکن دا اعتراض کيدې شی چې اعتاق خو د هغې ملک متعه د زائل کولو دپاره دې چې د ملک يمين په طريقه باندې حاصل وی نه چې د نکاح په وجه سره حاصل شوې وی لهذا هيڅ قسم اتصال او اشتراک نشته جواب دا دې چې فی الجمله سبب کيدل کافی دی او دلته هم دغه شان دی۔

**قوله** واذا كانت الحقيقة متعذرة او مهجورة صير الى المجاز كما اذا حلف لا ياكل هذه النخلة او لا يضع قدمه فى دار فلان

**د ترک حقیقت او مجاز موقعې**

د مجاز علاقات بیانولو نه پس اوس مصنف ﷺ دا بیان فرمائي چې کوم ځایې کښې به حقیقت او کوم ځایې کښې به مجاز پریخودې کیږي۔

نو فرمائي چې که حقیقت متعذر وي یعني د مشقت نه بغیر ورته رسیدل ممکن نه وي یا حقیقت مهجوره وي یعني هغې ته رسیدل ممکن وي لیکن هغه پریخودلې شوې وي نو حقیقت به پریخودلې شي او مجاز طرفته به رجوع کولې شي۔

**بیان امثله**:

(۱) د حقیقت متعذره مثال دا دې چې که چا قسم اوخوړ چې لااکل من هذه النخلة چونکه بغیر د کهجورې نه اونه خوړل مشکل دی لهذا مجازی معنی به مراد وي باقي د دې میوې خوړلو سره به حانث کیږي او که څوک ډیر زیات تکلف اوکړي او د کهجورې اونه اوخوري نو هغه به نه حانث کیږي

**اعتراض**: اعتراض کیږي چې د کوم څیز قسم خوړلې شوې دې نو هغه عدم نخله دې او دا متعذر نه دې متعذر خو د هغې خوړل دی

**جواب**: جواب دا دې چې کله یمین په نفی باندې داخل شي نو هغه د منع دپاره وي او چې کوم څیز ماکول نه وي نو هغه به د یمین په وجه سره ممنوع هم نه وي بلکه د یمین نه مخکښې به منع وي

(۲) د حقیقت مهجوره مثال دا دې چې مثلاً چا قسم اوخوړ لااضع قدمی فی دارفلان نو د دې نه مراد مجاز دې یعنی مطلقاً دخول صرف د قدم کیخودل مراد نه دی۔

**قوله** المهجور شرعاً كالمهجور عادة حتى ينصرف التوكيل بالخصومة الى الجواب مطلقاً ـ

**تفريع** او مهجور شرعاً د مهجور عادتاً په شان دي مثلاً که يو سړی بل کس لره وکيل بالخصومت جوړ کړو نو د خصومت حقيقت خو انکار دي خواه په حق وی يا په باطل حالانکه دا خو شرعاً حرام دی لهٰذا دي معنی مجازی به مرادوی يعنی خصم ته جواب ورکول

**قوله** واذا حلف لا يكلم هذا الصبی لم يقيد بزمان صباه

دغه شان که چا قسم اوکړو چې لااكلم هذاالصبی نو دا به د بچپن زماني سره خاص نه وی ځکه چې د ماشوم سره قطع رحمی کول شرعاً مهجور دی ځکه چې د رسول الله ﷺ فرمان دي من لم يرحم صغيرنا ولم يوقر كبيرنا فليس منا لهٰذا دلته به مجازی معنی مراد وی يعنی لااكلم هذاالذات لهٰذا که د بالغ کيدو نه پس يې هم خبري اوکړي نو دي به حانث کيږی ـ

**اعتراض** اعتراض کيږی چې تاسو د دې نه ذات مراد واخستۀ نو دغه شان درې ګناهونه مو جمع کړل ـ

(۱) په ماشوم باندې شفقت نه کول (۲) د مشر عزت نه کول (۳) مسلمان سره د دريو ورځو نه زياتې خبرې پريخودل

**جــواب** جواب دا دې چې دلته د قصد اعتبار دې او دا درې ګناهونه التزاماً لازميږی نه چې قصداً ليکن که چا (لااكلم صبياً) (نکره) اووئې نو دا قسم به د بچپن سره مقيد او خاص وی ـ

**قوله** : واذا كانت الحقيقة مستعملة والمجاز متعارفاً فهى اولى عند ابى حنيفة رحمه الله خلافاً لهما كما اذا لا ياكل من هذه الحنطة او لا يشرب من هذا الفرات ۔

**چې کله حقيقت او مجاز متعارف وي** :

او که حقيقت مستعمل وی ليکن مجاز متعارف وی نو د امام صاحب په نزد به حقيقت اولی وی او د صاحبينو په نزد به مجاز اولی وی لکه (۱) که چا قسم اوکړو چې لااكل من هذه الحنطة، نو د امام صاحب په نزد به د دې نه صرف غنم مراد وی ځکه چې جوشولو او وريتولو سره خوړلې کيږی ليکن د صاحبينو په نزد به د عموم مجاز په طور د دې نه د غنمو باطن مراد وی لهذا روټی خوړلو سره به هم حانث کيږی

(۲) دغه شان که چا قسم اوکړو چې لااشرب من هذاالفرات نو د امام صاحب په نزد به خلهٔ لګولو سره حانث کيږی او په لپه يا لوخی نه ځکلو سره به نهٔ حانث کيږی

**قوله** : وهذا بناء على اصل اخر وهو ان الخليفة فى التكلم عنده وعندهما فى الحكم ويظهر الخلاف فى قوله لعبده وهو اكبر سنامنه هذا بنى ۔

**مبناء د اختلاف** :

دا اختلاف په يو بل اختلاف باندې مبنی دې هغه دا چې د امام صاحب په نزد مجاز د حقيقت خليفه په تکلم کښې دې او د صاحبينو په نزد مجاز د حقيقت خليفه خو دې ليکن حکم کښې

مثلاً هذا ابنی چې کله خپل غلام ته اووئيلې شی مراد ترېنه حريت يعنی آزادی وی نو دا به خليفه وی د هذا ابنی چې د دې نه مراد بنوة يعنی ځوې والې دې د امام صاحب په نزد د مجازصحيح کيدو دپاره ضروری ده چې حقيقت د اصل عربی ترکيب په اعتبار سره صحيح وی نو که معنی حقيقی جوړه نه شوه نو معنی مجازی به مراد اخستلې کيږی او د صاحبينو په نزد چونکه په حکم کښې د حقيقت خليفه دې لهذا که حکم صحيح وی ليکن د څه عارض په وجه پرې بندې عمل اونکړې شی نو د مجاز طرفته به رجوع کولې شی۔

## د امام صاحب او د صاحبينو رحمهم الله د دليلونو خلاصه

امام صاحب رحمه الله فرمائی چې هر کله مجاز په تکلم کښې د حقيقت خليفه دې نو تکلم به بالحقيقت اولی وی ځکه چې لفظ د معنی حقيقی دپاره وضع کړې شوې دې او د صاحبينو په نزد چونکه مجاز په حکم کښې د حقيقت خليفه دې لهذا حکم ته ترجيح حاصل ده يا د غالب استعمال په وجه يا د دې نه چې دا عام دې حقيقت ته هم شامل دې او مجاز ته هم شامل دې۔

**ثمره د اختلاف:** د دې اختلاف نتيجه به دې صورت کښې ظاهره شی چې کله يو سړې د خپل خان نه مشر غلام ته اووائی هذا ابنی نو د امام صاحب په نزد چونکه دا عربی ترکيب په اعتبار سره هم صحيح دې او د دې مفهوم هم صحيح دې ليکن د خارجی قرائنو په اعتبار سره حقيقی معنی اخستل مشکل دی لهذا مجازی معنی به مراد کړې شی چې د دغه کلام لغو نه شی ليکن دا خبره دې واضحه وی چې د امام صاحب په نزد د مجازی معنې مراد اخستلو دپاره

صرف د عربي ترکيب په اعتبار سره صحيح کيدل کافي نه دي بلکه دا هم ضروري ده چې د دې مفهوم لغتاً هم صحيح وي او عقلاً هم صحيح وي لهذا که چا داسې اووې چې عبدی الاکبرمنی حرنو دا کلام به لغو شي او د صاحبينو په نزد چونکه د مجاز د خليفه کيدو دپاره د حقيقت د حکم صحيح کيدل ضروري دي او دلته خو حکم صحيح نه دې په دې وجه مشر کس د کشر ځوې نه شي جوړيدې۔

**اعتراض** : اعتراض دا کيږي چې زيد اسد هم لغو کيدل پکار دي ځکه چې دلته هم حقيقي معنی مراد نه شي اخستلې کيدې۔

**جواب** : دا مجاز نه دې بلکه حرف تشبيه حذف کولو سره حقيقت دې يعنی زيد کالاسد۔

**قوله** : **وقد تتعذر الحقيقة والمجاز معاً اذا كان الحكم ممتنعاً كما في قوله لامراته هذه بنتي وهي معروفة النسب وتولد لمثله او اكبر سنا منه حتى لا تقع الحرمة بذلك ابداً**

او کله حقيقت او مجاز دواړه متعذر شي او د دواړو حکم ممکن العمل پاتې نه شي په دې صورت کښې کلام لغو کيږي مثلاً چا خپلې ښځې ته اووې چې هذه بنتي حالانکه نسب يې مشهور دې ليکن عمر يې دومره کم دې چې که دې سړی د بالغ کيدو نه فوراً بعد نکاح کړې وه نو هم يې دغه شان جينې پيدا کيدې شوه يا د دې ښځه په عمر کښې د ده نه لويه ده نو دلته هم حقيقي معنی متعذر ده ځکه چې په دې دواړو صورتونو کښې د دې ښځې د ده لور کيدل مشکل دي او مجازي معنی هم متعذر ده يعنی انت طالق

ځکه چې طلاق اول د نکاح صحیح کیدو تقاضه کوی او لور کیدل تقاضه کوی چې نکاح بالکل شوي نه ده ځکه چې د شریعت په رو سره لوز سره نکاح کول صحیح او جائز نه دی چې هرکله نکاح نه ده شوي نو طلاق هم صحیح نه دي البته که دا خاوند په هذه بنتی وئیلو باندې اصرار اوکړی نو قاضی صاحب به د دې دواړو مینځ کښې جدائي راولي ځکه چې د اصرار کولو په وجه سره د ښځې د حق جرح باره کښې ظالم شو لهذا جدا والي ضروري دي څنګه چې د مجبوب و عنین باره کښې دی

او که دواړه شرطونه اونه موندې شی یعنی هغه مجهولة النسب وی او عمر کښې د ده کشره هم وی نو نسب به ثابت شی او حرمت به واقع شی بعضې خلق وائی چې که عمر کښې کشره وی او مجهولة النسب وی نو هم دا حکم دې ځکه چې نسب هغه وخت چرته ثابت کیدې نه شی چې ترڅو مقرله تصدیق اونکړی او د هغه د تصدیق نه مخکښې رجوع کول هم صحیح دی

**قوله** والحقيقة تترك بدلالة العادة كالنذر بالصلوة والحج وبدلالة اللفظ فى نفسه كما اذا حلف لا ياكل لحماً فلا يتتناول لحم السمك وقوله كل مملوك لى حر لا يتناول المكاتب وبدلالة سياق النظم كقوله طلق امراتى ان كنت رجلاً حتى لا يكون توكيلا وبدلالة معنى يرجع الى المتكلم كما فى يمين الفور وبدلالة محل الكلام كقوله ﷺ انما الاعمال بالنيات قوله ﷺ رفع عن امتى الخطاء والنسيان

**د عمل بالمجاز قرائن**

د دې ځايې نه مصنف رحمه الله هغه قرائن بيانوی چې د هغې په وجه سره په مجاز باندې عمل کولې شی او حقيقت پريخودې شی.

**اولنی قرينه**: وړومبی قرينه چې د هغې په وجه حقيقت پريخودلې شی هغه عرف او عادت دې لکه د صلوة او حج نذر نعت کښې د صلوة معنی دعاء او د حج معنی قصد او اراده ده ليکن بيا دا ارکان معلوم طرفته منتقل کړې شو او وړومبی معنی پريخودې شوه لهذا که چا د حج او د صلوة نذر اومنلو نو د دې نه به دعاء او قصد مراد نه وی بلکه ارکان معلوم به ترې مراد وی

**دويمه قرينه**: دويمه قرينه چې د هغې په وجه حقيقت پريخودلې شی فی نفسه د دلالت کولو په وجه يعنی لفظ د خپل ماخذ اشتقاق او حروف د معنې په اعتبار سره په دې خبره باندې دلالت اوکړی چې دلته د لفظ حقيقی معنی مراد نه ده مثلاً لفظ د داسې معنی مشتقې د پاره وضع کړې شوې وی چې په هغې کښې قوت دې نو د دې نه به هغه څيز خارج شی چې هغې کښې ضعف او کمزورتيا موندې کيږی لکه که چا قسم اوکړو چې والله لااکل لحما نو دا غوښه به د مهی غوښې ته شامل نه وی ځکه چې لحم د التحام نه مشتق دې او هغه شدت او قوت ته وئيلې کيږی او شدت بغير د وينې نه شی کيدې او مهی کښې وينه نه وی په دې وجه عرف کښې د مهی بائع ته بائع اللحم يعنی د غوښې بائع نه وئيلې کيږی.

**د امام مالک صاحب رحمه الله مذهب**:

ليکن امام مالک رحمه الله فرمائی چې دې صورت کښې به هم

حانث شی ځکه چې په قرآن کریم د مچې په غوښه باندې هم د لحم اطلاق شوی دی

او دغه شان که چا قسم اوکړو چې **کل مملوك لی فهو حر** نو دا به مکاتب ته شامل نه وی ځکه چې په دې کښې د مملوکیت معنی د ضعف سره مونده کیږی ځکه چې هغه من کل الوجوه مملوک نه دی بلکه من بعض الوجوه مملوک دی

۳ **دریمه قرینه** دریمه قرینه سیاق دی یعنی سیاق الکلام به په دې خبره باندې دلالت کوی چې دلته حقیقت مراد نه دی بلکه مجاز مراد دی لکه یو سړی چا ته اووائی چې **طلق امراتی ان کنت رجلا** د دې کلام حقیقت خو وکیل بالطلاق جوړیدل دی لیکن **ان کنت رجلاً** په دې خبره باندې قرینه ده چې دلته حقیقت مراد نه دی بلکه مخاطب ته د عجز کول او ویرول مراد دی

دغه شان قرآن پاک کښې دی **فمن شاء فلیؤمن ومن شاء فلیکفر** دلته د الله تعالی له طرفه د کفر اجازت نه دی ورکړې شوی بلکه دا د تحدید او تعجیز دپاره دی ځکه چې وړاندې قرینه موجود ده د هغه د جهنم د اور وعید دی

۴ **څلورمه قرینه** څلورمه قرینه څه داسې معنی ده چې د هغې تعلق د متکلم سره وی چې هغه دلالت کوی چې دلته حقیقت مراد نه دی لکه یمین فور یعنی هغه قسم چې انتهائی د غصې په حالت کښې اوچت کړې شی نو که خاوند د غصې په حالت کښې ښځې ته اووئی **ان خرجت فانت طالق** نو د دې کلام حقیقت خو دا وو چې کله هم ښځه بهر اوځی نو طلاق دې واقع شی لیکن د متکلم حالت

په دې خبره باندې دلالت کوي چې دلته حقیقت مراد نه دې لهذا که ښځه د خاوند د غصې ختمیدو نه پس بهر اوځي نو طلاق به نه واقع کیږي -

(۵) **پنځمه قرینه**: پنځمه قرینه د محل کلام دلالت دې یعنې کوم محل کښې چې کلام واقع دې هغه په دې خبره باندې دلالت کوي چې دلت حقیقت نه بلکه مجاز مراد دې لکه د حضور اقدس ﷺ فرمان مقدس (انما الاعمال بالنیات) د دې حقیقي معنی خو دا ده چې هیڅ یو عمل دې هم د نیت نه بغیر صحیح نه وي حالانکه ډیر داسې عملونه دي چې بغیر د نیت نه کیږي لهذا دلته به مجازي معنی مراد اخستلې شي یعنې (ثواب الاعمال بالنیات) یا (حکم الاعمال بالنیات) یعنې د اعمالو ثواب به آخرت کښې په نیتونو سره ملاویږي -

## حکم په دوه قسمه وي

(۱) **حکم دنیوي** (۲) **حکم اخروي**

اوس دلته حکم اخروي یعنې ثواب خو بالاجماع مراد دې لهذا حکم دنیوي به مراد نه اخستلې کیږي زمونږ په نزد خو ځکه چې دې صورت کښې به عموم مشترک لازم راشي او د امام شافعي رحمه الله په نزد ځکه چې عموم مجاز به لازم راشي او دا د هغوي په نزد جائز نه دې حاصل د کلام هم دا دې چې جواز د اعمالو په نیت باندې موقوف نه دې په دې وجه د احنافو په نزد د اودس دپاره نیت فرض نه دې البته د امام شافعي رحمه الله په نزد اودس کښې نیت کول

فرض دی لیکن چې کوم باقی عبادات مقصوده دی هغه به د نیت نه بغیر نه صحیح کیږی

د حضور ﷺ فرمان رفع عن امتی الخطاء والنسیان کښې هم حقیقت پرېخودلې شوې دې د محل کلام د دلالت په وجه باندې ځکه چې د دې نه ظاهر طور سره خو دا معلومیږی چې د دې امت نه خطا او نسیان نهٔ کیږی حالانکه دا خبره غلطه ده په دې وجه به دلته مجازی معنی مراد وی یعنی د خطاء او نسیان په وجه سره به آخرت کښې ګناه نه وی اګرچه د دنیا حکم به بهرصورت مرتب کیږی لهذا که د روژې په حالت کښې یې خطاءً څه خوراک څکاک اوکړو نو روژه به فاسد شی او د مونځ په حالت کښې یې خطاءً کلام اوکړو نو مونځ به یې فاسد شی

**قوله** والتحريم المضاف الى الاعيان كالمحارم والخمر حقيقة عندنا خلافاً للبعض

د بعضې خلقو خیال دې چې کله د تحریم نسبت اعیان ته اوشی لکه د الله تعالی په دې قول کښې حرمت عليكم امهاتكم ..........الخ او په دې حدیث مبارک کښې حرمت الخمر لعينها نو دلته به مجاز مراد وی یعنی حرمت عليكم نکاح امهاتكم او حرمت شرب الخمر لعينها ځکه چې خمر یعنی شراب خو عین دې هغه حرمت نه قبلوی ځکه چې حلت او حرمت خو د فعل اوصاف دې

مونږ وایو چې حرمت په خپل حقیقت باندې دی ځکه چې حرمت په دوه قسمه دې .

۱. هغه حرمت دې چې د فعل طرفته متوجه وی نو فعل به

ممنوع عنه جوړ شی او بنده به ممنوع (۲) هغه حرمت چې د محل طرفته متوجه وی نو فعل به ممنوع جوړ شی او بنده به ممنوع عنه او منع کولو کښې به په دې کښې د دواړو وجوهاتو نه زياته مبالغه موندې شی ځکه چه دا خو په منزله د نفي او ګرځيده او نفی کښې د نهی نه زياته مبالغه موندې شی.

## د حروف معانی بحث

**قوله** : ويتصل بما ذكرنا حروف المعانی فالواؤ لمطلق العطف من غير تعرض لمقارنة ولا ترتيب •

حقيقت او مجاز سره حروف معانی هم متصل وی ځکه چې حروف معانی که په خپل معنی موضوع کښې استعمال شی نو حقيقت به وی او که غيرمعنی موضوع له کښې استعمال شی نو مجاز به وی په دې کښې يې واؤ مقدم کړو

**الواؤ** : واؤ د مطلق عطف دپاره راځی يعنی د مطلق شرکت دپاره نو که د مفرد په مفرد باندې عطف وی نو شرکت به صرف محکوم عليه يا صرف محکوم به کښې وی او که د جملې عطف په جمله باندې وی نو شرکت به ثبوت او وجود کښې وی

• ليکن بعضې خلق وائی چې واؤ په مقارنت او اجتماع باندې دلالت کوی

او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې واؤ په ترتيب باندې دلالت کوی د هغوی دليل أن الصفا والمروة او د حضور اکرم ﷺ ارشاد

مبارک نحن نبدا بما بدالله او دویم ځایې کښې دی وارکعوا واسجدوا او بنکاره خبره ده چې صفا په مروه باندې او رکوع په سجدو باندې مقدم کول ضروري دی

د وړومبی دلیل جواب دا کیدې شي چې مونږ ترتیب وحی متلو نه پیژندلي دي او د دې ایت حواله ځکه ورکړې شوې ده چې تقدیم فی الذکر د اهتمام نه خالی نه دی

او د دویم دلیل جواب دا دې چې قرآن پاک کښې دویم ځایې کښې راځی واسجدی وارکعی حالانکه سجده خو د رکوع نه مقدم کیدې نه شی

**قوله** وفی قوله لغیر المؤطوءة ان دخلت الدار فانت طالق وطالق وطالق انما تطلق واحدة عند ابی حنیفة رحمه الله لان موجب هذا الکلام الافتراق فلا یتغیر بالواؤ وقالا موجبه الاجتماع فلا یتغیر بالواؤ ۔

**اعتراض** : اعتراض کیږی چې که یو طالق سړي خپلي غیر مدخوله بی بی ته اووائی چې ان دخلت الدار فانت طالق وطالق نو د امام صاحب په نزد به یو او د صاحبینو په نزد به درې طلاقه واقع شی نو معلومه شوه چې د امام صاحب په نزد واؤ د ترتیب دپاره دي او د صاحبینو په نزد واؤ د مقارنت دپاره دي

**جواب** دا ترتیب او مقارنت د واؤ په ذریعې سره ذهن ته نهٔ راځی بلکه د کلام په مقتضی سره ذهن ته راځی ځکه چې د امام صاحب په نزد د دې کلام مقتضی افتراق یعنی جدائی ده ځکه چې که

داسې نه وي نو داسې به یې وئیل ان دخلت الدار فانت طالق ثلاثاً چې هرکله یې ثلاث اونهٔ وئیلو نو معلومه شوه چې د دې مقتضا او مقصد جدائی او افتراق دې نو په دې کښې به هر یو طلاق جدا جدا واقع کیږي لهذا چې هرکله وړومبې طلاق واقع شو نو اوس د دویم او دریم دپاره محل پاتې نه شو لهذا هغه دواړه لغو شو ـ

او د صاحبینو په نزد د کلام مقتضی افتراق نه دې بلکه اجتماع ده ځکه چې که داسې نه وي نو دري واړه طلاقه به یې یو شرط سره نه معلق کول لیکن چې هرکله یې معلق کړل نو درې واړه به یو ځائې واقع کیږي

**نکته** : دا اختلاف هغه وخت دې چې کله شرط مقدم کړي او که شرط یې مؤخر کړو او داسې یې اووې انت طالق وطالق وطالق ان دخلت الدار نو بیا به بالاتفاق دري طلاقه واقع شي ځکه چې د کلام په آخر کښې داسې څیز دې چې اول حصه به بدله کړي او هغه معلق کول دي

**قوله** : واذا قال لغير المؤطوئة انت طالق وطالق وطالق انما تبين بواحدة لان الاول وقع قبل التكلم بالثاني والثالث فسقطت ولايته لفوت محل التصرف

**اعتراض**. اعتراض کیږي چې کله یو سړي خپلې غیرمدخوله بي بي ته بغیر د شرط نه دري طلاقه ورکړي یعنی داسې اووائی انت طالق وطالق وطالق نو زمونږ د دریو واړو علماؤ په نزد صرف یو طلاق واقع کیږي د دې نه هم معلومه شوه چې واؤ د ترتیب دپاره وی

**جواب**: چې کله یې په ورومبی طلاق باندې تکلم اوکړو نو د خاوند اختیار ختم شو ځکه چې اوس د دویم او دریم دپاره محل پاتې نه شو په دې وجه یو طلاق واقع شو او ښځه بائنه شوه هم دا وجه ده چې که هغه بغیر د واؤ نه انت طالق طالق طالق وئیلې وې نو هم به په یو طلاق سره ښځه بائنه کیده

**قوله**: واذا زوج امتين من رجل بغير اذن مولاهما وبغير اذن الزوج ثم قال المولى هذه حرة وهذه متصلاً انما يبطل نكاح الثانية لان عتق الاولى يبطل محلية الوقيف فى حق الثانية فبطل الثانى قبل التكلم بعتقها

**اعتراض**: اعتراض دا کیږي چې که یو فضولي د چا د دواؤ وینځو نکاح یو بل سړي سره د مولی او د خاوند د اجازت نه بغیر اوکړه بیا مولی اووې چې **هذه حرة وهذه** نو بالاتفاق به دویمه نکاح باطل شي د دې نه معلومه شوه چې واؤ د ترتیب دپاره دې۔

**جواب**: په دې مثال کښې هم واؤ د ترتیب دپاره نه دې بلکه دکلام نه راغلې دې ځکه چې د دواړو نکاح د مولی او د خاوند په اجازت باندې موقوف وه چې هرکله مولی اولنۍ آزاده کړه نو دویمه نکاح موقوف شوه نو لازم راغله د وینځې نکاح په آزادي باندې موقوف کیدل او دا جائز نه دی لیکن مولی دواړه په یو لفظ باندې آزادې کړې نو د چا نکاح به هم نه باطلیږی ځکه چې د آزادۍ او وینځې درمیان کښې جمع کیدل لازم نه شو او که مولی دواړه په کلام مفصول سره آزاد کړل بیا خاوند د دواړو یا د یو نکاح نافذ کړه نو د

اولنی نکاح به اوشی او دویمه به باطله شی۔

**قوله** : واذا زوج رجلاً اختین فی عقدین بغیر اذن الزوج نبلغه الخبر فقال اجزت نكاح هذه وهذه بطلا كما اذا اجازهما معا وان اجازهما متفرقاً بطال النكاح الثانية لان صدر الكلام يتوقف علی اخره اذا كان فی اخره ما يغير اوله كالشرط والاستثناء ۔

**اعتراض** : په دې مقام باندې يو بل اعتراض کيږی چې که يو سړی د دواؤ خويندو نكاح په دواؤ عقدونو كښې بغير دخاوند د اجازت نه اوكړه بياچې كله خاوند ته خبر اوشو نو هغه اووې چې اجزت نكاح هذه‌هذه‌نو په دې كښې به دواړه نكاحونه بآطل شی د دې نه معلومه شوه چې واؤ په مقارنت باندې دلالت كوی ؟

**جواب** : مصنف رحمه الله د دې جواب دا ورکړو چې دواړو سره د نکاح باطل کیدل د واؤ د ترتیب په وجه سره نه دی بلکه په دې وجه دی چې هرکله د کلام په آخر کښې هم داسې یو څیز وی چې اول کلام لره بدلوونکې وی نو اول کلام به په آخر کلام باندې موقوف وی دغه شان دلته دويمې خور سره نكاح كول اولنی نكاح لره باطلوی ځکه چې دواړو لره جمع کول لازم راځی او دا حرام دی لهذا اول کلام به په آخر کلام باندې موقوف وی او دغه شان به دواړو کښې مقارنت ثابت شی په زمانه کښې

**قوله** : وقد تكون الواوُ للحال كقوله لعبده اد الی الفا وانت حر حتی لا يعتق الا بالاداء ۔

واؤ کله د حال دپاره وی مجازاً لکه یو کس خپل غلام ته
اووائی ادالی الفاً وانت حر دلته واؤ د حال دپاره دې دویم امکان دا
وو چې واؤ عاطفه وی لیکن دا واؤ عاطفه نه شی کیدې ځکه چې
په دې صورت کښې د خبر په انشاء باندې عطف کیدل لازم راځی
او د خبر عطف په انشاء باندې صحیح نه دې لهذا هغه غلام به د
زرو درهمو ادا کولو نه پس نه ازادیږی

**اعتراض** اعتراض دا کیږی چې حال ( وانت حر) دې لهذا دلته دا
کیدل پکار دی چې ادا په عتق باندې موقوف وی نه چې عتق په ادا
باندې موقوف وی .

**جواب** دلته قلب شوې دې اصل کښې دغه شان دې کن حرا وانت اد
الالف یا جواب دا دې چې جمله حالیه د جواب امر قائم مقام ده دغه
شان ونیلې شوې دی ادالی الفاً تصر حراً

**قوله** وقد تکون لعطف الجملة فلا تجب به المشارکة فی
الخبر کقوله هذه طالق ثلاثا وهذه طالق فتطلق الثانیة واحدة
فقط وکذا فی قولها طلقنی ولک الف درهم حتی اذا طلقها لا
یجب شئ للزوج وقالا انها للحال فیصیر شرطاً وبدلاً فیجب الالف
کله واؤ د عطف جمله دپاره هم وی نو هغه وخت مشارکت
فی الجزء ضروری نه وی مثلا که چا اووې هذه طالق ثلاثاً وهذه
طالق نو دویمې ښځې ته به صرف یو طلاق واقع شی دغه شان که
یوې ښځې خپل خاوند ته طلقنی ولك الف درهم او وې نو که خاوند
طلاق ورکړو نو دۀ ته به زر دراهم نه ملاویږی ځکه چې دلته واؤ د

عطف دپاره دي حال دپاره نه دي او طلاق کښې اصل دا دي چې
ښځه بغير د مال نه وی دې مقام کښې د حضرات صاحبينو رحمهم
الله اختلاف دي ـ

او صاحبين رحمهم الله فرمائی چې واؤ د حال دپاره دي لهذا دا به د
طلاق ورکولو دپاره شرط وی ګويا که ښځې داسې وئيلي دی
طلقنی والحال ان لك الف درهم الهذا په دې به زر دراهم واجب شي

**قوله** : **والفاء للوصل والتعقيب فيتراخى المعطوف عن المعطوف عليه بزمان وان لطف فاذا قال ان دخلت هذه الدار فهذ الدار فانت طالق فالشرط ان تدخل الثانية بعد الاولى بلا تراخ وتستعمل فی احكام العلل فاذا قال بعت منك هذا العبد بكذا وقال الاخر فهو حر يكون قبولاً للبيع**

**الفـاء** : فاء د وصل او تعقيب دپاره راځی لهذا معطوف به د
معطوف نه لږه زمانه مؤخر وی لهذا که چا خپلې ښځې ته اووې ان
دخلت هذه الدار فهذ الدار فانت طالق نو د طلاق به دا شرط وی چې
ښځه دويم کور کښې بغير د تراخی نه د اولنی کور نه پس داخله شي
او فاء په اصول احكام کښې هم استعماليږی ځکه چې فاء د
تعقيب دپاره راځی او احکام د علتونو نه پس راځی لهذا که چا
اووې **بعت منك هذا العبد بكذا** او مشتری اووې فهو حر نو دا به بيع
قبلول وی ليکن دلته به بيع لره اول اقتضاء منو ځکه چې حرمت هم
د بيع په قبليدو باندې صحيح کيدې شی ليکن که وهو حر يې
اووې نو بيا به قبلول نه وی ځکه چې په دې کښې د خبر او انشاء

دوارو احتمال دې د دې شک په وجه سره به دا د بيع قبلول نه وي

**قوله** وقد تدخل على العلل اذا كانت مما تدوم

کله فاء په داسې علت باندې هم داخليږي چې کله علت داسې وي چې په هغې کښې دوام وي چې د تعقيب معنى حاصله شي مثلاً چا اووې ابشر فقد اتاك الغوث څکه چې د غوث راتلل اگرچه وقتي خيز دې ليکن ذات يې دائمي دې يعنې هغه د بشارت نه مخکښې هم دې او روستو هم دا شرط د فخر الاسلام رحمه الله په نزد دې ليکن صاحب توضيح وائي چې د فاء د داخليدو دپاره د علت غني کيدل ضروري دي

**قوله** كقوله اد الى الفا فانت حر اى اد الى الفا لانك حر فيعتق فى الحال وتستعار بمعنى الواؤ فى قوله له على درهم فدرهم حتى لزمه درهمان وقالا له يتعلقن جميعاً وينزلن على الترتيب ـ

د دې مثال اد الى الفاً فانت حر يعني اد الى الف لانك حر نو دا غلام به في الحال آزاد شي او د دۀ حرمت به د زرو دراهمو په ادا کولو باندې موقوف نه وي که اعتراض وي چې ولې جائز نه دی چې د دې تقدير دغه شان وي د ان اديت الفاً فانت حر) نو د دې جواب دا دې چې جواب د امر مستحق هغه وخت کيدې شي چې کله کلمه د ان مقدر اومنلې شي او کلمه د ان چه لفظاً وي نو هغه ماضي او جمله اسميه د مستقبل په معنى کښې گرځوي او که مقدر وي نو د مستقبل په معنى کښې يې نه گرځوي نو چې هرکله

نفه د مستقبل په معنی کښې نه وی نو په جواب د امر کښې به هم نه وی واقع ـ

او فاء مجازاً هم د واؤ په معنی کښې استعمالیږی لکه چې څوک اووائی علی درهم فدرهم نو دلته فاء د تعقیب دپاره نه شی کیدې ځکه چې تعقیب په اعراضو کښې وی اعیانو کښې نه وی او درهم عین دې لهذا فاء به د واؤ په معنی کښې وی او دوه درهمه به پرې واجب وی او امام شافعی صاحب ﷫ فرمائی چې دلته هرکله د فاء حقیقی معنی ممکن نۀ ده نو دا به د تاکید دپاره استعمالوو لهذا صرف یو درهم به واجب وی

**قوله** : وثم للتراخي بمنزلة ما لو سكت ثم استانف حتى اذا قال لغير المدخول بها انت طالق ثم طالق ثم طالق ان دخلت الدار فعنده الاول ويلغو ما بعده ولو قدم الشرط تعلق الاول به ووقع الثاني ولغا الثالث ـ

(۳) **ثم** : ثم د تراخی دپاره راځی ګویا متکلم خاموش شو او بیا یې د نوې سر نه کلام شروع کړو مثلا چا خپلې ښځې ته اووې چې انت طالق ثم طالق نو داسې به ګنړلې کیږی چې دې انت طالق وئیلو سره خاموش شو او د دې نه پس یې بیا ثم طالق اووې د امام صاحب په نزد دلته تراخی په تکلم او حکم دواړو کښې ده او صاحبینو رحمهم الله فرمائی چې تراخی صرف په تکلم کښې ده د دې اختلاف نتیجه به دا شی چې که یو سړی خپلې غیرمدخوله بی بی ته اووې چې انت طالق ثم طالق ثم طالق ان دخلت الدار

نو : امام صاحب په نزد به وړومبې طلاق واقع شي او باقي طلاقونه به لغو شي ځکه چې هغه انت طالق وئيلو سره خاموش شو نو : دې نه پس طلاقونو دپاره محل باقي پاتې نه شو لهذا هغه لغو شو او که شرط یې مقدم کړو او داسې یې اووې چې ان دخلت الدارفانت طالق ثم طالق ثم طالق نو بيا به طلاق شرط سره ملحق شي او دويم به واقع شي او دريم به لغو شي او د وړومبي ملحق یا معلق کيدو فائده دا ده چې که د دويمې نکاح نه پس دوباره دې د ښځې د بضعې مالک جوړ شو او شرط اوموندې شو نو : تعلق سابق په وجه به سابقه ۲ طلاقه واقع شي

د صاحبينو اختلاف نقل کړې شوې دې ......... صاحبين فرمائی چې درې واړه طلاقونه به شرط سره معلق وی او بيا به د وجود شرط نه پس ترتيب سره واقع شي بيا که هغه ښځه مدخوله وی نو درې واړه طلاقه به واقع شي او که غيرمدخوله وی نو وړومبی سره به بائنه شي او دويم او دريم طلاق به واقع نه وی ليکن د امام صاحب په نزد که مدخوله وی نو که جزاء مقدم وی نو اولنې او دويم طلاق به في الحال واقع شي او دريم طلاق به شرط سره معلق وی او که شرط مقدم وی نو اولنې طلاق به شرط سره معلق وی او دويم او دريم طلاق به في الحال واقع شي ـ

**قوله** : **وفي قوله** عليه السلام **فليكفر عن يمينه ثم ليات بالذی هو خيراستعير بمعنى الواوُ عملاً بحقيقة الامر تدل عليه الرواية**

**سوال** سوال کيږی چې امام شافعی صاحب رحمه الله فرمائي چې کفاره بالمال په حنث باندې مقدم کول جائز دی ځکه چې حضور صلی الله عليه وسلم

فرمائی من حلف على يمين فرأى غيرهما خيراً منها فليكفر عن يمينه ثم
ليأت بالذي هو خير (اوكما قال عليه السلام) اتيان خير د حانث كيدو نه كنايه
ده او دي لره پيغمبر عليه السلام د ثم لفظ سره د كفارې نه پس ذكر كړې
دې نو معلومه شوه چې كفاره بالمال لره په حنث باندې مقدم كول
جائز دی۔

**جواب**: كه دلته مونږ ثم په خپل حقيقت باندې اوساتو نو په
حقيقت د امر باندې عمل كول به ناممكن شي څكه چې فليكفر امر
دې او امر حقيقةً د وجوب دپاره راځي حالانكه د چا په نزد هم
كفارې لره مقدم كول واجب نه دی كه څوك اووائي چې ثم په خپل
حقيقت باندې ساتلو سره امر نه مجازي معنی ولې مراد اخلی نو د
دې دوه جوابونه وركولې شي۔

**رومبی جواب**: دويم حديث په دې باندې دلالت كوی ثم د واؤ په
معنی كښې دې چې د حديث پريخودل لازم رانشي په دې وجه به د
شوافعو والا حديث كښې مجازي طور ثم د واؤ په معنی كښې
واخلو او دويم حديث چې په هغې كښې حانث كيدل مقدم دی هغه
به د ثم په اصل باندې اوساتو چې د امر حقيقت وجوب فوت نه شي

**دويم جواب**: حروفو كښې مجاز مراد اخستل زيات غوره دی په
ځايي د دې چې امر كښې مجازي معنی مراد واخستې شي لهذا ثم
به په مجازي معنی باندې محمول كولې شي۔

**قوله** وبل لاثبات مابعده والاعراض عما قبله على سبيل
التدارك فتطلق ثلاثاً اذا قال لامراته المؤطوءة انت طالق

واحدة بل ثنتين لانه لم يملک ابطال الاول فيقعان بخلاف قوله له علی الف بل الفان ـ

(۴) **بل** : بل د خپل مابعد د اثبات دپاره او د خپل ماقبل نه اعراض دپاره راځي د تدارک په طريقه باندې يعنی د دې امر د اظهار کولو دپاره چې د بل په ماقبل تکلم کښې غلطی اوشوه څکه چې هغه مقصود نه وو بلکه مقصود د هغې مابعد وو لکه جاءنی زيدبل عمروعمر دپاره خو به مجيئت ثابت شی او زيد کښې دوه احتماله دی ليکن که جمله منفيه هويعنی ماجاءنی زيدبل عمرونو دې صورت کښې بعضې خلق وائی چې د عمرو طرفته نفی او بعضې وائی چې د عمرو طرفته به اثبات متوجه وی

**تفريع** : که چا خپلې مدخوله ښځې ته اووې انت طالق واحدة بل ثنتين نو درې طلاقه به واقع شی څکه چې اخبار کښې خو د ماقبل نه اعراض کيدې شی ليکن انشاء کښې اعراض نه شی کيدې ليکن که چا اووې له علی الف بل الفان نو صرف دوه زره به لازم شی څکه چې دا اقرار او اخبار دې لهذا په دې کښې د ماقبل نه اعراض کيدې شی ـ

**قوله** ولکن للاستدراک بعد النفی غير ان العطف انما يصح عند اتساق الکلام والا فهو مستانف کالامة اذا تزوجت بغير اذن مولاها بمائة درهم فقال لا اجيز النکاح ولکن اجيزه بمائة وخمسين درهماً ان هذا فسخ للنکاح وجعل لکن مبتدا لان هذا نفی فعل واثباته بعينه ـ

**لكن**: لکن د نفی نه پس د استدراک دپاره راځی یعنی کلام سابق سره چې کوم وهم پیدا شوې وی د هغې د ختمولو دپاره راځی لکه دا قول ماجاءنی زید لکن عمرو بیا که دا مخففه وی نو عاطفه به وی او که مشدده وی نو د حروف مشبه بالفعل نه به وی لیکن دا عطف به هغه وخت صحیح وی چې کله کلام مرتب وی یعنی سابق کلام سره متصل وی او نفی د یو څیز وی او اثبات د دې نه علاوه د دویم څیز وی۔

که دې دواړو شرطونو کښې یو شرط هم اونه موندې شو نو کلام به مستانفه وی معطوفه به نه وی مثلاً که یوې وینځې د خپل مولی د اجازت نه بغیر په سلو درهمو باندې نکاح اوکړه او مولي اووې لااجیزالنکاح ولکن اجیزه بمائة وخمسین درهما دا به د نکاح فسخ کول وی لکن به مستانفه وی ځکه چې دا بعینه د یو فعل نفی او د هغې اثبات دې نو اول کلام به د آخر کلام سره متناقض شی لهذا مونږ به داسې ګڼړو چې مولی اولنی نکاح فسخ کړه او بیا یې په نوې مهر باندې دویمه نکاح اوکړه لیکن که مولی د دې په جواب کښې اووې لااجیزالنکاح بمائة ولکن اجیزه بمائة وخمسین درهما نو اصل نکاح به باقی وی او نفی به صرف د مائة د قید وی.

**قوله**: واو لاحد المذکورین وقوله هذا حر او هذا کقوله احدهما حر وجعل البیان انشاء من وجه واخبار من وجه واذا دخلت فی الوکالة یصح بخلاف البیع والاجارة الا ان یکون من له الخیار معلوماً فی اثنین او ثلاثة فیصح استحساناً۔

**او** : او ، **او** ، د احد المذكورين دپاره راځي يعني چې كوم دوه څيزونه د او په ذريعې سره ذكر كړې شوې دى حكم په هغې كښې د يو دپاره ثابتول دى لكه يو كس خپلو دواؤ غلامانو طرفته اشارې كولو سره اووې **هذاحراوهذا** نو دوى كښې به يو آزاد شي

بعضې علماء وائى چې (او) د شك دپاره وضع كړې شوې دې ليكن دا خبره صحيح نه ده ځكه چې شك د متكلم مقصود نه وى بلكه د محل د كلام نه لازم راځي او كه شك مقصود هم وى نو دې دپاره د (شك) لفظ موجود دې او دا كلام چونكه د انشاء احتمال هم لرى او د خبر هم لهذا د متكلم له طرفه تعين ضرورى دې چې هغه بيان كړى چې په دوى كښې كوم يو غلام مراد دې

او په دې مقام كښې د متكلم بيان من وجه انشاء او من وجه اخبار ګڼړلې كيږى ګويا كه آزادى اوس موندلې كيږى لهذا دا شرط دې چې محل عتق لره د قبلولو صلاحيت لرى نو كه دواړو غلامانو كښې يو غلام مړ شو او بيا متكلم اووې چې هم دا غلام زما مراد وو نو د هغهٔ خبره به نه شى قبلولې او چونكه دا من وجه اخبار دې لهذا قاضى د ذلره په غلام آزادولو باندې مجبورولې شى

چې كله حرف (او) په وكالت باندې داخل وى نو هم به صحيح وى او دې دواړو وكيلانو كښې به هر يو ته د تصرف كولو اختيار وى ځكه چې توكيل هم انشاء ده او انشاء كښې او د تخيير دپاره وى په خلاف د بيع او اجارې چې دې كښې دا نهٔ شى وئيلې كيدې **بعت هذااواجرت هذابالف اوبالفين** ځكه چې معقود عليه او معقود به پاتې شى ليكن كه من له الخيار معلوم وى نو دوه يا درې

مبیع او ثمن کېنبي به او راؤړل صحیح وی لیکن د دې نه زیاتو کېنبي صحیح نه دي ځکه چې تین په جید متوسط او ردی باندې مشتمل وی۔

**قوله**: وفى المهر كذلك عندهما ان صح التخيير وفى النقدين يجب الاقل وعنده يجب مهر المثل ان كان مهر المثل الفين وفى الكفارة يجب احد الاشياء النقدين خلافاً للبعض۔

د صاحبینو په نزد په مهر کېنبي هم (او) راؤړل صحیح دی چې کله د تخییر څه فائده وی یعنی دواړو کېنبي د یو په حق کېنبي فائده وی او د دویم په حق کېنبي نقصان او که د تخییر فائده هم نه وی نو قلیل او کثیر او نقدین کېنبي به اقل واجب شی لکه الف او الفین او د فائدې مثال دا دې چې الف حال بالفین مؤجلا

د امام صاحب په نزد به په دې صورتونو کېنبي مهر مثل واجب شی لیکن که زر نقدیت او دوه زره قرض وي نو که مهر مثل دوه زره یا زیات وو نو اختیار به ښځې ته وی او که مهر مثل زر یا کم وو نو اختیار به سړی ته وی

هر هغه کفاره چې په هغې کېنبي د څو څیزونو درمیان کېنبي حرف (او) راؤړلي شوي دي په هغې کېنبي به هم اختیار وی او هغې کېنبي به صرف یو څیز واجب وی او که ټول څیزونه ادا کړی چې په هغې کېنبي اختیار وو نو کفاره به صرف د یو څیز نه ادا شی د باقی ادا کول به د کفارې په طور نه بلکه د تبرع او احسان په طور وی او که ممیز فیه څیزونو کېنبي یې هیڅ یو څیز هم ادا نکړو نو سزا به صرف په یو باندې وی د نشتوالی په وجه لیکن د بعضې

خلقو په نزد دا تول څیزونه علی سبیل البدل واجبیږی یعنی که یو یې ادا کړو نو وجوب به ساقط شی او که یو یې هم ادا نکړو نو د ټولو په نه ادا کولو به سزا وی

مونږ وایو چې ستاسو دا قول د شریعت او د لغت د وضع خلاف دي لهذا دا مونږ نه تسلیموو ـ

**قوله** وفی قوله تعالی ان یقتلوا او یصلبوا للتخییر عند مالک ﷫ وعندنا بمعنی بل ان یقتلوا اذا قتلوا فقط بل یصلبوا اذا ارتفعت المحاربة بقتل النفس او اخذ المال بل تقطع ایدیهم وارجلهم اذا اخذ والمال فقط بل ینفوا من الارض اذا خوفو الطریق ـ

**د (او) مجازی معنی**

د او حقیقی معنی بیانولو نه پس اوس مصنف ﷫ د او مجازی معنی بیان فرمائی او لیکی چې په آیت ان **یقتلوااویصلبواالخ** کښې د امام مالک ﷫ په نزد او د تخییر دپاره دي او زمونږ په نزد د تخییر دپاره نه دي بلکه د بل په معنی کښې دي ځکه چې د ډاکو جرم په څلور قسمه وی

(۱) صرف مال اخستل (۲) صرف قتلول (۳) قتلول او مال اخستل (۴) صرف ویرول

نو د دې جرمونو سزاګانې به هم څلور وی چې جرم سخت وی نو سزا به هم سخته وی او که جرم سپک وی نو سزا به هم کمه وی اصل کښې حدیث مبارک کښې هم تفصیل راغلې دې ځکه چې

حضور انور ﷺ د ابوبردة سره معاهده کړې وه بيا د هغهٔ څه ملګرو د معاهدې خلاف ورزی اوکړه او څه خلق چې د اسلام په اراده راروان وو په هغوی يې ډاکه واچوله نو جبرائيل علیه السلام د الله تعالی له طرفه حد راوړلو سره تشريف راوړو چې چا قتل کړې دې او مال يې هم اخستلې دې نو هغهٔ ته پهانسی ورکړې شی او چې چا قتل کړې دې او مال يې نه دې اخستلې نو هغه دې قتل کړې شی او چې چا قتل نه دې کړې نو د هغهٔ دې لاس خپې کټ کړې شی او چې چا صرف ويرول کړې دی نو هغه دې د ملک نه ويستلې شی

ليکن امام صاحب رحمه الله فرمائی چې پهانسی ورکول د مال اخستلو او قتلولو سره خاص دې ليکن دا حالت يعنی مال اخستل او قتل کول د پهانسی سره خاص نه دی بلکه دې حالت کښې امام ته د بل قسم سزا ورکولو هم اختيار شته او د ملک نه د ويستلو زمونږ مطلب قيد کول دی

**قوله** : وقالا اذا قال لعبده ودابته هذا حر او هذا انه باطل لانه اسم لاحدهما غير عين وذلک غير محل للعتق وعنده هو كذلک لكن على احتمال التعين حتى لزمه التعيين كما فى مسالة العبدين والعمل بالمحتمل اولى من الاهدار وهما ينكر ان الاستعارة عند استحالة الحكم فهما جريا

صاحبين فرمائی چې که يو سړی خپل غلام او خاروی ته اووې هذا حر او هذا نو دا کلام به باطل شی ځکه چې د هذا مشار اليه په دې دواړو کښې غيرمعين دې او غيرمعين څيز د عتق محل جوړيدې نه شی او امام صاحب رحمه الله فرمائی اګرچه حقيقتاً خو د غه

شان د، لیکن مجازاً دا د تعین احتمال لری لهذا په متکلم به تعین لازم وی اصل کښې دا اختلاف په دې اختلاف مبنی دې چې که حقیقت محال وی نو د امام صاحب په نزد مجاز مراد اخستې شی او د صاحبینو په نزد دې صورت کښې مجاز مراد نهٔ شی اخستې.

**قوله** : **وتستعار للعموم بمعنى واو لعطف لاعينها وذلک اذا كانت فى موضع النفى او موضع الا الاباحة كقوله والله لا اكلم فلاناً اوفلاناً حتى اذا كلم احدهما يحنث ولو كلمهما لم يحنث الا مرة ولو حلف لا يكلم احداً الا فلاناً او فلاناً فله ان يكلمها**

(او) لره مجازاً د (عموم) د پاره استعمالولې شی او دې وخت کښې دا د واؤ عاطفه په معنی کښې وی لیکن بعینه واؤ عاطفه نه وی او دا به هغه وخت وی چې کله دا د نفی یا د اباحت په ځایې کښې واقع شی نو که چا اووې چې ( **والله لا اكلم فلاناً اوفلاناً**) نو کهٔ دې بیا د دې ورومبی سره خبرې اوکړی نو حانث به شی او که دویم سره ئې خبرې اوکړې نو هم به حانث شی حالانکه که دا واؤ د عطف په معنی کښې نه وو نو بیا به صرف یو سره په خبرو کولو باندې حانث کیدو نه چې دواړو سره په خبرو کولو لیکن چونکه دا بعینه واؤ نه دې لهذا صرف یو ځل به حانث شی حالانکه که چرته دا بعینه واؤ وې نو بیا به دوه ځله حانث کیدو بعضې خلق وائی چې معامله د دې برعکس ده ـ

یعنی د بعینه واؤ نه کیدو ثمره دا ده چې دې دواړو کښې یو سره هم خبرې اوکړی نو حانث به شی او د واؤ په معنی کښې د کیدو نتیجه دا ده چې دې دواړو سره خبرې کولو سره به هم یو ځل حانث شی

او د عموم دپاره به مجازاً هغه وخت استعمالولې شی چې
کله دوه شرطونه اوموندې شی

اولنې شرط دا دې چې هغه د اباحت په ځايې کښې واقع
وی لکه چا قسم اوکړو والله لا اکلم احداً الا فلاناً اوفلاناً او که دا د واؤ په
معنی کښې نه وې نو متکلم ته به صرف یو سره د خبرو کولو اختیار
وو او اوس دواړو سره خبرې کولې شی

**قوله** : وتستعار بمعنی حتی او الا ان اذا فسد العطف
لاختلاف الکلام ویحتمل ضرب الغایة

بعضې وخت کښې او مجازا د حتی او الا ان په معنی کښې
هم استعمالیږی چې کله عطف کول صحیح نه وی ځکه چې دواړه
کلامونه به مختلف وی د اسم او فعل کیدو په اعتبار سره د ماضی
اومضارع کیدو په اعتبار سره او دمثبت او منفی کیدو په اعتبار سره

دویم شرط دا دې چې اول کلام ممتد وی په دې طریقې
بآندې چې مابعد کښې د دې دپاره غایت بیان کیدې شی او د
دواړو معنو درمیان کښې مناسبت دا دې چې حتی د غایت دپاره
وی او د دې په وجه مغیا خپلې انتهاء ته رسیږی

بعینه دغه شان (او) کښې په دواؤ څیزونو کښې د یو څیز
موندې کیدو په وجه دویم څیز خپلې انتهاء ته رسیږی دغه شان (
الا ان) د استثناء دپاره وی او د استثناء حکم د مستثنی منه مخالف
وی لکه (او) کښې د معطوف حکم د معطوف علیه مخالف وی چې
کله په دواړو کښې یو اوموندې شی ـ

**قوله** كقوله تعالى ليس لک من الامر شئ او يتوب عليهم او يعذبهم ـ

څنګه چې الله تعالى خپل حبيب پاک ﷺ ته فرمائى ليس لك من الامر شئ او يتوب عليهم او يعذبهم ځکه چې د اويتوب عطف په ليس لك باندې نۀ شى كيدې ځکه چې هغه ماضى دې او دا مضارع ده او شئ باندې هم نۀ شى كيدې ځکه چې هغه اسم دې او دا فعل دې ليكن د غايت والا معنى كيدې شى نو معنى به دا وى چې تاسو د كافرانو په حق كښې د بددعا يا د شفاعت اختيار هغه وخت پورې نۀ شى لرلې چې ترڅو د الله تعالى له طرفه د دوى په حق كښې د توبې يا د عذاب فيصله اونۀ شى ـ

**شان نزول** : يو روايت كښې دى چې نبى عليه السلام د الله تعالى نه د كفارو باره كښې د بددعا كولو اجازت طلب كړې وو په دې باندې دا آيت كريمه نازل شو دويم روايت كښې دى چې د احد په ورځ صحابه كرامو رضى الله عنهم اجمعين پيغمبر عليه السلام ته درخواست كړې وو چې د كفرو منكرينو د پاره بددعا اوكړى نو پيغمبر عليه السلام په خپله اونكړه ـ

**د مفسر صاحب كشاف مسلك** :

صاحب كشاف فرمائى چې درومبى آيت كښې چې ليقطع او يكبتهم دې د (او) عطف په دې باندې دې او پاتې شو ليس لك من الامر شئ نو دا جمله معترضه ده ـ

**قوله** : وحتى للغاية كالى وتستعمل للعطف مع قيام معنى الغاية كقولهم استنت الفصال حتى القرعى

**حتی** : (حتى) د الی په شان د غایت دپاره راځي خواه د دې مابعد د ماقبل جزء وی یا نه وی دا د عطف دپاره هم استعمالیږی د غایت د معنې باوجود ځکه چې څنګه معطوف په خبر او حکم کښې د معطوف علیه نه پس وی دغه شان غایه د مغیا نه پس وی

مثلاً د عربې دا مقوله : استنت الفصال حتی القرعی، د اوښ تندرست بچې هم په ګرځیدو شو تردې چه کمزوری بچې هم.
دې مثال کښې غایت په دې طور دې چې د قرعی نه د ضعف په وجه د استنان فعل نه صادریږی د عطف معنی خو اظهر من الشمس ده۔

**قوله** : ومواضعها فى الافعال ان تجعل غاية بمعنى الى او غاية هى جملة مبتداة وعلامة الغاية ان يحتمل الصدر الامتداد ان يصلح الاخر دلالة على الانتهاء كالسير فان لم تستقم فللمجازاة بمعنى لام كى فان تعذر هذا جعلت مستعارة للعطف المحض وبطل معنى الغاية وعلى هذا مسائل الزيادات المذكورة فى الزيادات

کلمه د (حتی) افعالو کښې هم استعمالیږی یعنی کله خو غایت وی د الی په معنی کښې لکه سرت حتی ادخلها او کله غایت کیدو سره مستقل جمله وی یعنی ماقبل سره متعلق نه وی لکه خرجت النساء حتی خرجت الهند۔

د غايت علامت دا دي چې صدر د کلام د امتداد احتمال لرى او آخر د کلام د انتهاء صلاحيت لرى او په انتهاء بآندې دلالت کوى لکه خرجت النساء حتى خرجت الهند که د غايت معنى صحيح نه وى نو بيا به حتى د لام په معنى کښې وى او د مجازات د پاره به استعمالېږى يعنى اول به مسبب وى او ثانى به سبب وى که دا معنى هم مشکل وى نو حتى به صرف عطف د پاره مستعار وى او د غايت معنى به بالکل باطل وى

د امام محمد رحمه الله کتاب د زيادات مسائل هم په دې دريو قواعدو بآندې مبنى دى

**قوله** کان لم اضربک حتى تصيح فعبدى حر

د اولنى مثال د ضارب مضروب ته وئيل دى ان لم اضربك حتى تصيح فعبدى حر چې دا چغې وهل د ضرب د پاره غايت جوړيدې شى د شفقت په وجه يا د ويرې په وجه

**قوله** وان لم اتاک حتى تغدينى فعبدى حر

د دويم مثال ان لم اتك حتى تغدينى فعبدى حر دا د مجازاتو مثال دې اتيان اگرچه د امتداد احتمال لرى ليکن تغديه د دې د پاره غايت نه شى جوړيدې بلکه د کثرت اتيان داعى دې لهذا دې کښې به حتى د لام کې په معنى کښې وى نو که متکلم راغې ليکن مخاطب ناشته اونکړ د نو حانث به نه وى

**قوله** وان لم اتاک حتى اتغدى عندک فعبدى حر

د دريم مثال يعنى عطف محض د پاره وى ان لم اتاك حتى اتغدى

عندك فعبدی حر دلته د مجازات معنی هم صحیح نه د؛ ځکه چې دې مثال کښې تغدیه هم د متکلم فعل دې او هیڅ یو متکلم هم خپل ځان ته بدله نه شی ورکولې نو که متکلم بالکل رانغې یا راغې لیکن ناشته یې اونکړه یا راغې او ناشته یې لیټ اوکړه نو غلام به آزاد شی ځکه چې دلته حتی د فاء په معنی کښې ده چې په دې کښې تراخی نهٔ صحیح کیږی

**قوله** : ومنها حرف الجر فالباء للالصاق وتصحب الاثمان حتی لو قال اشتریت منک هذالعبد بکر من حنطة جیدة یکون الکر ثمنا فیصح الاستبدال به بخلاف ما اذا اضاف العقد الی الکر فلو قال ان اخبرتنی بقدوم فلان فعبدی حر یقع علی الحق خلاف ما اذا قال ان اخبرتنی ان فلانا قدم ولو قال ان خرجت من الدار الا باذنی یشترط تکرار الاذن لکل خروج بخلاف قوله الا ان اذن لک ۔

**حروف معانی کښې حروف جر هم دی**

(۲) **الباء** : په دې کښې یو (باء) ده چې د څو معانو دپاره راځی او حقیقتاً (باء) د الصاق دپاره راځی او دا په ثمن باندې داخلیږی نو که چا اووې اشتریت منك هذالعبد بکرمن حنطة نو دې مثال کښې به کر ثمن شی او د دې بدلول به هم جائز وی ځکه چې د ثمن بدلول جائز وی لیکن که دا یې. اووې چې اشتریت منك کرامن حنطة بهذالعبد نو کر به مبیع وی غیر معین او دا به بیع سلم وی که چا اووې چې

ان اخبرتنی بقدوم فلان فعبدی حر د دې نه به رښتوني خبر مراد وی ځکه چې باء د الصاق دپاره ده او معنی ده خبراً ملصقاً بقدوم فلان لیکن که دا یې اووې ان اخبرتنی ان فلاناً قدم نو د دې نه به خبر صادق او کاذب دواړه مراد وی ځکه چې اولنی صورت کښې (باء) د الصاق دپاره ده.

دغه شان که چا خپلې ښځې ته اووې چې ان خرجت من الدار الا باذنی فانت طالق نو هر ځل به د کور نه د وتلو په وخت اجازت اخستل شرط وی که یو ځل هم د اجازت نه بغیر اووتله نو طلاق به واقع کیږی لیکن که داسې یې اووې چې الا ان ذلك لك نو دې صورت کښې به هر ځل وتلو دپاره اجازت شرط نه وی بلکه یو ځل اجازت کافی دې.

**اعتراض**: دلته باء لره ولې مقدر نه منې چې په دې تقدیر منلو باندې به د اولنی مثال او د دویم مثال معنی یوه شی؟

**جواب**: ځکه چې دا خلاف اصل ده

**اعتراض** بیا اعتراض کیږی چې دې سره د مضارع ملاوولو سره د مصدر په تاویل کښې ولې نه ګرځوی او مصدر کله ظرف زمان واقع کیږی نو هغې کښې به هم هر ځل شرط وی؟

**جواب**: دغه شان منلو سره د طلاق په واقع کیدو کښې شک راغې او شک سره طلاق نه واقع کیږی.

**قوله** وفی قوله انت طالق بمشیة الله تعالی بمعنی الشرط

او که څوک داسې اووائی انت طالق بمشیة الله تعالی نو د عبارت

تقدير به دغه شان وی چې انت طالق انشاءالله تعالی لهذا طلاق به نه واقع کیږی -

**قوله** : وقال الشافعي رحمه الله الباء فی قوله تعالی وامسحوا برءوسكم للتبعيض يكون اتيانا بالمامور به وقال مالک انها صلة وليس كذلک بل هی للالصاق لكنها اذا دخلت فی الة المسح كان الفعل متعدياً الی محله فيتناول كله واذا دخلت فی محل المسح بقی الفعل متعدياً الی الالة فلا يقتضی استيعاب الراس وانما يقتضی الصاق الالة بالمحل وذلک لا يستوجب الكل عادة فصار المراد به اكثر اليد فصار التبعيض مراداً

امام شافعی رحمه الله فرمائی چې د الله تعالی په دې قول يعنی وامسحوا برءوسكم کښې (باء) د تبعيض دپاره ده او د امام مالک رحمه الله په نزد (باء) زائده ده لهذا د ټول سر مسح به کوی ليکن مونږ دا وايو چې نه د تبعيض دپاره ده او نه زائده ده بلکه د الصاق دپاره ده ليکن چې کله (بآء) په آله مسح کښې داخل شی نو فعل به خپل محل طرفته متعدی وی او خپل ټول محل ته به شامل وی لکه مسحت الحائط بيدی لهذا د دې نه به بعضې لاس مراد وی او که دا محل د مسح کښې داخل وی نو فعل به د راتلو طرفته متعدی شی مسحت بالحائط نو دې کښې به هم بعضې حائط مراد وی او چونکه آيت مبارک کښې بآء په محل باندې داخل ده نو د دې بعض به مراد وی د امام ابو حنيفه رحمه الله نه دويم روايت دا دې چې آيت د مقدار په حق کښې مجمل دې نو د حضور صلی الله عليه وسلم عمل د دې بيان دې چې

هغوی مبارک د سر په څلورمه حصه باندې مسح اوفرمائیله

**اعتراض** که څوک اعتراض اوکړی چې تیمم کښې وجه او ید دواړو باندې باء داخل ده حالانکه د هغې استیعاب مراد دې

**جواب** چونکه تیمم د اودس خلیفه دې لهذا هغې سره به اصل والا معامله کولې شی

**قوله** وعلى للالزام فقوله له على الف درهم يكون دينا الا ان يتصل بها الوديعة

(۲) **حرف على** (على) د الزام دپاره راځي ځکه چې دا لغت کښې د استعلاء دپاره وی خواه استعلاء حقیقتاً وی یا حکماً لهذا که چا اووې (له على الف درهم) نو د دې نه به مراد قرض وی مګر که دې سره لفظ د ودیعت متصل مذکور وی

**قوله** فان دخلت في المعاوضات المحضة كانت بمعنى الباء

او که على په معاوضات محضه باندې داخل وی نو دا به د باء په معنی کښې وی لکه بیع اجاره او نکاح وغیره ځکه چې دې څیزونو کښې معاوضه اصل وی

**قوله** وكذا اذا استعملت في الطلاق عندهما وعند ابى حنيفة رحمه الله للشرط ـ

صاحبین فرمائی چې که (على) طلاق کښې استعمال شی نو هم به د باء په معنی کښې وی ځکه چې طلاق کښې کله په عوض باندې داخلیږی نو هغه د معاوضاتو په معنی کښې وی نو که ښځې

خپل خاوند ته اووي چې طلقني ثلاثاً علی الف درهم که خاوند يو طلاق ورکړو نو دۀ ته به د هزار دريمه حصه ملاويږي او د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دا علي د شرط د پاره ده لکه قرآن پاک کښې دی يبايعنك علی ان لايشركن بالله ځکه چې څنګه علی د الزام د پاره وی دغه شان جزاء هم د شرط سره لازم وی ... لهذا که خاوند يو طلاق ورکړو نو بيا به ورته هيڅ حصه هم نه ملاويږي ځکه چې د شرط اجزاء د مشروط په اجزاؤ باندې نه تقسيميږي۔

**قوله** : ومن للتبعيض فاذا قال من شئت من عبيدی عتقه فاعتقه له ان يعتقهم الا واحدا منهم عند ابی حنيفة رحمه الله

(٣) **من** : او من د تبعيض د پاره راځي نو که مولی چاته اووې من شئت من عبيدی عتقه فاعتقه نو د امام صاحب په نزد به دا سړې هغوی کښې د يو نه سوا باقي ټول آزادولې شي

**قوله** : وعندهما من للبيان

او د صاحبينو په نزد (من) د بيان د پاره راځي لهذا هغه ټول آزادولې شي لکه څنګه چې دې صورت کښې ټول آزادولې شي (من شاء من عبيدی العتق فاعتقه) د امام صاحب په نزد هغه فرمائي چې (من شاء) کښې مشيت صفت عامه دې ليکن (من شئت) کښې چونکه د مخاطب طرفته نسبت دې لهذا عموم به نه وی

**قوله** : والی لانتهاء الغاية فان كانت الغاية قائمة بنفسها كقوله من هذه الحائط الی هذه الحائط لا تدخل الغايتان فی

صاحبين ﷫ وائي چي دا دواړه برابر دي يعني دواړه استيعاب تقاضه کوی نو که چا خپلي ښځي ته اووې (انت طالق غداًاوفي غد)او بيا يې اووې چي ما خو د غدا نه د شپې آخر مراد وو او دغه مي نيت وو نو دياتناً به د هغه تصديق کولي شي ليکن قضاء به د هغه تصديق نه شي کولي بلکه د ورځي په شروع کښي به طلاق واقع شي امام ابو حنيفه ﷫ دواړو صورتونو کښي فرق کوی نو هغوی فرمائي چي که في حذف شي نو قضاء به د هغه د نيت تصديق نه کيږي ليکن که في حذف نه کړي شي بلکه ذکر کړې شي نو قضاء به هم تصديق کيږي خکه چي د في ذکر کول د امام صاحب په نزد د استيعاب تقاضه نه کوی

**قوله** : **واذا ضيف الى مكان يقع حالاً ان يضمر الفعل فيصير بمعنى الشرط ـ**

او که د طلاق نسبت يو مکان طرفته اوکړی او مثلاً داسې اووائي انت طالق في مكة نو في الحال به طلاق واقع شي ليکن که مصدر لره مقدر اومنلي شي نو د شرط د قبيل نه به وی يا هغه داسې اووئيل ان دخلت مكة فانت طالق نو مکه کښي به داخليدو سره طلاق واقع شي که مکه کښي داخل نه وی نو طلاق به هم نه وی

**قوله** **ومنها اسماء الظروف فمع المقارنة وقبل للتقديم و بعدللتاخيروحكمهافي الطلاق ضدحكم قبل واذا قيدت بالكناية كانت صفة لما بعدها واذالم تقيد كانت صفة لما قبلها**

**حروف معاني كښې اسماء ظروف هم دي .**

دې كښې (مع): مقارنت دپاره راځي او (قبل) د تقديم دپاره او (بعد) د تاخير دپاره او طلاق كښې د (بعد) حكم د (قبل) د حكم ضد دې يعنى كوم صورت كښې چې (قبل) كښې يو طلاق واقع كيږي نو (بعد) كښې دوه واقع كيږي او چې كوم صورت كښې (قبل) كښې دوه نو (بعد) كښې به يو واقع كيږي .

او چې كله قبل او بعد ضمير سره مقيد كړې شي نو د خپل ما بعد دپاره به صفت وي مثلاً چا غير مدخولې ښځې ته اووې انت طالق واحدة قبلها واحدة نو دوه طلاقه به واقع كيږي او كه وې وئيل انت طالق واحدة بعدها واحدة نو دې صورت كښې به يو طلاق واقع شي .

او كه دا ضمير سره مقيد نه كړې شي نو دا به د خپل ماقبل دپاره صفت وي او حكم به د دې برعكس وي .

مثلاً يو سړي اووې (انت طالق واحدة قبل واحدة) نو يو طلاق به واقع شي او كه وې وئيل انت طالق واحدة بعد واحدة نو دوه طلاقه به واقع شي

**قوله** وعند للحضرة فاذا قال لغيره لک عندی الف درهم كان وديعة كان الحضرة تدل على الحفظ دون اللزوم .

او (عند) د حضرت يعنى د يو څيز د حاضر والى دپاره راځي نو چې كله يو كس بل ته اووې (لك عندي الف درهم) نو دا به وديعت وي ځكه چې عند د حضور دپاره راځي او دا حاضر والې په حفاظت باندې دلالت كوي

**قوله** . وغير يستعمل صفة للنكرة ويستمعل استثناء كقوله له علی درهم غير دانق بالرفع فيلزم درهم تام ولوقال بالنصب كان استثناء فيلزمه درهم الادانقا .

او (غير) د نكره دپاره راځی صفت هم استعماليږی او استثنى هم استعماليږی نو كه وي وئيل له‌علی درهم‌غيردانق رفع سره‌نو د غير درهم دپاره به صفت وی لهذا به دهٔ باندې به پوره درهم واجب وی .

او كه (غير) نصب سره يئ اووې يعنی داسې يئ اووې له علی الف درهم‌غيرذلك‌دانقا نو د مستثنی دپاره به وی او د يو دانق نه كم به درهم واجب وی .

**قوله** . ومنها حروف الشرط

**حروف معانی كښې حروف شرط هم دی**

**قوله** : فان اصل فيها وانما تدخل علی امر معدوم على خطرالوجود وليس بكائن لا محالة فاذاقال ان لم اطلقک فانت طالق لم يطلق حتی يموت احدهما .

او دې كښې (ان) اصل دې ځكه چې دا صرف هم په دې يو معنی كښې استعماليږی په خلاف د دويم حرف چې د هغې معانی د شرط نه علاوه متعدد دی حروف شرط په هغه څيز باندې داخليږی چې معدوم وی ليكن د هغې د وجود احتمال وی يعنی يقينی طور باندې نه وی بلكه د معدوم او يقين په مينځ كښې وی

د ان اِشه دا استعمال دي البته محال الوجود کښې علی سبیل المجاز استعمالیږی نو کهٔ چا اووې ان لم اطلقك فانت طالق نو دې وخت کښې به یو طلاق نه وی چې تر څو ښځه خاوند کښې یو مړ نه شی ځکه چې د مرګ نه وړاندې هر وخت د طلاق ورکولو احتمال دی نو د مرګ وخت کښې به نږدې طلاق واقع شی بیا دا ښځه کهٔ غیر مدخوله وی نو هغې ته به میراث نه ملاویږی او که مدخوله وی نو میراث به ملاویږی

**قوله** واذا عند نحاة الكوفة تصلح للوقت والشرط على السواء فيجازى بها مرة ولا يجازى بها اخرى واذا جوزى بها سقط عنها الوقت كانها حرف الشرط وهو قول ابى حنيفة مثل متى فانها للوقت لا يسقط عنها وذلك بحال وهو قولهما حتى اذا قال لامراته اذا لم اطلقک فانت طالق لا يقع الطلاق عنده مالم يمت احدهما وقالا يقع كما فرغ مثل لم اطلقک

او اذا د کوفي د نحاة په نزد د وخت او د شرط دواړو صلاحیت لری لهذا کله خو ددې جزاء راوړلې کیږی او کله نهٔ د شرط مثال لکه دا شعر

واستغن ما اغناك ربك بالغنى

واذا تصبك خصاصة فتحمل

**د جزاء مثال** و اذا تكون كريهة ادعى الها

واذا يحاس الحيس يدعى جندب

او چې كله ددې جزاء راولې شى نو د وخت معنى به ساقط شى ليكن د بصري د نحاة په نزد دا حقيقتاً د وخت دپاره دې او كله كله د شرط دپاره هم استعماليږى ليكن د وخت معنى ددې نه نهٔ ساقطيږى لكه څنګه (متى) ددې دپاره جزاء لازم ده ددې باوجود ددې نه د وخت معنى نه ساقطيږى اولنې قول د امام اعظم صاحب دې او دويم قول د صاحبينو دې

لهذا كهٔ چا خپلې ښځې ته اووې اذالم اطلقك فأنت طالق نو د امام صاحب په نزد د اولنى وخت معنى ساقطه ده لهذا طلاق به هغه وخت واقع كيږى چې كله په دوئ كښې يو مرګ ته نزدې شى

او صاحبين فامائى چې د وخت معنى ساقط نهٔ ده لهذا خاوند چې نوې خبرې كولو سره واپس شى نو طلاق به واقع شى ځكه چې ددې معنى داده چې كوم وخت زهٔ تاته طلاق درنكړم نو تاته طلاق دې او چې كله هغه د كلام نه فارغ شو نو داسې وخت اوموندلې شو چې هغې كښې خاوند طلاق ورنكړو نو طلاق به واقع شى او اذاما د اذا په شان ده ليكن دې كښې اختلاف نشته

**قوله ولو للشرط وروى عنهما انه اذا قال انت طالق لو دخلت الدار _**

او (لو) د شرط دپاره راځى نو كهٔ چا خپلې ښځې ته اووې انت طالق لودخلت الدار نو داسې ده لكه چې ان دخلت الدار ئې اووې ځكه چې (لو) د خپلې معنى اصلى په اعتبار سره په ماضى كښې استعماليږى ليكن دلته د (ان) په معنى كښې به د مستقبل دپاره وى

**قوله** وکیف للسوال عن الحال فی اصل وضع اللغة فان استقام فیها والا بطل ولذلک قال ابو حنیفة رحمه الله فی قوله انت حر کیف شئت انه ایقاع وفی الطلاق تقع الواحدة ویبقی الفضل فی الوصف والقدر مفوضاً الیها بشرط نیة الزوج وقالا مالم یقبل الاشارة فحالة ووصفه بمنزلة اصله فیتعلق الاصل بتعلقه ابو حنیفة یقول یلزم من هذا اتباع الا صل للوصف وهو خلاف القیاس.

او (کیف): حال متعلق د سوال کولو دپاره راځی لکه کیف حالك او کۀ د سوال کولو معنی صحیح نه وی نو د کیف لفظ به بالکل باطل شی په دې وجه امام صاحب فرمائی که چا خپل غلام ته اووې انت حر کیف شئت نو هغه به فوراً آزاد شی او (کیف) به لغو شی.

او د انت طالق کیف شئت په ذریعه د طلاق ورکولو په صورت کښې به یو طلاق واقع شی او په وصف او قدر کښې به زیادت د ښځې په حواله وی لیکن په دې کښې د خاوند نیت شرط دې د وصف مطلب دې بائنه کیدل او د قدر مطلب دې د دریو یا دوؤ طلاقو کیدل کۀ د ښځې خاوند نیت متفق وی نو د هغوی د نیت مطابق به طلاق واقع شی او کۀ نیت مختلف وی نو د تعارض په وجه به دواړه نیتونه ساقط شی ځکه چې مشهور قاعده ده اذا تعارضا تساقطا. او اصل طلاق رجعی به واقع شی په دې صورت کښې د دوؤ طلاقو نیت صحیح نه دې ځکه چې هغه عدد محض دې ځکه چې دا نۀ فرد حقیقی دې او نۀ فرد حکمی او د دریو نیت

صحیح دي ځکه چې دا فرد حکمی دې .

صاحبین فرمائی چې هر هغه څیز چې د امور شرعیه غیر محسوسه نه وی لکه طلاق او عتاق نو دې کښې حال او اصل یو شان دی لهذا حال او اصل دواړه به شئت سره متعلق وی د پاره د دې چې ترجیح بلا مرجح لازم رانه شی

**جواب** : امام ابو حنیفه ؒ فرمائی چې دې سره اصل لره د وصف تابع کول لازم راځی او دا خلاف قیاس دی .

**قوله** : وكم اسم المعدد الواقع فاذا قال انت طالق كم شئت لم تطلق مالم تشاء .

(كم) دعدد واقع اسم دې لهذا که چاخپلې ښځې ته اووې انت طالق كم شئت نو تر څو چې هغه نۀ غواړی نو طلاق به نه واقع کیږی .

**قوله** : وحيث واين اسمان للمكان فاذا قال انت طلاق حيث شئت او اين شئت انه لايقع مالم تشاء وتنوقف مشيتها على المجلس بخلاف اذا ومتى .

او (حيث) او اين د مکان اسم دی نو که چا اووې انت طالق حيث شئت يا اين شئت نو چونکه طلاق څۀ مکان سره مخصوص نه وی نو هغه وخت به طلاق واقع کیږی چې کله هغه ښځه اوغواړی لیکن د هغې مشیت به په مجلس موقوف وی په خلاف د اذا او متی ځکه چې هغه په عموم زمان باندې دلالت کوی لهذا په دې کښې مشیت په مجلس باندې موقوف نه وی .

**قوله** الجمع المذكر بعلامة الذكور عندنا يتناول الذكور والاناث عند الاختلاط ولا يتناول الاناث المنفردات وان ذكر بعلامة التانيث يتناول الاناث .

**خاصه** ددې نه پس مصنف فرمائی چې هغه جمع مذکور چې هغې کښې د ذکور علامت وی او د اختلاط وخت کښې ذکور او اناث دواړو ته تغليبًا شامليږی ليکن ددې نه برعکس نه کيږی ځکه چې سړو ته په ښځو باندې غلبه حاصله ده ځنګه چې الله تعالی فرمائی للرجال عليهن درجة نه چې ښځو ته په سړو باندې.
امام شافعی رحمه الله فرمائی چې د اختلاط په وخت به هم اناث ته شامل نه وی ورنه ان المسلمين والمسلمات کښې به تکرار لازم راشي .
مونږ وايو چې دا خو صرف د هغې صحابياتو د خوشحالولو دپاره دي لهذا که جمع د مؤنث د علامت سره وی نو هغه به صرف اناث ته شامل وی

**قوله** حتى قال فى السير الكبير اذا قال امنونى على بنى وله بنون وبنات ان الامان يتناول الفريقين ولو قال امنونى على بناتى لا يتناول الذكور من اولاده ولو قال على بنى وليس له سوى البنات لا يثبت الامان لهن .

په دې وجه سير کبير کښې دی چې که د چا زامن وی اولونړه ئې هم وی او هغه اووائی آمنونی علی ابنائی نو امان به دواړو ته شامل وی ليکن که هغه آمنونی علی بناتی اووې نو دا به صرف لونړو ته

شامل وی او که هغه ابنانی اووي ليکن د هغه صرف لونړه وي نو د هغوی دپاره به امان ثابت نه وی

# د صريح بحث

**قوله** : واما الصريح فما ظهر المراد به ظهوراً بينا حقيقة كان او مجازاً كقوله انت حروانت طالق وحكمه تعلق الحكم بعين الكلام وقيامه مقام معناه حتى استغنى عن العزيمة .

**د صريح تعريف** :

لفظ صريح هغه لفظ دي چي د هغي مراد واضح وی خواه هغه حقيقت وی يا مجاز لکه انت حر او انت طالق څکه چي دا دواړه رقيت او نکاح زائل کولو کښي صريح دی

**د صريح حکم** :

ددي حکم عين کلام سره متعلق وی او په دي کښي د نيت هم ضرورت نه وی مثلاً يو کس سبحان الله وئيل غوښتل ليکن هغهٔ انت طالق اووي نو طلاق به واقع شی .

# د کنايه بحث

**قولــه** : واما الكنايـة فما استتر المراد به ولا يفهم الا بقرينة حقيقة كان او مجاز امثل الفاظ الضمير وحكمها ان لا يجب العمل بها الا بالنية .

**د کنایه تعریف**

کنایه هغه لفظ دي چې د هغې مراد پټ وي او د څه قرینې نه بغیر سمجهه کېږي نه راځي خواه هغه حقیقت وي یا مجاز وي کنایه کښې چې کوم پټوالي وي هغه د استعمال په اعتبار سره وي څنګه چې الفاظ ضمائر دي انا،انت وغیره دا ټول دي د پاره وضع کړې شوي دي چې د متکلم د خفاء په طور استعمال کړي

باقي د نحویانو په نزد د ضمیر اعرف المعارف کیدل ضروري خبره ده

**د کنایه حکم**

د دې حکم دا دې چې په دې باندې عمل کول هغه وخت پورې واجب نه دي چې کله د دې د پوې معنې نیت نه وي یا د نیت قائم مقام یو بل څیز نه وي

**قوله** وكنايات الطلاق سميت بها مجازاً حتى كانت بوائن

**د یو اهم اعتراض دفعیه**

**اعتراض** کنایه خو هغه وي چې د هغې امر پوشیده وي حالانکه انت بائن،بتة،بتلة،حرام وغیره د دې ټولو خو معانی معلومې دي

**جواب** دې الفاظو ته مجازا کنایه ویلې کیږي ځکه چې مثلاً د بائن معنی واضح او معلوم ده یعنی جدا کیدل لیکن دا معلومه نه ده چې د کوم څیز نه جدا کیدل د خاوند نه. خاندان نه. مال نه. جمال نه نو چې هرکله خاوند نیت اوکړو چې دا زما نه جدا ده نو طلاق بائن به واقع شي

کنایه هغه وی چې د هغې لغوی معنی معلومه وی لیکن مرادی معنی پوشیده یعنی پټه وی او دا الفاظ هم دغه شان دی لهذا دا کنایه کیدل پکار دی په دې وجه بعضې خلقو وئیلې دی چې دا د علماء بیان د مذهب مطابق کنایات دی

او د علماء اصول د مذهب مطابق دا کنایات نه دی لیکن د علماء بیان په نزد کنایه هغه وی چې لفظ ذکر کړې شی او د هغې معنی موضوع له مراد واخستې شی لیکن د دې د ذات په حیثیت سره نه بلکه په دې حیثیت سره چې لازم معنې سره د هغې ملزوم طرفته انتقال اوکړې شی لکه طویل النجاد

**قوله** : الا اعتدی واستبرئی رحمک وانت واحدة

لیکن اعتدی ، واستبرئی رحمک او انت واحدة درې الفاظ داسې دی چې د دائمی کیدو باوجود په دې سره طلاق رجعی واقع کیږی ځکه چې دې الفاظو کښې د طلاق لفظ تقدیراً موجود دې

مثلاً اعتدی کښې د الله تعالی د نعمتونو د شمارلو هم احتمال دې او د عدت نه د فارغ کیدو دپاره حیض لره د شمارلو هم احتمال دې چې هرکله یې د حیض نیت اوکړو نو طلاق رجعی به واقع شی ګویا که دهٔ د مسبب یعنی د عدت ذکر اوکړو او د دې نه یې مراد سبب یعنی طلاق وو عبارت دا دې چې انت طالق فاعتدی_

دغه شان واستبرئی کښې هم دا احتمال دې چې طلب د براة رحم کوی اولاد دپاره یا د دویمې نکاح دپاره چې هرکله یې د دویمې نکاح نیت اوکړو نو طلاق رجعی به واقع شی عبارت به دغه

شان وی چې انت طالق فاستبرئی رحمك
نو س پاتې شو انت واحدة نو دې کښې هم دا احتمال دې چې ته د جمال په اعتبار سره یا د مال په اعتبار سره جدا یې او دا هم احتمال دې انت طالق طلقة واحدة چې هر کله یې دا نیت اوکړو نو طلاق رجعی به واقع شی په دې وجه بعضې وائی چې که واحدة رفع سره اولوستې شی نو طلاق به نه واقع کیږی او که نصب سره اولوستې شی نو دې صورت کښې به ښځې ته طلاق واقع شی
• لیکن صحیح خبره دا ده چې په دې کښې د اعرابو هیڅ اعتبار نشته لهذا د حکم په اعتبار سره واحدة مرفوع او منصوب دواړه برابر دی

**قوله** والاصل فی الکلام الصریح ففی الکنایة ضرب قصور ویظهر هذا التفاوت فیما یدرء بالشبهات

او کلام کښې اصل صریح دې ځکه چې کنایه کښې څه نه څه نقص وی په دې وجه حدود په کنایه سره نه ثابتیږی نو که چا اووې چې جامعت فلاناً جماعاً نو حد د زنا به نه لازم کیږی دغه شان یو کس بل کس ته اووائی چې زنیت او هغهٔ جواب کښې اووې چې صدقت نو هم به د زنا حد نه واجبیږی ځکه چې په دې کښې د دې خبرې هم احتمال دې چې تا اول رشتیا اووې او اوس دروغ وائې او د دې خبرې هم احتمال دې چې ته څه وائې نو دا رښتیا دی، په خلاف د هغه صورت چې هغه په چا تهمت لګولې وی زنا سره او دویم اووې چې هغه دغه شان دې ځنګه چې تا اووې نو دې صورت کښې به حد لګولې شی ځکه چې د دهٔ د دې قول یعنی هو کما قلت مطلب دا

دي چې واقعی هغهٔ زنا کړې ده

ګویا که کنایه دلته باطله شوه او صریح جوړ شو لهذا صریح سره به حد قذف واجب شي

# تقسیم رابع

په دې تقسیم کښې ماتن رحمه الله لاندینی څلور قسمونه بیان فرمائیلي دی:

(۱) استدلال بعبارة النص (۲) استدلال باشارة النص

(۳) استدلال باقتضاء النص (۴) استدلال بدلالة النص

**قوله**: واما الاستدلال بعبارة النص

**(۱) استدلال بعبارة النص**:

**لغوی معنی**: د نص په عبارت سره استدلال کول

**اصطلاحی تعریف**: هوالعمل بظاهر ماسیق الکلام له

یعنی د نص په ظاهر باندې عمل کول

**د تعریف وضاحت**

صاحب نورالانوار رحمه الله دې مقام کښې د نص تعریف فرمائیلي دې، فرمائی چې نص د قران مجید د عبارت نوم دې او دا نص د اصطلاحی نه علاوه ظاهر مفسر او خاص وغیره ته هم شامل دې او داعموم فقهاء کښې معروف او مشهور دې تعریف کښې لفظ مذکور دې چې د دې نه مراد د مجتهد استنباط او استدلال کول دی یعنی هغه عمل مراد نه دې چې کوم د اعضاء او جوارحو فعل وی

**د نص او عبارة النص خپل مینځ کښې فرق کښې**

شارح فرمائی چې نص کښې سوق کلام (یعنی هم دغې مقصد دپاره کلام راوړل) شرط دی لیکن عبارة النص کښې د سوق کلام مقصود اصلی کیدل ضروری نه دی بلکه تعمیم ملحوظ دې خواه مقصود اصلی وی یا نه وی

یا مقصود اصلی نه کیدل هم عام دی خواه بالکل مقصود نه وی یا مقصود خو وی لیکن مقصود اصلی نه وی شارح د مثال په طور د قرآن پاک آیت کریمه نقل کړې دې د الله تعالی فرمان دې فانکحوا ما طاب لکم من النساء مثنی وثلث ورباع

د دې ایت د شان نزول نه معلومیږی چې د ایت کریمه مقصود عدد زوجات بیانول دی ځکه چې په زمانه جاهلیت کښې به د یو یو سړی په عقد کښې به درجنونو ښځې وی نو نبی علیه السلام عدد زوجات په څلورو کښې منحصر کړو د دې نه د زیاتو بیبیانو په عقد کښې لرل هرګز جائز نه دی . الغرض دا آیت کریمه په د ښځو په عدد ښودلو کښې نص دې اګرچه د ظاهر په طور سره د عبارت نه د نکاح ابحت (جواز) هم معلومیږی یعنی دا آیت کریمه په ابحت او جواز د نکاح کښې عبارة النص دې

**د عبارة النص مثال :**

د الله تعالی فرمان دې وعلی المولود له رزقهن وکسوتهن

صاحب نور الانوار فرمائی چې رزقهن کسوتهن کښې هن ضمیر راجع دې د الوالدات طرفته چې ماقبل کښې مذکور دې پوره آیت دا دې والوالدات یرضعن اولادهن حولین کاملین لمن اراد ان یتم

الرضاعة وعلى المولود له رزقهن وكسوتهن بالمعروف
شارح رحمه الله یو تفسیری نکته دا بیان کړې ده چې په والد باندې د والدې د نفقې او کسوه واجب کولو دوه وجې کیدې شي اوله وجه دا ده چې هغه د ده ښځه او منکوحه ده دا محتاج بیان نه ده ځکه چې په هره معاشره کښې هم خاوند د ښځې د نفقې ذمه دار وی لیکن که دویمه وجه مراد واخستې شي چې دا د ده مطلقه ده نو نفقه او کسوه به د هغه د اجرت په طور وی بهرحال دې دواړو طورتونو کښې د آیت کریمه مقصود په پلار باندې نفقه واجب کول دی لهذا دا په دې معنی کښې عبارة النص دې

**قوله** : **اما الاستدلال باشارة النص**

**اصطلاحی تعریف** :

فهو العمل بما ثبت بنظمه لغة لكنه غير مقصود ولا سيق له النص وليس بظاهر من كل وجه

یعنی د لغت په اعتبار سره د لفظ نه چې کوم مفهوم ثابت وی د هغې نه استدلال کول په دې طور سره چې هغه مقصود نه وی او نه کلام د هغې دپاره راوړلې شوې وی نه دا من جميع الوجوه ظاهر وی۔

**فوائد قیود** :

**بنظمه** : جنس دې چې په دې کښې اشارة النص سره سره عبارة النص هم شامل دې ځکه چې د اشارة النص په شان د عبارة النص تعلق هم د نص سره دې نو د داسې قیوداتو ضرورت دې چې د هغې په بناء باندې تعریف د اشارة النص دپاره جامع او د دې نه د ماسوا د دخول نه مانع شي.

(۱) **لغة** د دې قيد نه هغه معنى خارج شوه چې د اقتضاء النص په طور ثابتيږي ځکه چې هغه په اعتبار د لغت نه وی بلکه د دې مقتضی کله کله عقل وی

(۲) **لكنه غير مقصود ولا سيق له النص**

د دې قيد نه عبارة النص خارج شو ځکه چې هغه مقصود وی او کلام د دې مقصد دپاره راوړلې کيږی

د شارح رحمه الله خيال دې چې د ماتن قول **ليس بظاهر من كل** وجه قيد احترازی نه دې بلکه دا د ډير تاکيد فائده ورکوی بالفاظ ديګر د دې نه د اشارة النص وجه تسميه معلوميږی چې دې ته اشاره په دې وجه وئيلې کيږی چې دا ظاهر نه دې نه نص دې

**د عبارة النص او د اشارة النص حسی مثال**

شارح رحمه الله د دې حسی مثال دا ورکړې دې چې کله يو سړې بل سړی ته په غاير نظر او مکمل مقصد و ارادې سره ګوری دې سره سره د سترګو په ګوټ کښې هغه نبی او ګس طرفته نور څيزونه هم وينی اګرچه دا مقصود نه وی نو په قصد او ارادې کتل عبارة النص او بقيه اشارة النص دې

**د اشارة النص مثال**:

د الله تعالى فرمان دې وعلى المولود له رزقهن وكسوتهن

صاحب نورالانوار فرمائی چې المولود له کښې لام د اختصاص دپاره دې چې د دې نه معلومه شوه چې د بچو نسب به د هغهٔ د پلار د طرفه چليږي نه چې د مور د طرفه نو په دې امر کښې دا

آیت اشارة النص دي ۔

**قوله** : وهما سواء فی ایجاب الحکم الا ان لاول احق عنه التعارض ۔

د دي عبارت نه ماتن رحمه الله د عبارة النص او اشارة النص نه ثابت کیدونکی احکاماتو مشترک اثر (حکم) بیانوی چې دا دواړه په خپل مراد بآندې دلالت کولو کښې قطعی دی

**د فرق وجه** : دې دواړو کښې به فرق د تعارض په وخت وی چې کله د یو نص نه بطور عبارة النص یو حکم او بطور اشارة النص دویم حکم معلومیږی نو ترجیح به هغې حکم ته وی چې د **عبارة النص** نه ثابت وی ځکه چې عبارة النص د اشارة النص نه اولی او ادل علی النص دي

شارح رحمه الله : دې مثال بیان کړې دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ښځو متعلق فرمائیلي دی چې دوی د دین او عقل دواړو په اعتبار سره د سړو مقابله کښې ناقص دی چې هرکله صحابیاتو تپوس اوکړو چې مونږ کښې څه کمی ده ؟ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دې وضاحت اوفرمائیلو چې د هغې حاصل دا دې چې د عقل په اعتبار سره د نافص کیدو دلیل خو دا دې چې د دوی ګواهی د سړی د ګواهی په مقابله کښې نیمه وی ځکه چې دوه ښځې په ګواهی کښې د یو سړی د ګواهی برابر دی او د دین په اعتبار سره نقص دا دې چې ایام حیض کښې ښځې نه روژې نیولې شی او نه مونځ کولې شی

حدیث مبارک کښې لفظ د شطر وارد شوې دې چې د هغې معنی اصل لغت کښې نیمه ده او د میاشت نیمه پنځلس ورځې وی

نیکړه خبره ده چې دا عبارت د کوم مقصد دپاره راوړلې شوې دې
نو هغه د ښځو د ناقص الدين کيدو بيان دې ليکن د اشارې نه دا
هم معلوميږي چې د حيض اکثره مده پنځلس ورځې دی دې تکړې
نه حضرت امام شافعي رحمه الله استدلال کړې دې ليکن مونږ وايو چې
د دې تکړې نه د حيض اکثر پنځلس ورځې اخستل صحيح نه دی
ځکه چې د دې تعارض لازم راځی دارقطنی کښې مذکور د حضرت
ابوامامه باهلی رضی الله عنه روايت دې نبی عليه السلام فرمائی چې اقل
الحيض للجارية البكر والثيب ثلثة ايام ولياليهن واكثره عشرة ايام

## د تعارض وضاحت

د دې روايت نه معلوميږی چې د حيض د زيات نه زيات
مدت لس ورځې دی او د ماقبل نه وضاحت شوې دې چې پنځلس
ورځې دی دا روايت په دې معنی کښې عبارة النص دې او ماقبل
والا تکړه اشارة النص دې لهذا د تعارض دفع کولو دپاره به قوی ته
ترجيح ورکولې شی او قوی عبارة النص دې لهذا معلومه شوه چې
اکثر ورځې د حيض لس ورځې دی

**قوله** وللاشارة عموم كما للعبارة

ماتن رحمه الله فرمائی چې څنګه ثابت بعبارة النص کښې عموم
دې دغه شان ثابت باشارة النص کښې هم دې . د دې عبارت نه
غرض د ماتن رحمه الله دوه څيزونه دی (۱) عبارة النص کښې د عموم
اثبات (۲) اشارة النص کښې د عموم اثبات

**دليل:** علامه ملا جيون رحمه الله د دې دليل ذکر کړې دې چې د هغې
حاصل دا دې چې دا دواړه د نظم نه ثابتيږی او نظم کښې عموم او

خصوص دواړه مونډي کيږي لهذا دواړو نه ثابت شده احکامو کښې هم خصوص عموم او عام مخصوص منه البعض .

**د اشارة النص عام مخصوص منه البعض مثال**

الله تعالى شهداؤ ته د مقتول ( مړۀ ) وئيلو نه منع فرمائيلي ده ولا تقولوالمن يقتل فى سبيل الله امواتا د دې نه اشارة دا هم معلومه شوه چې په شهيدانو باندې به د جنازې مونځ نه شي کولې . ځکه چې هغه ژوندی دی ليکن د دې نه حضرت حمزه او نور شهداء خاص دي ځکه چې په هغوی باندې نبی کريم ﷺ د جنازې مونځ کړې دې -

**نکته** : دا مثال د شوافعو د مذهب مطابق دې ورنه د احنافو په نزد د شهيد د جنازې مونځ به کولې شي.

شارح رحمه الله د احنافو په مذهب باندې مثال پيش کړې دې چې دعلى المولودله نه معلومه شوه چې د اولاد په مال کښې پلار ته ملکيت حاصل دې ليکن د ځوی وينځه د دې حکم نه خاص ده ځکه چې پلار دپاره هغې سره وطی کول جائز نه دی

**قوله** : اما الثابت بدلالة النص

**د دلالة النص اصطلاحي تعريف**

**ماثبت بمعنى النص لغة لااجتهادا** يعنى هغه معنى چې د نص د معنې نه د لغت په ذريعې سره واضح شوې وی او د دې د پيژندلو دپاره د اجتهاد او استنباط ضرورت نه وی -

**فوائد قيود**

۱. **معنی** : د دې قيد نه اشارة النص او عبارة النص خارج شو چې د هغې تعلق نظم سره دې

**لغـة** : دا دويم فصل دې چې د دې نه اقتضاء النص او محذوف خارج شو ځکه چې د اول تعلق شرع سره او د ثاني تعلق عقل سره دی لاجتهاداً مستقل قيد نه دې بلکه د لغة مزيد تاکيد دې

**د امام رازي رحمه الله زعم او د هغې بطلان**

امام رازي رحمه الله او يو څو نور اهل علم قياس او دلالة النص يو شی ګنړی دا خبره باطله ده ځکه چې کوم حکم قياس نه معلومیږی هغه ظني وی او کوم چې په دلالة النص سره ثابت دی نو هغه قطعي احکام دی دويمه وجه د فرق دا ده چې د قياس منکرين موجود دی ليکن د دلالة النص نه څوک منکر نشته.

**د ماتن رحمه الله بيان کړې شوې د دلالة النص مثال**

د الله تعالى فرمان دې ولاتقل لهما اف ولاتنهرهما يعنی د والدينو مخکښې اف قدرې مه کوئ ماتن رحمه الله فرمائی چې د اف کولو نه نهی موقوف ده په حرمت دضرب باندې دا تسامح ده بلکه دا وئيل پکار وو چې اف کولو سره په نهی باندې دضرب د حرمت توقف دې تفصيل دا دې چې د الله تعالى د فرمان د معنی مقصود نهی عن تافيف الابوين دې چې بطور عبارة النص مستفاد دې چې د دې لازمی معنی والدين ته رنج او ذهنی تکليف رسول دی او هم د دې معنی التناهی نه د ضرب ابوين حرمت هم ثابتيږی دغه شان

دوی نه کنځل وغیره کول دا بطور دلالة النص دی چې هرکله د درد و غم ادنی ترین درجه تافیف حرام دې نو د دې اعلی درجه یعنی وهل ټکول وغیره خو به په طریقه اولی حرام وی

**قوله: والثابت به کالثابت بالاشارة الا عند التعارُض**

دلالة النص هم د ماقبل دواړو قسمونو په شان قطعی الحکم دې البته د تعارض په وخت به دې باندې اشارة النص ته ترجیح حاصل وی شارح رحمه الله د تعارض مثال دا آیت پیش کړې دې من قتل مؤمنا خطأ فتحریر رقبة مؤمنة یعنی که یو کس بل مسلمان لره په غلطی سره قتل کړی نو په دهٔ باندې د کفار په طور یو مؤمن غلام آزادول واجب دی۔

**د تعارض وضاحت**

د عبارة اُلنص نه د قتل خطاء کفاره ثابته شوه او د دلالة النص په طور دا هم واضحیږی چې کوم سړې قصداً یو مسلمان قتل کړی نو په هغهٔ باندې هم کفاره راتلل پکار دی ځکه چې د هغهٔ جرم د خاطی نه ډیر زیات دې او چې هرکله په ادنی باندې کفاره ده نو په اعلی باندې خو په طریقه اولی کفاره کیدل پکار دی د دې نه استدلال کولو سره حضرت امام شافعی رحمه الله قتل عمد کښې هم د کفارې د وجوب قول فرمائیلې دې لیکن د احنافو په نزد قتل عمد کښې صرف قصاص دې یا دیت نه چې کفارهٔ چې د هغې وجه دا ده چې د دې حکم ( دلالة النص ) تعارض دویم آیت سره کیږی چې په هغې کښې د الله تعالی پاک ارشاد دې ومن یقتل مؤمناً متعمداً

**(١) عمداً روژه فاسد كوونكي باندې د كفارې لازم كيدل**

يو اعرابي صحابي د نبي عليه السلام په خدمت اقدس كښې حاضر شو او عرض يې اوكړو چې ما په رمضان المبارك كښې د ورځې او په خپلې ارادې او قصد سره خپلې بي بي سره كوروالې كړې دې نو نبي عليه السلام پرې كفاره لازم كړه ښكاره خبره ده چې په مذكوره صحابي باندې د كفارې ثابتول د عبارة النص نه ده ليكن د دې باعث د رمضان المبارك روژه د ورځې په حالت كښې ماتول دي لهذا دا علت چې چا كښې هم اوموندې شي نو د دلالة النص په طور به پرې كفاره لازميږي بلكه هم په دې واقعه كښې د اعرابي په ښځه باندې كفاره هم د دې قبيل نه ده كه يو سړې په رمضان المبارك كښې د ورځې قصداً جماع اونكړي بلكه خوراك څكاك اوكړي نو په هغهٔ به هم دا حكم جاري كيږي ـ

**د امام شافعي رحمه الله اختلاف** :

امام شافعي رحمه الله وجوب كفاره صرف د هغې سړي سره خاص كوي چې چا عمداً د رمضان المبارك په ورځ كښې جماع كړې وي لهذا د امام شافعي رحمه الله په نزد په قصداً عمداً خوراك څكاك كوونكي باندې كفاره نشته

**دليل** هغوی فرمائي چې نص سره د دې كفارې جماع سره خصوصيت معلوميږي لهذا حكم به جماع كښې محصور وي او د دې نه علاوه به د روژې فساد د عمد نورو صورتونو ته نهٔ شامليږي

**نكته** : د دلالة النص دا تعريف كړې شوې دې چې كوم لفظ صرف اوريدو سره هر ماهر لغت ته معلوم شي او مخفي نه وي د حضرت

امام شافعي رحمه الله د دلالت النص نه انکار کولو بآندې علماء اصول وائي چې ان مثال هذه الاحکام فی الدلالة لایحسن د شارح هم دا خيال دې چې د دې شان مثالونو اثبات په قياس سره کول پکار دی

**قوله: والثابت به لا يحتمل التخصيص لانه لا عموم له الخ**

د دې عبارت نه صاحب کتاب رحمه الله د دلالة النص نه ثابتيدونکی احکاماتو متعلق د تخصيص نفی بيانوی چې دا سې احکاماتو کښې د تخصيص احتمال نه وی۔

**د تخصيص د عدم احتمال وجه**

چې کوم څيز کښې عموم وی نو هغې کښې د تخصيص قبلولو صلاحيت وی او دلالة النص کښې عموم نه وی لهذا دې کښې د تخصيص احتمال هم نۀ موندې کيږی۔

**دلالة النص کښې عموم ولې نه وی**

شارح علام رحمه الله د دې امر تشريح کولو کښې فرمائی چې د عموم او خصوص تعلق د الفاظو سره وی او د دلالة النص نه ثابتيدونکی احکامات معنی موضوع ته لازم وی نه چې الفاظو ته لهذا دې کښې عموم نۀ موندې کيږی لانه من عوارض اللفظ لا المعنی

**دويمه وجه:**

شارح رحمه الله د عدم عموم دويمه وجه دا بيان فرمائيلي ده چې د دلالة النص مدار په علت باندې دې او په دې کښې د غير علت احتمال نۀ شی کيدې لهذا په دې کښې به د تخصيص احتمال هم نه وی۔

**مثال سره وضاحت**:

الله تعالی د والدینو متعلق اولاد ته حکم کړې دې فلاتقل لهما اُف ولاتنهرهما او د دلالة النص نه ثابتیږي چې والدین وهل تکول یا کنځل یا بدرد ویل حرام دی ځکه چې په دې کښې د اذیت او تکلیف اعلی درجه موندې کیږي چې د تافیف د حرمت علت دې اوس چرته چې د والدینو د اذیت دا علت موندې کیږي نو هلته به حرمت ضرور وي ورنه علت او معلول کښې به تخالف لازم راشي چې جائز نه دې شارح رحمه الله فرمائی چې دې لزوم ته عموم ځکه نه وئیلې کیږي چې عموم د عوارض الفاظو نه دې او دلته په عموم باندې دلالت کوونکې هیڅ یو لفظ نه موندې کیږي۔

**قوله** اما الثابت باقتضاء النص فما لا يعمل النص الا بشرط تقدمه الخ ۔

**(۴) استدلال باقتضاء النص**

**لغوي معنی** چې د کوم څیز نص تقاضه اوکړي دغې مقتضاء نص ته دلیل نیول

**اصطلاحي تعریف**: لايعمل النص الابشرط تقدمه

**یو څو ضروري اصطلاحات**

(۱) **اقتضاء** تقاضه کول (معنی مصدري)

(۲) **مقتضی** تقاضه کوونکې (اسم فاعل)

(۳) **مقتضی** چې مقتضا د کوم معنی یا حکم تقاضه اوکړه

**د عبارت حل** : صاحب کتاب دې ځایې کښې لږ مغلق او مشکل عبارت راوړلې دې چې د وضاحت محتاج دې او شارح علام رحمه الله د دې په وضاحت کولو کښې دوه توجیهات بیان کړې دی چې کتاب کښې شرح و بسط سره مذکور دی

**وړومبی توجیه** : د دې توجیه مطابق صاحب کتاب رحمه الله د مقتضا تعریف کړې دې فرمائی : مقتضا هغه ده چې د هغې نص تقاضه د هغې ځیز د صحیح کیدو دپاره اوکړه چې هغې ته نص شامل دې ، عبارت کښې اقتضاء مصدر په خپله معنی کښې مستعمل دې او د ماتن قول مقتضا په معنی د اقتضاء دې د دې عبارت حاصل او خلاصه دا ده چې دلته صرف د مقتضا تعریف شوې دې او د هغې حکم تعریف نه دې شوې چې د متقضا نه ثابت دې الغرض مصنف رحمه الله خپل اسلوب بدل کړې دی، او په ځایې د اقتضاء النص نه د ثابتیدونکی حکم تعریف یې صرف د مقتضا تعریف کړې دې او ماقبل کښې به یې د حکم تعریف کولو ـ

**دویمه توجیه** : دې صورت کښې د ماتن رحمه الله عبارت د هغې حکم تعریف دې چې د مقتضاء نص نه مستفاد کیږی هغه حکم چې د نص د مقتضا نه ثابتیږی په هغې کښې نص صرف په یو شرط عمل کوی هغه دا چې شرط یعنی مقتضا ( چې نص د هغې د خپل مفهوم د صحت دپاره تقاضه کړې ده ) نص نه مقدم وی

**قوله** : وعلامته ان یصح به المذکور ولا یلغی عند ظهوره الخ

**د مقتضا او محذوف فرق**

ماتن رحمه الله د تولو نه مخکښې د مقتضا علامت په مثال سره

واضح کړې دې چې د هغې حاصل دا دې

**د مقتضا علامت**. مقتضا که څه وخت عبارت کښې ظاهر هم کړې شي نو د هغې په ظهور سره عبارت کښې هيڅ قسم تغير نه واقع کيږي

**مثال سره وضاحت**: د قائل دا قول: ان اکلت فعبدی حر په طريق اقتضاء النص طعاماً د مقتضا تقاضه کوی که دا عبارت کښې ظاهر کړې شي او دغه شان اووئيلې شي ان اکلت الطعام فعبدی حر نو بيا هم حکم کښې هيڅ قسم تبديلي رانغله

د دې نه د مقتضا او محذوف فرق هم معلوم شو چې مقتضا که عبارت کښې ظاهر هم کړې شي نو عبارت کښې هيڅ قسم فرق نه راځي او که محذوف ظاهر کړې شي نو عبارت کښې نه صرف د ترکيب په اعتبار سره بلکه د مقصد او مراد په اعتبار سره هم تبديلي واقع کيږي لکه د دې مثال نه چې څنګه سمجهـ ته راځي

**مثال سره د محذوف وضاحت**

د الله تعالى قول دې واسئل القرية، که مونږ محذوف (اهل) ظاهر کړو او دغه شان اووايو واسئل اهل القرية نو اوګورئ عبارت کښې په دواړو اعتبارو سره فرق واقع شو چې د هغې وضاحت لاندې ذکر کړې کيږي

**معنوی تغير**.

اولنې سوال د کلي نه د کولو حکم وو اوس د کلي د اوسيدونکو نه دې يعنى مضاف ظاهر کولو سره مسئول عنه تبديل شو.

**ترکیبی ، لفظی ، تغیر** : اول په لفظ قریة باندې د واسئل فعل امر د مفعول واقع کیدو په وجه باندې نصب وو اوس چونکه دا اهل د مفعول به دپاره مضاف واقع کیږی لهذا مجرور به وی

**د کلام خلاصه** : مقتضا او محذوف کښې لاندینې فرق دې

**مقتضا** : (۱) مقتضا ظاهر کولو سره عبارت کښې معنوی او ترکیبی اعتبار سره هیڅ فرق نه واقع کیږی

(۲) د مقتضا تعلق شریعت سره یا عقل سره وی او د دې لغت سره هیڅ تعلق نه وی

(۳) مقتضا عبارت لره شرعاً یا عقلاً بامعنی جوړولو دپاره راؤړلې کیږی

**محذوف** : (۱) محذوف ظاهر کولو سره عبارت کښې دواړه قسم تبدیلی واقع کیږی

(۲) د محذوف تعلق لغت سره وی

(۳) محذوف عبارت کښې د اختصار دپاره منلې کیږی

**قوله**:والثابت منه كالثابت بدلالة النص الا عند المعارضه الخ

**د عبارت تشریح** : د دې عبارت نه دوه فائدې حاصلیږی

(۱) الثابت بالاقتضاء النص د مقتضا مثال

(۲) د تعارض په وخت د دلالة النص په وجه ترجیح

مونږ به اختصاراً سره ترتیب وار دواړه ذکر کوو

**(۱) د الثابت بالاقتضاء النص مثال**

قال الله تعالى فى الكفارات فتحرير رقبة: لفظ د عموم

تقاضه دا ده چې د رقبه لفظ رقبه مملوکه او غیر مملوکه تولو ته شامل وی لیکن دا خبره شرعاً او عقلاً ناجائز ده چې د غیر د غلام په ذریعې سره کفاره ادا شی لهذا د اقتضاء النص په طریقې باندې رقبه سره د مملوک قید لګول ضروری دی

## ۲. د تعارض په وخت د دلالة النص وجه د ترجیح

څنګه چې دلالة النص په ایجاب حکم کښې مفید دې دغه شان اقتضاء النص هم دې لیکن که یو حکم دلالة النص سره ثابت وی او د هغې برعکس حکم اقتضاء النص سره ثابت وی یعنی د دواړو خیلو کښې تعارض وی نو هغې حکم ته به ترجیح ورکولې شی چې دلالة النص سره ثابت وی ځکه چې دا ډیر زیات قوی دې والاقوی راجح عند التعارض

## د مذکوره قاعدې مثال سره وضاحت

د ناپاکه کپړو د طهارت متعلق نبی کریم ﷺ حضرت بی بی عائشې صدیقې رضی الله عنها ته اوفرمائیل حتیه ثم اقرصیه ثم اغسلیه بالماء اول یې اومږد بیا یې اوګروه بیا یې اوبو سره وینځه، د دې حدیث نه بطریق اقتضاء النص دا خبره ثابته شوه چې د طهارت د پاره په اوبو سره وینځل شرط دی ورنه ناپاک څیز به نۀ پاکیږی لیکن دلالة النص نه معلومیږی چې د اوبو په شان نور مائعات هم د پاکۍ د پاره مفید دی

د تعارض حل دا دې چې پاکی اوبو سره خاص نه ده بلکه هر پاک بهیدونکې څیز د دې د پاره مفید دې

هذا ترجیح حکم الدلالة علی الاقتضاء لان الدلالة اقوی

**قوله** : ولا عموم له عندنا لان العموم والخصوص الخ

**د عبارت حل** : صاحب کتاب رحمه الله د دې ځايي نه دا خبره بيانوي چې کوم حکم د اقتضاء النص په طريقې سره ثابت شوې وی په هغې کښې عموم نه وی دا يو اختلافی مسئله ده

**د احنافو مذهب** : د اقتضاء النص حکم (متقضی) کښې عموم نه وی احناف په مقتضا کښې د عدم عموم قائل دی

**د احنافو دليل** : عموم او خصوص د الفاظو د عوارضو نه دی او مقتضی د معنې د قبيل نه ده

**د شوافعو مذهب** : د شوافع د اهل اصول په نزد مقتضی کښې عموم شته

**د شوافعو دليل** : شوافع مقتضی لره د محذوف په شان ګنړی چې ملفوظ وی لهذا مقتضی به هم د الفاظو د قبيل نه وی او په دې کښې به عموم و خضوص جاری کيږی

**قوله** : هذا اصل کبير مختلف الخ

ماتن رحمه الله فرمائی چې المحذوف کالمذکور د شوافعو په نزد يو مسلمه اصول دی چې د هغې مونږ منکر يو په دې اصل کبير بآندې زمونږ اودهغوی درميان کښې په مختلفو مسائلو کښې اختلافات دی

**قوله** : ولا يقال ان قوله اعتق عليک عنی

دا عبارت د احنافو په مذهب باندې د يو وارديدونکی اعتراض جواب دې ۔

**د اعتراض تقریر** تاسو خو یو طرفته وایئ چې مقتضی کښې عموم نه وی او حال دا دې چې په دې مثال کښې تاسو په خپله په مقتضی کښې عموم منلو سره د خپل مذهب نه انحراف کړې دې مثال دا دې چې قائل اووې اعتق عبدك عنی په دې کښې د اقتضاء په طور بیع منل ضروری دی لهذا په دې کښې عموم نهٔ کیدل پکار دی حالانکه تاسو هم وایئ چې د دهٔ قول د ټولو غلامانو بیع ته شامل دې۔

**جواب** تاسو ته غلط فهمی شوې ده مونږ چې دې مسئله کښې د ټولو غلامانو د بیع قول کوو هغه په مقتضی کښې د عموم منلو په وجه سره نه کوو بلکه دا کلام د دې کلام په معنی کښې دې بع عبدك عنی ثم کن وکیلی بالاعتاق او دلته د عبدک لفظ عبارت کښې صراحت مذکور دې د دې د عموم په وجه مونږ وایو چې دا قول د ټولو غلامانو بیع ته شامل دې لهذا ستاسو دا خبره بې بنیاده ده چې مونږ مقتضی عام منلې دې

## مقتضی کښې عموم او عدم عموم

## منلو باندې د مختلفو مسائلو تفریع

**قوله** حتی اذا قال ان اکلت فعبدی حر ونوی الخ

تاسو مخکښې په دې خبره باندې دلائلو سره پوهه شوې یئ چې د احنافو په نزد مقتضی کښې عموم و خصوص نه جاری کیږی او شوافع حضرات د دې قائل دی او س صاحب کتاب رحمه الله د فقهی مسئلو په رڼا کښې بطور تفریع هم د دې اصولو وضاحت کوی۔

**(١) رومبی تفریع : د فقهي مسئلې صورت :**

یو سړی اووي ان اكلت فعبدی حر نبکاره خبره ده چې د دهٔ کلام به هغه وخت صحیح وی چې کله بطور اقتضاء لفظ د طعاماً مقدر او منلي شی او س که دې وائی چې ما په دې سره د خاص قسم نیت کړې دې مثلاً ان اكلت اللحم فعبدی حر نور خوراکونه زما مراد نه دی نو د داسې سړی تصدیق به کولې شی یا نهٔ ؟

قضاءً خو به بالاتفاق د دهٔ د نیت اعتبار نه شی کولې ځکه چې دا د خلاف ظاهر نیت دې او قاضی (شرع) یعنی د ظاهر مکلف دې

**د احنافو په نزد به دیانة هم د دهٔ نیت معتبر نه وی :**

احناف وائی چې دیانةً د دهٔ نیت ځکه صحیح نه دې چې د دهٔ په کلام کښې لفظ د طعاماً مذکور نه دې بلکه دا د اکل اقتضاء نه مستفاد دې ځکه چې خوراک بغیر د طعام نه ممکن نهٔ دې او مقتضی کښې عموم نه وی نه خصوص . په دې وجه دې چې کوم قسم خوراک هم او کړی نو حانث به ګرځی اګرچه نیت د طعام بغیر د طعام نه ولې اونکړی وجه دا ده چې هر کله طعام مقتضی کښې عموم نشته نو دا به قابل تخصیص هم نه وی

**قوله** : واما حنثه بكل طعام الخ

صاحب نورالانوار د شیخ احمد رحمه الله یو اعتراض ختموی

**اعتراض** : چې هر کله تاسو وایئ چې دې صورت کښې طعام کښې عموم نشته نو هر قسم خوراک کولو سره حانث کیدل پکار نهٔ دی

**جواب** : هر قسم خوراک کولو په وجه د دهٔ حنث ځکه نشته چې

مونږ طعام کښې عموم منلې دې بلکه په دې بناء بآندې دې چې ماهيت د اکل په هر قسم خوراک کښې موجود دې

**د شوافعو په نزد د خاص طعام نيت ديانةً صحيح دې**

د شوافع حضراتو وينا ده چې کۀ دۀ صرف طعام سره صرف د غوښې خوړلو په صورت کښې د ترتب د جزاء نيت کړې وو او د غوښې نه علاوه يې خوراک کړې دې نو دې به ديانةً نه حانث کيږی

**د شوافعو دليل** : د هغوی په نزد مقتضی د محذوف په شان او محذوف د مذکور په شان دې دلته نکره يعنی طعام تحت الشرط واقع دې او داسې صورتونو کښې نکره عام وی لهذا طعام کښې عموم دې او د تخصيص نيت هم صحيح دې

**قوله** : وان قال ان اکلت طعاما او اکل الخ

شارح ﷫ د دې مثالونو په ذريعې سره دا بيانول غواړی چې په مذکور کښې عموم او خصوص بالاتفاق جاری کيږی د مثال په طور يو سړی دغه شان اووې چې ان اکلت طعاماً فعبدی حر يا يې دغه شان اووې چې لااکل اکلاً والاعبدی حر

کۀ دې دواړو صورتونو کښې يې نيت اونکړو نو هرقسم خوراک کولو سره به حانث شی ځکه چې اولنی مثال کښې طعاماً او دويم مثال کښې اکلا مذکور دې چې په دې کښې د نکره کيدو په وجه سره عموم دې او کۀ د څه خاص قسم خوراک نيت اوکړی نو په دويم قسم خوراک کولو سره به نۀ قضاءً حانث کيږی او نه به ديانةً ځکه چې د عام تخصيص جائز دې د نيت نه مخکښې طعام او اکل عام وو او اوس خاص شو۔

**قوله** : ولكن ايراد هذا المثال الخ

شارح رحمه الله فرمائی بعضې اهل اصولو د مقتضی دپاره د شرعی کیدو قید لګولې دې د هغوی په مذهب بآندې دا مثال څکه صحیح نه دې چې دا عقلی دې وړاندې یې د غوره مذهب وضاحت په دې الفاظو کښې کړې دې

**قوله** : والاولی ان یقال الخ

صحیح هم دا ده چې مقتضی څنګه شرعی کیدې شی نو دغه شان عقلی هم کیدې شی البته محذوف هر صورت کښې لغوی وی

**قوله**: وکذا اذا قال انت طالق او طلقتک ونوی ثلثا لا یصح الخ

(۲) **دویمه تفریع** :

**د مسئلې صورت** : یو سړی خپلې ښځې ته په دې الفاظو سره طلاق ورکړو انت طالق یاطلقتک اوس که دا سړې د دریو طلاقو نیت اوکړی نو د احنافو په نزد دا نیت صحیح نه دې لهذا ښځې ته به درې طلاقه نه واقع کیږی

**د احنافو دلیل** : شارح رحمه الله د احنافو دا دلیل ذکر کړې دې چې د خاوند دواړه قولونه انت طالق اوطلقتك خبر دی او خبر تقاضه کوی د خبر نه مخکښې د مخبر عنه (د کوم څیز چې خبر ورکولې شی یعنی دلته مراد طلاق دې) موجود وی لهذا د خاوندهغه وخت بامعنی کیدې شی چې کله د دې نه مخکښې طلاق موجود اومنلې شی اګرچه دۀ حقیقة د دې نه مخکښې طلاق نه دې ورکړې لیکن د یو عاقل بالغ مسلمان داسې کلام چې د عربیت په اعتبار سره

صحیح وی : لغو گرځولو نه غوره خبره دا ده چې د دې نه وړاندې بطور اقتضاء طلاق فرض کړې شی ګویا خاوند داسې وئیلي دی انت طالق لانی طلقتك قبل هذاالغرض دې دواړو کلامونو کښې د دړې نیت ځکه نه صحیح کیږی چې مونږ په مقتضی کښې د عموم قائل نه یو.

**د شوافعو مذهب:**

د شوافعو په نزد دغه شان کلام کښې د دواؤ یا دریو طلاقو نیت کول صحیح دی لهذا د دې د نیت اعتبار به کولې شی

**د شوافعو دلیل:** دا دواړه کلامونه په طلاق باندې دلالت کوی او د تطلیق ثبوت د مقتضی په طور وی چې په هغې کښې د عموم او خصوص دواړو اجراء جائز ده

**قوله بخلاف قوله طلقی نفسک او انت بائن الخ**

**د عبارت تشریح:** دې عبارت کښې د احترازی مثال په طور ذکر کړې دی چې که خاوند **انت طالق** یا **طلقتك** په ځایې دې الفاظو سره طلاق ورکړی (۱) طلقی نفسك (۲) انت بائن او د دریو طلاقو نیت اوکړی نو دا بالاتفاق جائز دی البته د دواړو مسئلو دلیلونه مختلف دی اګرچه حکم یو دی

**(۱) د طلقی نفسك په صورت کښې د اعتبار د نیت تخریج**

د ماقبل والا صورتونو برعکس دا کلام خبر نه دې بلکه تفویض دې او په دې کښې طلاق (مصدر) مقتضی نه دې بلکه دا دلالت د لغت په اعتبار سره دې او د مصدر یو فرد حقیقی وی نیز

په دي کښې د فرد حکمي هم احتمال وي او د نیت نه پس فرد حکمي مراد اخستل صحیح دي لهذا د دريو طلاقو نیت کول صحیح دي ځکه چې دا د طلاق (مصدر) فرد حکمي دې۔

**(۲) د انت بائن په صورت کښې د اعتبار د نیت تخریج**

شارح رحمه الله فرمائی چې د بائن لفظ نه چې بینونة مستفاد دې د دې دوه قسمونه دی (۱) بینونت خفیفه (یعنی یو طلاق) او (۲) بینونت غلیظه (یعنی دري طلاقه لهذا د دريو طلاقو (بینونت غلیظه) نیت د احد الاحتمالین نیت دې لهذا صحیح دې

**نکته**: بعضې علماؤ د ماتن رحمه الله د قول علی اختلاف التخریج نه دا مراد اخستلې دې چې د دې مسائلو په دلائلو کښې د احنافو او شوافعو تخریج مختلف دې، دې صورت کښې د احنافو تخریج خو مذکور شو او د شوافعو د تخریج حاصل دا دې چې د هغوی په نزد دامثالونه هم دمقتضی د قبیل نه دی لهذا دې کښې عموم خصوص جاری کیدې شی او د دريو نیت گویا د عموم نیت دې۔

**د وجوه فاسده بیان**

**قوله**: **ثم لما کانت تمسکات ابی حنیفة الخ**

مصنف رحمه الله فرمائی چې د حضرت امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په نزد خو استدلال هم د دې څلورو قسمونو نه وی چې مفصل بیان شو البته بعض حضرات بالخصوص د شوافعو په نزد نور هم دلائل دی چې په دې ارادې سره ذکر کولې شی چې د هغې تحقیق اوکړې شی او د هغې کمزوری او فساد دلائلو سره ثابت کړې شی۔

**قوله** فصل : التنصيص على الشئ باسمه العلم يدل على الخصوص الخ

د يو څيز د هغې د علم سره صراحت د تخصيص فائده ورکوی.

د دې ځايی نه د تمسکات ضعيفه فاسده د اولنی وجه فاسد بيان دې چې د هغې خلاصه داده چې د بعضې اشاعره او حنابله قاعده دا ده چې که د يو څيز علم (هر هغه لفظ چې په ذات باندې دلالت کوی خواه علم وی يا اسم جنس) سره بالتصريح ذکر کړې شی نو دا هغې په تخصيص باندې دلالت کوی چې دا حکم د دې اسم علم سره خاص دې او د دې نه علاوه کښې به نۀ موندې کيږی

**قوله** : كقوله النبى ﷺ الماء من الماء الخ

**د وجه فاسد د مثال په ذريعې سره وضاحت**

د نبی کريم ﷺ ارشاد مبارک دې الماء من الماء په دې کښې د اولنی ماء نه مراد غسل او د دويم ماء نه مراد منی ده دلته اسم علم (الماء ثانی يعنی د منی خروج) باندې د غسل حکم صراحتاً لګولې شوې دې لهذا انصار صحابه کرام رضی الله عنهم د تخصيص په اصول باندې صرف د منی د خروج په صورت کښې د غسل د وجوب قائل وو لهذا هغوی د اکسال (اخراج الذکر قبل الانزال) په صورت کښې د غسل قائل نه وو ، د مذکوره قاعدې قائلين د انصارو د دې طرز نه استدلال کوی چې که تنصيص على الشئ باسمه العلم نه د تخصيص فائده نه حاصليده نو انصار صحابه کرام رضی الله عنهم چې اهل زبان وو دا حکم ولې لګولو ۔

**د وجه فاسد د فساد اولنی وجه**

که دا قاعده اومنلې شي نو د کلمه طيبې دويم جزء محمد رسول الله نه به نعوذ بالله کذب بلکه کفر لازم راشي ځکه چې دلته هم حکم رسالت په اسم علم باندې لګولې شوې دې نو معنی به دا وی چې د محمد ﷺ نه علاوه بل هيڅوک د رسالت په اعلی منصب باندې فائز نه دي دا سراسر دروغ او کفر دې ځکه چې الله تعالی په سوونو رسولان راليږلې دی او په ټولو باندې ايمان راوړل د ايمان شرط دې آمنت بالله وملائكته وكتبه ورسله الخ لهذا دې حکم لګيدو سره به د قاعدې نفی نهٔ کيږی خواه (۱) دا حکم د يو عدد سره مقترن وی مثلاً دا حديث مبارک :

خمس من الفواسق يقتلن في الحل والحرام الحداة والفأرة والكلب العقور والحية والعقرب

**نکته** : بعضې حضرات دې صورت کښې د ماعدا د نفی قول نقل کوی د هغوی وينا ده چې که د خمس نه د ماعدا نفی مراد نه کړې شي نو د عدد به هيڅ فائده پاتې نه شي احنافو د دې دا جواب ورکړې دې چې د عدد په ذکر کولو سره مختلف مقاصد وی دلته د دې مقصود زيادت اهتمام دې لهذا دا د عدد په نفی باندې دلالت نه کولو باوجود مفيد دې

(۲) يا به حکم عدد سره مقترن نهٔ وی لکه د متن والا مثال الماء من الماء (الحديث)

**قوله** : لكن افتى المتاخرون الخ

دې عبارت سره شارح رحمه الله د يو اعتراض جواب ورکوی

**اعتراض** ستاسو دا وينا تنصيص على الشئ باسمه العلم په نفي د ماعدا باندي دلالت نه كوي څنګه صحيح كيدي شي حالانكه دا قاعده په فقهي رواياتو كښي جاري كيږي

**جواب** : د متاخرين علماؤ فتوى په دي خبره ده چي په روايات فقهي كښي خو به دا قاعده جاري كيږي ليكن نصوص شرعيه كښي به نه جاري كيږي مثلاً صاحب هدايه د غدير عظيم تعريف دا كړي دي چي د هغي يو طرفته حركت وركولو سره دويم طرف كښي حركت محسوس نه شي وراندي فرمائي جاز الوضوء من الجانب الاخر (يعني چي كوم جانب كښي نجاست نه دي پريوتلي نو د هغي طرفنه اودس كول صحيح دي) ددي نه هم دا معلوميږي چي كوم طرف كښي نجاست لګيدلي دي نو د هغي طرفنه اودس كول صحيح نه دي.

**قوله** . لان النص لم يتناوله فكيف الخ

**د احنافو دليل**

چي هركله د نص نه صرف هم يو حكم معلوميږي نو څنګه غير منصوص ثابتيدي شي ځكه چي كه نص د اثبات متعلق دي نو نفي غيرمنصوص ده او نفي صرف منصوص حكم ته شامل وي نه چي غير منصوص ته ـ

**مثال سره وضاحت**

شارح رحمه الله فرماني چي كۀ څوک اووائي جاءني زيد نو دا كلام صرف د زيد په راتګ باندي دلالت كوي پاتي شو د عمرو راتلل يا نۀ راتلل نو دا د هغۀ متعلق ساكت دي د غه شان الماء من

الماء: منی په اخراج بآندې وجوب غسل باندې خو نص دې پاتې شو اکسال سره وجوب یا عدم وجوب غسل نو د هغې متعلق دا ساکت دې او په اکسال باندې غسل لازم کیدل د بل حدیث شریف نه معلومیږی ـ

اذا جاوز الختان الختان فقد وجب الغسل انزل اولم ینزل د غه شان خمس من الفواسق الخ نه د دې نه علاوه څناورو حکم نه معلومیږی

**قوله** : **وفائدة التخصيص الخ**

**اعتراض** : چې هرکله د اسم علم صراحت د ماعدا په نفی کښې مفید نه دې نو د دې د صراحت څۀ فائده ؟

**جواب** : د دې د صراحت فائده دا ده چې اهل اجتهاد و استنباط په نورو موقعو باندې په دې صراحت باندې غوروفکر کولو سره د قیاس په ذریعه حکم اولګوی چې هغوی د مجتهد اعلی مقام حاصل شی آیا دا فائده لږه ده !

**قوله** : **والاستدلال منهم بحرف الاستغراق الخ**

## انصارو د تخصیص قول ولې اختیار کړو

مصنف رحمه الله د قائلین تخصیص په جواب کښې فرمائی چې د انصار صحابه کرامو رضی الله عنهم د تخصیص وجه دا نۀ وه چې کومه ستاسو په ذهن کښې ده بلکه هغوی حدیث کښې په دوارو ځایونو کښې الماء باندې د داخل شوي لام تعریف پیش نظر دا قول کړې وو ځکه چې د استغراق هم دا تقاضه ده چې غسل دې د منی په تمام افراد خروج باندې واجب وی چې د هغې بداهةً هم دا مطلب

دې چې که: خروج منی تحقق نه وی چې څنګه اکسال کښې دې نو غسل به هم واجب نه وی۔

ويردعلينا أحينئذ فمن اين قلتم الخ

**اعتراض**: معلومه شوه چې د انصارو استدلال د لام استغراق نه وو نو ځکه خو د حدیث نه معلومه شوه چې د اکسال په صورت کښې غسل نه واجبیږی چې هرکله داسې ده نو احناف د اکسال په صورت کښې د غسل حکم ولې کوی؟

**جواب**: مونږ هم منو چې د وجوب غسل تعلق د منی د خروج سره دې البته د کومو افرادو تعلق چې د شهوت سره دې نو هغه په دې کښې داخل دی لکه اکسال۔

**اعتراض**: دغه شان خو د حیض و نفاس نه پس واجبیدونکې غسل به ستاسو د دې تعریف نه خارج شی ځکه چې هغه شهوت (منی) سره متعلق نه وی۔

**جواب**: که د حدیث نه د حیض او نفاس نه پس والا غسل واجب خارج وی نو هیڅ حرج نشته ځکه چې د هغې تعلق د شهوت سره نۀ دې

**قوله**: لكن الماء على نوعين الخ

## د اکسال په وجه د وجوب غسل وجه

شارح ﷫ د مصنف ﷫ د دې قول مزید وضاحت کوی چې هرکله د غسل تمام افراد خروج منی کښې منحصر دی نو اکسال په دې افرادو کښې څنګه شمار کړې شوې دې حالانکه اکسال کښې خروج منی نۀ مونده کیږی نو فرمائی چې د احنافو په نزد د خروج

په اعتبار سره د منی دوه قسمونه دی

(۱) **عیاناً** چې د هغې خروج ظاهر او محسوس وی

(۲) **دلالة** : د منی خروج ظاهر او محسوس طور بآندې نهٔ وی لیکن د خروج منی دلیل یعنی التقاء ختانین اوموندې شی نو سبب د خروج منی لره د منی د خروج قائم مقام اوګرځولې شو او غسل پرې واجب کړې شو ځکه چې بعضې وختونو کښې د التقاء ختانین په نتیجه کښې لره شان منی خارج شی لیکن د آله تناسل د نظر نه د لرې کیدو په وجه سره دا لږ خروج نهٔ محسوسیږی لهذا احتیاط هم په دې خبره کښې دې چې غسل دې واجب کړې شی

**قوله** : **والحكم اذا اضيف الى المسمى بوصف خاص او علق بشرط الخ**

**د دویمې فاسد وجې بیان**

د امام شافعی رحمه الله د دې طرز استدلال دوه حصې دی

(۱) یو حکم که چرته د یو شرط سره خاص کړې شی نو هغه په خپله ماعدا کښې د حکم نفی باندې دلالت کوی

(۲) یو حکم ذ یو وصف سره متصف کړې شی نو چرته چې وصف نه وی نو هلته به حکم هم نه موندې کیږی

**د وړومبی شق مثال** : د الله تعالی فرمان دې

ومن لم يستطع منكم طولاً ان ينكح المحصنات المؤمنات فمن ما ملكت ايمانكم (القرآن)

**طرز استدلال** : الله تعالی د وینځو سره نکاح لره د عدم طول حره په

شرط سره مشروط کړي ده لهٰذا چرته چې دا شرط اونهٔ موندې شي یعني کوم سړي چې مؤمن آزادې ښځې سره په نکاح کولو باندې قدرت وی او طاقت وقدرت لری نو هغهٔ دپاره وینځو سره نکاح کول جائز نه دی ۔

۳. د دویم شق مثال

هم په دې آیت کښې الله تعالی وینځو لره د مؤمنیاتو په صفت سره متصف کړې دی

قال تعالی فمن ماملکت ایمانکم من فتیاتکم المؤمنات

لهٰذا وصف به د قاعدا نه د حکم په نفی باندې دلالت کوی یعنی د اهل کتابو وینځو سره به نکاح جائز نه وی

وحاصله الاول انه الحق بالشرط والثانی اعتبر الخ

ماتن ﷫ د امام شافعی ﷫ د دلیل جائزه اخستلو سره فرمائی چې د امام شافعی ﷫ د دلیل بنیاد په دواؤ څیزونو باندې دې چې د هغې بیان لاندې ذکر کړې کیږی

۱. شرط سره د وصف الحاق

د امام شافعی ﷫ خیال دا دې چې څنګه د شرط په وجود باندې د حکم د وجود او د هغې په حکم باندې د حکم د عدم وجود دارومدار دې (اذا وجد الشرط وجد الحکم والا فلا) دغه شان د وصف معامله هم ده الغرض یو کس خپلې ښځې ته دغه شان طلاق ورکړو انت طالق راکبة نو د هغوی په نزد به د دې ښځې طلاق د دې رکوب سره متعلق وی څنګه چې دې قول کښې دی انت طالق ان کنت راکبة راکبة حال دې او قائم بالغیر کیدو په وجه باندې وصف هم دې

**(۲) تعليق بالشرط په منع د حکم کښې عامل دې نۀ چې په منع د سبب کښې :**

امام شافعي رحمه الله فرمائي چې کۀ يو حکم د يو شرط سره معلق کړې شي نو دا تعليق د دې حکم نه خو وجود شرط پورې به مانع وي ليکن د دې سبب به موجود وي مثلاً ان دخلت الدار فانت طالق په صورت کښې به حکم (د وقوع طلاق : د پاره نو تعليق (دخول دار) مانع دې ليکن سبب کښې مانع نه دې چې انت طالق دې او حساً به موجود وي الغرض چې دخول دار اونۀ موندې شي نو د طلاق نه واقع کيدل به عدم شرعي وي او د امام شافعي رحمه الله د مذهب مزيد تنقيح د دې حسي مثال نه کيدې شي که يو سړې مثلاً لالټين په رسي يا تار وغيره سره آويزاند کړې نو دا عمل د هغې د حکم (راپريوتلو) نه مانع دې ليکن د حکم سبب (درونډوالي) نه مانع نۀ دې ځکه چې د آويزاندولو باوجود د دې درونډوالي برقرار دې :

**د شوافعو د مذهب د مزيد وضاحت دپاره تفريعات**

(۱) **ړومبۍ مسئله** : حتى ابطل تعليق الطلاق والعتاق بالملك

امام شافعي رحمه الله فرمائي چې که يو سړې يو اجنبي (پردۍ) ښځې ته دغه شان اووائي ان نکحتك فانت طالق . که يو سړې يو غلام ته دغه شان اووائي چې ان ملكت فانت حرياان ملكت فانت حرة نو دا کلام به باطل وي ځکه چې دا تعليق د وجود سبب نه مانع نۀ دې لهذا على الترتيب سبب انت طالق او انت حراوحرة موجود دې او دا د محل محتاج دې ليکن چونکه محل زوجيت (ښځه والي

او ملکیت معدوم دې لهذا دا کلام باطل دې که بعد کښې بیا دا سړې بالترتیب دې ښځې سره نکاح اوکړی یا د دې غلام مالک چوړ شی نو هم به د دې کلام په وجه سره طلاق نه واقع کیږی او نه به دا غلام آزادیږی ـ

**دویمه مسئله** : وجواز التکفیر بالمال قبل الحنث

د مال د کفارې متعلق د امام شافعی رحمه الله مذهب دا دې چې که یو سړې قسم کولو نه پس حانث کیدو نه مخکښې هم کفاره ادا کړی نو هغه کفاره به ادا شی د دې نه پس که بیا حانث هم شی نو د کفارې د اعادې ضرورت نشته ځکه چې د کفارې سبب یعنی یمین اوموندې شو او د سبب په وجه نفس وجوب کفاره ثابت دې اګرچه وجوب اداء به هم د حنث نه پس متحقق وی د احنافو په نزد د حنث نه مخکښې کفاره ادا کول جائز نه دی چې د هغې تفصیل دا دې

احناف وائی چې دا اداء قبل وجود السبب دې او دا معتبر نه دې لکه د وخت نه مخکښې مونځ ادا کول د اختلاف مبناء په سبب کښې ده چې د شوافعو په نزد یمین دې لیکن د احنافو په نزد حنث دې او یمین سبب براءت یاد دې وی چې کفاره بدنیه کښې هیڅ اختلاف نشته ځکه چې په دې کښې نفس وجوب سره وجوب اداء منفک نه ده بلکه دواړه یوځایې موندې شی پاتې شوه کفاره مالیه نو د احنافو په نزد په دې کښې هم د فرق څۀ وجه نشته ځکه چې مال مقصود نۀ دې بلکه د الله تعالی په حق کښې د دې ادائیګی مقصود وی هرځنګه چې وی لهذا کفاره مالیه کښې به هم نفس وجوب د وجوب اداء نه نۀ جدا کیږی

**قوله** : **وعندنا المعلق بالشرط لا ينعقد سبباً الخ**

۱ د شوافعو مذهب بیان شو چې معلق بالشرط حقیقتاً سبب وی
د احنافو په نزد معلق بالشرط حقیقتاً سبب نه منقعد کیږی
اګرچه صورتاً د سبب وهم وی ځکه چې طلاق او عتاق وغیره د
استعاراتو نه دی لهذا په کښې د تعلیق کامل کیدل ضروری دی او
هغه دا دی چې شرط د سبب او حکم دواړو نه مانع وی لهذا انت
طالق ان دخلت الدار په صورت کښې چې ترڅو شرط یعنی دخول
دار اونۀ موندې شی نو داسې به ګنړلې کیږی چې دۀ د سبب یعنی د
انت طالق تکلم هډو کړې نۀ دې چې هرکله زمونږ په نزد د تعلیق
بالشرط په صورت کښې سبب د وجود شرط نه مخکښې نه موندې
کیږی نو هغه د محل مقتضی هم نه دې لهذا ان نکحتك فانت
طالق او ان ملکتك فانت حر او حرة والا مثالونو کښې به د عاقل
بالغ کلام نه لغو کیږی او کله چې هم شرط نکاح او ملک اوموندې
شی نو سبب به عامل وی او په اجنبیه به د طلاق او په غلام باندې
به د آزادۍ حکم جاری کیږی۔

**قوله** : **وقد يقدر الاختلاف بيننا وبينه الخ**

حضرت مولنا شیخ احمد جیون رحمة الله علیه فرمائی چې هم دا
اختلاف په یو بل انداز سره هم بیانیدې شی چې د هغې حاصل دا
دې چې د شوافعو په نزد مذکوره تمام کلام جمله شرطیه ده او جمله
شرطیه کښې حکم صرف جزاء کښې وی او د شرط حیثیت د ظرف
یا د حال وی هم دا مذهب د عربو یعنی د اهل لسان طرفته هم

منسوب کړې شوې دې چې صرف د روغ دی بلکه د هغوی په نزد جونکه جمله شرطیه د شرط او جزاء د دواړو د مجموعي نوم دي لهذا حکم هم د شرط او جزاء دواړو درمیان کښې وی او مذکور مذهب صرف د صاحب مفتاح دي

**د دریمې فاسد وجې بیان**

**قوله** والمطلق محمول علي المقيد الخ

د امام شافعي رحمه الله د دې دلیل حاصل دا دې چې کۀ څه شرعي مسئله کښې مطلق او مقید حکم مذکور وی نو مطلق لره د مقید تابع کولو سره د مقید والا قید به هغې کښې هم ثابت شي مثلاً کفارهٔ ظهار کښې درې حکمونه دی او دریم حکم یعنی اطعام ستين مسكيناًمن قبل ان يتماسا قید سره مقید نه دې لیکن د هغوی په نزد ضروری ده چې د اطعام تکمیل پورې به هم ظهار کوونکې اجماع نه کوی ورنه اعاده به واجب وی دلته حادثه متحد ده او هغه کفاره ده . د قتل په شان د هغوی په نزد نورو ټولو کفارو کښې هم د مؤمن غلام آزادې ضروری ده ځکه چې ټولې کفارې کفاره کیدو کښې برابر دی

**د امام شافعي رحمه الله دلیل**

د هغوی یو اصول دې چې اذاانتفى الشرط اولوصف انتفى الحكم او طریق استدلال دا دې چې د هغوی په نزد منصوص یعنی د قتل کفاره فتحرير رقبه مؤمنة کښې دوه حکمونه دی (۱) رقبة مؤمنة سره د کفارې ادا کیدل (۲) او رقبة غیر مؤمنة سره عدام ادائیګی او

دواړه حکمونه شرعي دي لهذا اتحاد د کفاراتو دباعث د قیاس تقاضه ده چې دا د نورو کفارو طرفته متعدي کړې شي بعضې شوافع د قیاس شرط هم لګوي

**د احنافو جواب او موقف**

حکم شرعي خو صرف رقبة مؤمنة سره د کفارې ادائیګی ده باتې شوه عدم ادائیګی نو هغه عدم اصلي دې او عدم متعدي نهٔ شي کیدې نیز کفارې ټولې یوشان هم نهٔ دي بلکه د قتل جرم اغلظ دې لهذا د انصاف تقاضه ده چې سزا هم د هغې مناسب وي لهذا غلام سره یې د ایمان قید اولګوو او نور جرمونه د دې درجې نهٔ دي لهذا قید لګول ظلم دې

**قوله**: **ثم اعترض على الشافعي رحمه الله انكم كما حملتم اليمين الخ**

**اعتراض**: شوافعو چې څنګه د کفارې د اتحاد په بنیاد باندې کفاره قتل باندې کفاره یمین محمول کولو سره په دې کښې هم غلام دپاره د ایمان قید ثابت کړې دې دغه شان هغوی له دا هم کول پکار دي چې په کفاره د یمین بآندې کفاره د قتل د اطعام مساکین په حق کښې محمول کړي

**جواب**: د اسم علم نه تفاوت ثابت دې او یمین کښې طعام منصوص دې او قتل کښې اصل هم طعام منصوص نهٔ دې او د اسم علم نه وجود خو ثابتیږي لیکن هغه د خپل عدم په وخت عدمِ حکم نه ثابتوي د جواب حاصل دا دې چې اسم علم اصل یعنې کفاره یمین کښې هم د عدم اطعام په صورت کښې اداء کفاره کافي نه ده بلکه کسوه هم کافي ده نو فرع (قتل) کښې به حکم څنګه متعدي شي.

**قوله** وانما قيد الطعام باليمين الخ.

شارح العلام ﷫ فرمائی چې مونږ کفاره د يمين اخستلو سره اعتراض کړې دې ځکه چې د امام شافعي ﷫ په يو روايت کښې کفاره د ظهار يعنی شپيتو مسکينانو باندې خوراک کول کفاره د قتل کښې هم ثابت دی فلااعتراض۔

وعندنالايحمل المطلق على المقيدوان كانافى حادثة واحدة الخ

**د احنافو د مذهب بيان**

مصنف ﷫ فرمائی چې مطلق او مقيد خواه يو حادثه کښې وی ځنګه چې د ظهار کفاره ده يا مختلف حادثو کښې وی ځنګه چې د قتل کفاره ده او د يمين مثال تير شو بهر حال د احنافو په نزد به مطلق په خپل اطلاق باندې جاری کيږی او بيا به پرې عمل کولې شی دا به په مقيد باندې نه محمول کيږی لهذا د ظهار کفاره کښې که څوک په مسکينانو باندې خوراک کول اوغواړی نو تکميل د کفارې نه مخکښې جماع کولو کښې هيڅ جرم نشته دغه شان د قتل د کفارې برعکس کفاره يمين او کفاره ظهار وغيره ځنګه چې د مؤمن غلام آزادول جائز دی د کافر غلام آزادول هم کافی دی

**د احنافو دليل**

مطلق او مقيد دوه مستقل دليلونه دی لهذا حتی الامکان به دواړو باندې عمل کولې شی الاان يكون فی حكم واحد الخ دا مذهب د احنافو نه استثناء دې چې حاصل يې دا دې چې کۀ يو حکم شرعی کښې مطلق او مقيد دواړه وارد وی نو مطلق به د مقيد تابع جوړولې شی ځکه چې د دواړو په مقتضا باندې عمل کول

ممکن نهٔ دی او مقید په منزله د ناطق او مطلق په منزله د ساکت دې او د ساکت او ناطق چې کله خپلو کښې تعارض راشی نو ناطق نه ترجیح ورکولې شی

**مثال سره وضاحت**

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په قرات کښې د یمین په کفارو کښې په روژو کښې د تتابع یعنی تسلسل قید مذکور دې **فصیام ثلثة ایام متتابعات** او متواتر قراءت د دې قید نه خالی دې که دا اووئیلې شی چې که دړې روژې پرله پسې اونیسی هم او اونهٔ نیسی هم نو اجتماع ضدین به لازم راشی لهذا تتابع به ضروری وی۔

**قوله** : **والشافعی** رحمه الله **انما لم یحمل هذا الخ**

شارح رحمه الله فرمائی چې امام شافعی رحمه الله دلته د خپل مشهور اصول نه برخلاف مطلق په مقید باندې نه محمول کوی ځکه چې د هغوی په نزد قراءت غیرمتواتره خواه واحده وی یا مشهور؛ معتبر نه دی

**د شوافعو له طرفه په احنافو باندې**

**یو څو اعتراضات او د هغې دفعیه**

**رومبې اعتراض** : د احنافو اصول دی چې هرکله حادثه او حکم یو وی نو مطلق به په مقید باندې محمول کولې شی لهذا صدقه فطر کښې هغوی ته د کافر غلام له طرفه د صدقهٔ فطر د ادائیګۍ قول نهٔ دی کول پکار ځکه چې په دې حوالې سره مقید حدیث ادواعن حر وعبدمن المسلمین هم دا تقاضه ده او حکم او حادثه متحد دی۔

**جواب:** د حنفیانو اصول د اجتماع ضدین نه د بچ کیدو په خاطر وو او مذکوره صورت کښې مطلق او مقید دواړو باندې عمل کول حکم صحیح دی چې د دواړو تعلق سبب سره دې او اسبابو کښې هیڅ قسم تعارض نه وی لهذا په دواړو باندې عمل کول ممکن دی

## د مطلق او مقید پنځه صورتونه او د هغې احکام

فـ ع ص ن فی تحـ د الخته شارح د حاصل کلام په طور د مطلق او مقید نصونو وارد کیدو پنځه صورتونو او مختلف فیه او متفق علیه صورتونو طرفته اشاره کوی چې د هغې بیان دا دی:

| نمبر | ممکنه صورت حمه | بیان د مذاهبو |
| --- | --- | --- |
| ۱ | مطلق او مقید دواړه په سبب وغیره باندې وارد وی۔ | د احنافو په نزد به مطلق په مقید باندې نه محمول کیږی د شوافعو په نزد به کیږی۔ |
| ۲ | مطلق او مقید هم په یو حادثه او حکم باندې وارد وی | مطلق به بالاتفاق په مقید باندې محمول کیږی۔ |
| ۳ | د مطلق او مقید حادثه یو وی او حکم مختلف وی۔ | د احنافو په نزد به مطلق په مقید باندې نه نه محمول کیږی د شوافعو په نزد به کیږی۔ |
| ۴ | د مطلق او مقید حکم یو وی او حادث مختلف وی | // // // |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ | مطلق او مقید دواړه په حکمونو او حادثو باندې وارد وی - | مطلق به بالاتفاق په مقید باندې نه محمول کیږی - |

**قوله** : فاما قيد الاسامة والعدالة فلم يوجب النفي الخ

**مزید د دوؤ اعتراضاتو جواب**

**دویم اعتراض** : د احنافو قاعده ده چې کله مطلق او مقید سبب کښې وارد وی نو مطلق به په خپل اطلاق باندې برقرار پریخودې شی کما مرآنفاًاو سائمه اوښانو کښې د وجوب زکوة قول کولو سره احنافو د دې اصولو برعکس حدیث مطلق فی خمس من الابل شاۃلره په حدیث مقید فی خمس من الابل السائمة شاة باندې محمول کړې دې ځکه چې د وجوب د زکوة سبب دې

**جواب** : مونږ مطلق نهٔ دې مقید کړې بلکه مطلق اوښانو کښې د وجوب زکوة نفی په یو بل حدیث کښې ده د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارک دې لیس فی العوامل والحوامل والعلوفة صدقة په دې حدیث مبارک کښې ذکر کړې شوې درې واړه قسمونه اوښان غیر سائمه دی چې د هغې نه د زکوة د وجوب نفی اوشوه او حکم د سائمه اوښانو په حق کښې ثابت شو الغرض د مطلق اطلاق د دې آخری حدیث په بناء باندې منسوخ شو په دې بناء باندې نهٔ چې مونږ مطلق په مقید باندې محمول کړې دې۔

**دریم اعتراض** : د احنافو اصول دی چې کله مطلق او مقید په دواؤ مختلف حادثو باندې وارد وی نو مطلق په مقید باندې نهٔ محمول

کبرى حالانکه شهادت فى الرجعت جدا حادثه ده او شهادت فى الدين وغيره جدا ليکن تاسو شهادت فى الرجعت کښې منصوص ذوی عدل منکم والا قید په نورو شهادتونو کښې هم ضروری گرځولې دي چې د گواه عادل کیدل شرط دي

**جواب** د معترض اعتراض بې ځایه دي مونږ د گواه دپاره د عدالت شرط د دې آیت کریمه په وجه سره لګولې دي اذاجاءکم فاسق بنبأفتبینواچې دي سره د فاسق یعنی د غیر عادل سړی د خبر واجب التوقف کیدل معلوم شو نه چې مونږ مطلق په مقید باندې محمول کړې دي

## د خلورمې فاسد وجې بیان

**قوله** قیل ان القران فى النظم الخ

د دې ځاې نه مصنف رحمه الله خلورمه فاسد وجه بیانوی چې د مالکیه په نزد معتبر ده

**د دلیل مفهوم** که دوه مستقل کلامونه د واؤ په ذریعې سره جمع کړې شی نو د هغې حکم به هم مشترک وی

**وجه** : واؤ د قران دپاره راځی او قران به هغه وخت متحقق وی چې کله په حکم کښې اشتراک وی

**د دلیل ثمره** د مالکیه په نزد د دې دلیل په بناء د بچی په مال کښې زکوة واجب نه دي د استدلال وجه دا ده چې الله تعالی په خپل فرمان اقیموالصلوۃوآتوالزکوۃ کښې د دواړو حکمونو درمیان کښې واؤ ذکر کړې دي او بالاتفاق په ماشوم باندې مونځ فرض نه دي لهذا د

اشتراک فی الحکم تقاضه دا ده چې په دهٔ باندې زکوة هم واجب نهٔ وی احناف هم د دې خبرې قائل دی چې په ماشوم باندې زکوة واجب نهٔ دې لیکن دلیل جدا دې چې هغه لازکوة فی مال الصبی دې

واعتبروا بالجملة الناقصة الخ ماتن رحمه الله فرمائی چې هغوی د جمله کامله او ناقصه عطف مثلاً زینب طالق وهندة طالق د عطف الناقصه علی الکامله باندې د خبر طرفته احتیاج دې البته که جمله تامه کښې هم احتیاج وی نو اشتراک کښې هیڅ حرج نشته څنګه چې ان دخلت الدار فانت طالق وعبدی حر کښې عبد حر اګرچه جمله کامله ده لیکن د تعلیق په اعتبار سره محتاج او ناقص ده لیکن انت طالق ان دخلت الدار وهند طالق داسې نهٔ دی ځکه چې که د دې مقصود تعلیق وې نو بیا به یې په هند باندې سکوت اختیار کړې وو او خبر به یې نهٔ ذکر کوو د خبر ذکر کول دلیل دې چې هغه د مخاطب ښځې طلاق د دخول دار سره معلق کوی لیکن په هندې باندې طلاق تنجیزی واقع کوی

## د پنځمې فاسد وجې بیان

**قوله** : والعامل اذا خرج مخرج الجزاء الخ

د شارح رحمه الله خیال دې چې د دې ځایې نه مصنف رحمه الله پنځمه فاسد وجه بیان فرمائی اګرچه شارح ته هم اعتراض دې چې د احنافو مذهب اصالتاً او د خصم مذهب تبعاً راوړل خلاف سابق دی پنځمه فاسد وجه د لاندې نقشې په مدد سره آسانتیا سره ذهن ته راځی صیغه عام کښې چرته نص یا د صحابی قول کښې د یو مخصوص سرې متعلق وارد وی نو د دې لاندې ذکر کړې شوې صورتونه دی:

صورتونه دا دي

| سر | د صورتونو بيان | حكم | مثال |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱ | كلام مبتدا شوي كلام وي | دا صيغه عام به خپلو ټولو افرادو ته شامل دي وي مخصوص بالسبب به نه وي | لاتعداد مثالونه ممكن دي ـ |
| ۲ | كه دا كلام په محل د جزاء كښې وي ـ | دا به ټولو افرادو سره عام نه وي بلكه مخصوص بالسبب به وي په دې كښې د چا اختلاف نشته ـ | ان ماعزازنى فرجم اوسهى رسول الله صلى الله عليه وسلم فسجد ـ |
| ۳ | په محل د جواب كښې وي او د جواب نه زائد نه وي مگر كلام مستقل وي ـ | بالاتفاق به صيغه عام سبب ورود سره مختص وي ـ | دعوت غداء باندې دا وئيل: ان تغديت فعبدي حر |
| ۴ | په محل د جواب كښې وي ليكن كلام مستقل نه وي ـ | بالاتفاق به صيغه عام سبب ورود سره مختص وي آخرى دريو صورتونو كښې ماعدا كښې به ثبوت دحكم قياس يا دلالة النص يد آخرى نص په ذريعې سره كولې شي ـ | اليس لى عليك الف درهم په جواب كښې نعم يا بلى وئيل ـ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵ | کلام په محل د جواب کښې وي ليکن زائد على قدر الجواب وي۔ | دا صورت مختلف فيه دي د حنفيه په نزد به صيغه په خپل عموم باندې وي چې د اليوم تلفظ لغو نه شي لهذا مدعو اليه به د خوراک نه علاوه نن ورځ که چرته هم خوراک اوکړي نو حانث به شي او د امام مالک. شافعي او زفر رحمهم الله په نزد د دلالت د حال په وجه سره کلام د مدعو اليه سره خاص دي لهذا د داعينه علاوه چه چرته هم او چا سره هم خوراک اوکړي نو حانث به نهٔ وي۔ | تعال نغد معي په جواب کښې دا ونيل ان تغديت اليوم فعبدي حر |

## د شپږمې فاسد وجې بيان

**شپږم دليل** : د بعضې شوافعو وينا ده چې کوم کلام په محل د مدح کښې وي مثلاً ان الابرار لفي نعيم يا د مذمت د پاره وي لکه ان الفجار لفي جحيم وغيره نو داسې کلام کښې به عموم نهٔ وي بلکه د چا متعلق چې دا کلام دې نو هم هغوی سره به خاص وي او د هغوی نه علاوه کښې کهٔ گنجائش وي نو د قياس يا دلالة النص په ذريعې سره به حکم ثابتولې شي

**د دليل ثمره** . والذين يکنزون الذهب والفضة الخ دا يو مخصوص قسم سره متعلق دي لهذا د دې نه په زيوراتو باندې د وجوب زکوة استدلال صحيح نهٔ دې .

**د احنافو مذهب او د خصم ، مقابل ، ترديد**

چې ترڅو د عام په مقتضا يعنې عموم باندې عمل ممکن وي نو د هغې مقتضاء لره باطل کول جائز نه دي لهذا کوم عام چې په محل د مدح يا ذم کښې وي نو هغه به په عموم باندې برقرار ساتلې شي ځکه چې د دې خلاف څه قرينه نشته لهذا په آيت مذکوره سره زيوراتو باندې د وجوب زکوة حکم لګول صحيح دي د وينځ صحيح نه دي چې د کنز نه بنځ کړې شوې مال مراد دې ځکه د ولاينفقونها الخ قرينه ګواه ده چې د دې نه زکوة مراد دې

**د اوومې فاسد وجې بيان**

دا دليل هم د شوافعو په نزد معتبر دې چې د دې حاصل دا دې چې کله د جمع اضافت جمع طرفته وي نو د جمع اول هر هر فرد به د جمع ثاني هر هر فرد ديارة ثابت وي لهذا خذمن اموالهم صدقة کښې اموال (جمع) اضافت هم (جمع ضمير) طرفته شوي دي په دې وجه به د مالدار سړي هر قسم مال کښې زکوة واجب وي خواه نقود وي يا عروض يا مال سائمه وغيره د احنافو په نزد دې صورت کښې نقسم آحاد علي الاحاد ثابتيږي مثلاً د لبسواثيابهم مطلب دا دې چې هر سړي سړي خپل خپل لباس واغوستو وکذارکبوادوابهم وفاغتسلواوجوهکم

**ثمره اختلاف د يو فقهي مسئلې د رنړا په رنړا کښې**

که يو سړې خپلو دواړو ببيانو ته مخاطب کيدو سره اووائي چې اذاولدتماولدين فانتماطالقان نو د شوافعو په نزد به د

هرې ښځې دپاره به طلاق د دواړ بچو د دلالت په صورت کښې ثابتيږي ورنۀ نۀ به ثابتيږي او د احنافو په نزد که هره يوه ښځه يو بچي اوزيګوی نو هم به ورته طلاق واقع کيږی پاتې شوه په تثنيه باندې د جمع اطلاق نو دا مسامحتاً دې۔

**د اتمې فاسد وجې بيان**

شارح رحمه الله فرمائی چې په دې فاسد وجه ډير زيات اختلافات دی چې هغه تفصيل سره ذکر کړې شوې دی د دې وجې تعلق د دې امر سره دې چې د يو څيز امر د هغې د ضد منهی عنه کيدو او د يو څيز نهی د هغې د ضد د مامور به کيدو تقاضه کوی يا نۀ کوی او دا منهی عنه او مامور به د کومې درجې وی په دې سلسله کښې درې مشهور مذهبونه دی

(۱) **د امام الحرمين او امام غزالی رحمهما الله مذهب**

امر بالشئ د خپل ضد منهی عنه کيدو او نهی د خپل ضد مامور به کيدو تقاضه کوی

(۲) **د بعضې نورو اهل اصولو مذهب** : امر بالشئ د خپل ضد د حرام کيدو تقاضه کوی او نهی عن الشئ د خپل ضد د واجب کيدو تقاضه کوی الغرض په امر او نهی کښې د خپل ذات سره سره د خپل ضد متعلق هم حکم وی

(۳) **د احنافو مذهب** : امر بالشئ د خپل ضد کراهت ته مستلزم دې او نهی عن الشئ د منهی عنه د ضد دپاره د سنت مؤکده برابر درجه لری حقيقتاً سنت مؤکده ځکه نۀ دې چې دا خو د نبی کريم ﷺ قول او فعل ته وئيلې کيږی د احنافو د مذهب مزيد تفصيل دا دې

چي بلناثت د امر وضع د خپل ضد د تحريم د پاره نۀ کيږي په دې وجه د کراهت قول نقل کړې شو البته که د مامور به په ضد کښې دومره مشغول شو چې مامور به فوت شو نو ضد حرام شو مثلاً د دويم رکعت د پاره قيام مامور به دې ليکن د دې ضد قعود فى الرکعة الاولى نه به مونځ صرف هغه وخت فاسديږي چې کله قعود دومره قدرې اوږد شي چې قيام فوت شي

**مثالونه** شارح ﷫ الامر بالشئ يستلزم کراهية ضده په مثال کښې د احناف و خپلو کښې اختلاف ذکر کړې دې چې د هغې تفصيل دا دې چې د مونځ په دوران کښې په پاک ځائے باندې سجده کول مامور به دې که څوک په نجس يعنى پليت ځائے باندې سجده اوکړي بيا يې په پاک ځائے باندې اعاده اوکړي نو د امام ابويوسف صاحب ﷫ په نزد د دې سړي مونځ فاسد نۀ دې او د طرفينو په نزد د دې سړي په پليت ځائے باندې سجدې لګولو سره مونځ فاسد شو صرف په پاک ځائے باندې د سجدې اعاده کافى نۀ ده مبنا د اختلاف دا ده چې د مامور به په ضد کښې مشغوليت د مامور به فوت کيدو ته مستلزم دې يا نۀ دې ؟ امام ابويوسف صاحب ﷫ فرمائي چې په نجس ځائے باندې د سجدې کولو نه پس چونکه دې سړي په پاک ځائے باندې د خپلې سجدې اعاده کړې ده لهذا مامور به فوت نۀ شو زيات نه زيات دا د يو مکروه فعل ارتکاب اوکړو وهو لا يوجب فساد الصلوة او د طرفينو رحمهما الله په نزد دې سړي چې څنګه په نجس مقام باندې سجده اولګوله نو هغه وخت مامور به فوت شو څکه چې مانځه کښې پاکوالي (تطهير) يو

دائمي فرض دي او په نجس مقام باندې سجده کوونکي حامل نجاست دي لهذا په ناپاک ځايي باندې سجده کول حرام دی چې په دې سره هغه فرض تطهير فوت کيږي او چې فرض پاتې شی نو مونځ هم فوت شي.

د دويم مثال د محرم سرې ګنډلې شوې کپړې نه اغوستل دی چې د دې منهي عنه ضد يعنی څادر او تهبند وغيره به حالت احرام کښې نه شي ترک کولې ځنګه چې سنت مؤکده نۀ شی ترک کولې.

(تمسکات ضعيفه وفاسده تمام شد)

# فصل: د مشروعاتو په بيان کښې

د احکام مشروعه بنيادی طور باندې دوه قسمونه دی

(۱) رخصت (۲) عزيمت

**د مامور به قسم اول عزيمت:**

صاحب کتاب اول د عزيمت تعريف او د دې نه پس بيې د دې تقسيم فرمائيلي دي:

**د عزيمت تعريف:**

عزيمت احکاماتو کښې اصل دي او د دې مشروعيت د څۀ عارض په وجه سره نۀ وی خواه د دې تعلق د فعل سره وی لکه مامورات شرعيه يا ترک فعل سره وی لکه منهيات شرعيه

**د عزيمت تقسيم:**

ابتداء کښې د عزيمت ټول څلور قسمونه دی

(۱) فرض (۲) واجب (۳) سنت (۴) نفل

**د سارح په طرز وجه د حصر**

د عزیمت منکر به کافر گنړلی کیږی یا نهٔ ؟ که د دې منکر کفر گنړلې کیږی نو دا فرض دی او که د دې منکر کافر نه گنړلې کیږی نو د دې دوه صورتونه دی د دې تارک موجب عقاب دې یا نهٔ دې که د دې تارک د سزا مستحق دې نو دا واجب دی او که د سزا مستحق نهٔ دې نو بیا د دې دوه صورتونه دی یا خو به د دې تارک د ملامتیا مستحق وی یا به نهٔ وی که د دې تارک د ملامتیا مستحق وی نو دا سنت دی او که نهٔ وی نو بیا نفل دی

## فرض

۱ **د فرض تعریف** وهی مالایحتمل زیادة ولا نقصاناً بالدلیل لا شبهة فیه کالایمان ولارکان الاربعة وهی الصلوٰة والزکوٰة والصوم والحج

**د فرض حکم** دا د علم یقینی او د عمل قطعی فائده ورکوی لهذا بغیر د عذر نه د دې پریخوونکې به فاسق وی دا د فرض موجب برائې عمل قطعی کیدو ثمره ده او د علم ثمره دا ده چې د دې منکر کافر دې

۲ **واجب** ماثبت بدلیل فیه شبهة کالعام المخصوص والمجمل والخبرالواحد کصدقة الفطر والاضحیة

د دې نه د علم یقینی فائده نه حاصلیږی بلکه دا د علم ظنی فائده ورکوی لهذا د دې منکر کافر نهٔ دې البته فاسق دې او په اعتبار د عمل دا هم د فرض په شان دې بلکه د دې نوم فرض عملی هم دې که یو سړې د واجب توهین اوکړی نو دې بیا کافر دې لان اهانة الشریعة کفر د ائمه ثلاثه په نزد واجب مستقل قسم نهٔ دې

## (۳) سنت :

**د سنت تعريف :**

لغوی معنی : طريقه او لاره خواه صحيح وی يا غلطه

**اصطلاحی تعريف** : الطريقة المسلوكة فی الدين بغير الفرض والواجب

**د سنت حکم** : د مسلمان نه به د دې د قائمولو مطالبه کولې شی چې په دې باندې دليل د الله تعالی دا ارشاد دې وما آتاکم الرسول فخذوه ومانهاکم عنه فانتهوا_

## فوائد قيود :

(۱) **ان يطالب** : دا فصل اول دې چې دې سره نفل خارج شو۔

(۲) **من غير افتراض**: دا دويم فصل دې چې دې سره فرض خارج شو

(۳) **ولا واجب** : دا دريم فصل دې چې په دې سره واجب خارج شو اوس تعريف جامع لافراده او مانع عن غير شو ولکن قالوا ان هذا التعريف الغ شارح رحمه الله وضاحت کوی چې د مذکوره تعريف او حکم مصداق صرف سنن هدی ( سنت مؤکده ) دی البته راتلونکې تقسيم د سنت مؤکده نه علاوه د زوائد هم دې

**ضروري نکته** : د احنافو په نزد د سنت اطلاق د نبی نه علاوه د بل چا په طريقې هم کيږی **لقوله** عليه السلام من سن سنة له اجرها واجر من عمل بها شوافع دې اطلاق لره بلا اضافت جائز نهٔ کنړی بلکه صراحت ضروری دې مثلاً داسې اووائی هذه سنة الشيخين وهذه سنة

ابي بكر رضي الله عنهم د هغوي دليل د سعيد بن مسيب رحمه الله قول دي مادون الثلاث من الدية لاينصف وهوالسنة دلته د سعيد بن مسيب رحمه الله اشاره د سنت نبي عليه السلام طرفته نهٔ ده بلکه د حضرت سيدنا زيد بن ثابت رضي الله عنهم قول طرفته ده

**د سنت اولنۍ تقسيم**

د سنت دوه قسمونه دي (۱) سنن هدى يا سنت مؤکده (۲) زائد يا سنت غير مؤکده

(۱) **د سنن هدي يا سنت مؤکده تعريف**:

چې د هغې مطالبه په دې طور سره وي چې د هغې تارک د ملامتيا مستحق وي مثلاً جماعت . اذان او اقامت وغيره

**د سنن زوائد يا سنت غير مؤکده تعريف**: چې د هغې پريخودونکې د ملامتيا او د سزا مستحق نهٔ وي مثلاً لباس ، قيام او قعود وغيره . عادتونو کښې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم اتباع ـ

## (۴) نفل

**د نفل تعريف** چې د دې کونکې د ثواب مستحق وي ليکن پريخودونکې يې د سزا او ملامتيا مستحق نهٔ وي مثلاً په مسافر باندې دوه رکعته واجب دي ليکن کهٔ زيات اوکړي نو دا دوه رکعته به د هغهٔ په حق کښې نفل شمار کړې شي

شارح رحمه الله ضمناً يو بل اختلاف طرفته هم اشارهٔ کړې ده چې آيا نفل چې شروع کړې شی نو بيا فرض شی يا نهٔ ؟ يعنی د دې اتمام لازمي دې يا نهٔ ؟

**د شوافعو مذهب** : نفل د شروع کولو نه پس هم نفل وی لهذا که د پوره کولو نه مخکښې یې انسان مات کړی یعنی څه کار پیښ شی او سلام واړوی نو د دې قضاء واجب نهٔ ده

**د شوافعو دلیل** :

بقاء د یو څیز د ابتداء د هغې څیز مخالف نهٔ وی لهذا چې کومه ابتداء نفل دهٔ نو بقاء به هم نفل وی خواه مونځ وی یا روژه

**د احنافو مذهب** :

نفل شروع کولو پورې خو د دهٔ په مرضۍ باندې موقوف وو لیکن د شروع کولو نه پس لازم شو که سلام یې واړولو نو د دې قضاء راوړل واجب دی برابره خبره ده که هغهٔ مونځ وی یا روژه وی

**د احنافو دلیل** : د الله تعالی فرمان دې ولاتبطلوااعمالکم لهذا د نفل مونځ او روژې چې کومه حصه ادا شوې وی د هغې محافظت ضروری دې ځکه چې هغه هم یو عمل دې او د عمل باطل کولو نه الله تعالی منع فرمائیلې ده د دې ادا کړې شوې محافظت هم دا دې چې په دې باندې حکم مرتب وی او د دې مفید حکم کیدل د اتمام نه بغیر ممکن نهٔ دې نفل لره نهٔ پوره کول امتناع عن العمل نهٔ دې ځکه چې دا د ادا کړې شوې عمل ابطال ته مستلزم دې

**د احنافو دویم دلیل** :

په نذر منونکی باندې صرف ذکر قولی او تعیین لسانی یعنی لله علی ان اصلی رکعتین وغیره په بناء باندې بالاتفاق نذر شروع کول او بیا پوره کول واجب دی هم په دې باندې مونږ دوام

نفل بعد الابتداء قیاس کوو او دوام د ابتداء په نسبت آسان دي دغه شان د فعل شروع د ذکر قولی نه ډیر زیات قوي دي

## د مامور به دویم قسم رخصت

### د رخصت د تعریف نه کولو وجه

د تعریف محتاج هغه څیزونه وی چې په هغې کښې اشتراک معنوی وی چې د لفظ واحد وضع د مفهوم کلی دپاره شوي وی او دا لفظ مفهوم د کلی په هر هر فرد کښې حقیقت وی او د ټولو افرادو دپاره متفق الحقیقت وی او رخصت کښې داسې څهٔ اشتراک نهٔ موندې کیږی لهذا اول مصنف رحمه الله د دې تقسیم اوکړو او بیا یې د هر هر قسم تعریف ذکر کړې دې

**د رخصت تقسیم** : اول د رخصت دوه قسمونه دی :

(۱) رخصت حقیقیه (۲) رخصت مجازیه

بیا د رخصت حقیقیه او مجازیه مستقل دوه قسمونه دی الغرض د رخصت ټول څلور قسمونه شو د شارح رحمه الله په طرز تفصیل اوګورئ

**(۱) رخصت حقیقیه**

داسې رخصت چې د هغې معمول بهاکیدو سره باقی وی بیا په یو صورت کښې د عزیمت په شان رخصت به هم ټولو اعتباراتو سره وی دااحق من الآخردي چې په دې کښې به بعضې اعتباراتو سره عزیمت موجود وی بعضې سره به نهٔ وی وکذاالرخصة

**(۲) رخصت مجازیه**

داسې رخصت چې په کښې عزیمت فوت شی یعنی معمول بها وی

دې قسم ته مجازاً رخصت اووئيلې شو ورنه حقيقتاً دا په خپله عزيمت دې لفوات العزيمة بيا كه عزيمت من كل الوجوه جميع عالم نه فوت دې نو دا اتم المجاز دې او كه بعضو مادو كښې عزيمت موجود دې نو دا په مجاز كيدو كښې غيرتام او ناقص دې

**قوله** : اما احق نوعى الحقيقة

**د رخصت حقيقيه د نوع بعضې احكام**

د دې قسم حكم دا دې چې په عزيمت بآندې عمل كول اولى دى ليكن په رخصت باندې عمل كول هم جائز دى ځكه چې جانب رخصت كښې محرم او د هغې موجب باقى دى ليكن د مواخذې په حق كښې د دليل حرمت قائميدو د دې مرتكب سره د مباح په شان معامله ده دا مطلب نه دې چې فى نفسه دې دا افعال حرام نهٔ وى بلكه مباح شو بلكه دا تمثيل صرف د ترک مؤاخذه په حق كښې دې شارح رحمه الله د مصنف بيان كړې شوې د هر مثال ډير ښكلې وضاحت كړې دې مونږ صرف د مثالونو په نقل كولو باندې اكتفاء كوو

**د رخصت حقيقيه د قسم اول مثالونه**

(۱) حالت اكراه كښې د كفر كلمه وئيل په داسې حال كښې چې زړهٔ په ايمان باندې مطمئن وى (۲) حالت اكراه كښې فرض روژه افطار كول (۳) حالت اكراه كښې د بل چا مال يا نفس ته نقصان رسول (۴) د ظالم بادشاه او حاكم نه د جان د خطرې په وجه سره امر بالمعروف او نهى عن المنكر پريخودل (۵) د مجبور سړى د احرام په حالت كښې د جنايت ارتكاب كول (۲) حالت مخمصه كښې د بل چا مال خوړل ـ

**نکته** په ترنو مثالونو باندې غور کولو سره معلومیږي چې د عزیمت په صورت کښې بالکلیه یې حق فوت کیږی صورةً ومعنیً و جنب رخصت کښې یو حق باقی وی

علی الترتیب په اولنی مثال کښې د الله تعالی حق یعنی تصدیق قلبی او دویم مثال کښې د الله تعالی حق یعنی قضاء د روژې، دریم مثال کښې د مالک حق یعنی مهمان . څلورم مثال کښې د الله تعالی حق یعنی امر بالمعروف او نهی عن المنکر د پریخودلو د حرمت اعتقاد . پنځم مثال کښې د الله تعالی حق په صورت د جزاء تاوان او شپږم مثال کښې د غیر حق ضمان باقی پاتې وی

**نوټ** . چونکه دلته باوجود د دلیل حرمت قائم کیدو بنده سره خاص رعایت دی لهذا دې قسم ته رخصت وئیل احق او اولی دی

**د رخصت حقیقیه د قسم ثانی یوځو احکام**

د دې قسم حکم دا دې چې په عزیمت باندې عمل کول اولی دی ځکه چې د دې سبب کامل طور باندې موجود دې صرف حکم مؤخر کیږي شوي دي مثلاً رمضان کښې د مسافر دپاره د افطار حکم

**قوله** اما اتم نوعی المجاز

**د رخصت مجازیه د نوع اتم یو ځو احکام**

دې ته مجاز رخصت وئیلې شوې دې حالانکه هم دا د امت محمدیه علی صاحبها الصلوٰة والسلام په حق کښې عزیمت دې د دې تعلق امم سابقه باندې مشروع احکام شاقه سره دې۔

# النوع الرابع

## د رخصت د آخري قسم يوڅو احکامات

دا قسم په هغې احکاماتو باندې مشتمل دې چې، عامو حالاتو کښې مشروع دي البته د مخصوص حالاتو او عواضو په وجه سره ساقطيږي شارع د مصنف ﷺ د بيان کړده تولو مثالونو وضاحت کړې دې چې د هغې ضروري حصه اوګورئ

## رومبې مثال : په حالت د سفر کښې په مونځ کښې قصر

د مسافر په جواز قصر کښې اختلاف نشته البته د احنافو په نزد دا رخصت اسقاط دې لهذا دڅلور د مونځ پوره کول جائز نه دي او د شوافعو په نزد رخصت ارفع دې يعنی د څلور د مونځ پوره کول غوره دي

د شوافعو دليل د الله تعالى فرمان دې واذا ضربتم في الارض فليس عليكم جناح او د استدلال طريق دا دې چې د قصر په صورت کښې ګناه معاف کړې شوې ده چې د هغې په جواز باندې دلالت کوي البته حضور اکرم ﷺ د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په هم دغه شان استدلال باندې فرمائيلې دې صدقة تصدق الله بها عليكم فاقبلوا صدقته د دې نه هم د قصر قبلولو لزوم او وجوب معلوميږي

## د شوافعو ته جواب

د ګناه نفی د بعضو مخاطبينو د دې خيال د نفی د پاره وه چې شايد په مانځه کښې قصر ګناه وی څنګه چې دې فرمان اقدس کښې دی ان الصفا والمروة من شعائر الله فمن حج البيت او اعتمر فلا

جناح علیه ان یطوف بهما

**دویم مثال** : د مجبور کړي شوی او مضطر په حق کښي د شراب او مردار څیز د حرمت ساقط کیدل چي په دې باندې دلیل د الله تعالی دا فرمان دې قد فصل لکم ما حرم علیکم الا ما اضطررتم یعنی دا څیزونو د اضطرار په حالت کښي په تاسو بآندي حرام نهٔ دی لهذا په دې حالت کښي کهٔ څوک شراب اونهٔ څکی یا مرداره اونهٔ خوری او مړ شی نو ګناه ګار به وی په خلاف د قسم اول چي هلته عزیمت غورد وو او حرمت باقی وو صرف مؤاخذه مرفوع وه امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله د شرابو څکل او د مرداري خوړل هم قسم اول کښي شمار کړي دی د هغوی دلیل ان الله غفور رحیم دې او زمونږ جواب دا دې چي د مغفرت تعلق د دې څیزونو دضرورت نه زیات خوراک وغیره امورو سره دې

**د اختلاف ثمره** : که څوک قسم اوکړی والله لا اکل حراما بیا د اضطرار په حالت کښي حرامه غوښه اوخوری د هغوی په نزد چونکه حرمت باقی دې لهذا حانث به وی او زمونږ په نزد به حانث نهٔ وی ځکه چي د اضطرار په حالت کښي د دې څیزونو حرمت ساقط شوي دي

**دریم مثال** :

مسح علی الخفین کولو سره د خپو د وینځلو فرضیت ساقط شوي دې د صاحب هدایه رحمه الله په نزد هم خپي وینځل عزیمت دې

( د احکام مشروعیه بحث مکمل شو )

# د امر او نهي ټولو اقسامو دپاره اسباب وي

مصنف ﷫ فرمائي چې امر او نهي خپلو ټولو اقسامو سره د طلب فعل یا د ترک فعل دپاره راځي او د امر د قسمونو نه مراد د امر مؤقت یا مطلق عن الوقت کیدل او وسیع یا تنګ کیدل دی او د نهي اقسام د دې امور شرعیه یا امور حسیه نه کیدل او قبیح لعینه یا قبیح لغیره کیدل دی وړاندې مصنف ﷫ یو څو احکام شرعیه او د هغې اسباب او علتونه ذکر کړې دی چې د هغې مختصر تجزیه لاندې ذکر کولې شی۔

| نمبر | شرعي حکم | سبب او علت |
|---|---|---|
| ۱ | په الله تعالی باندې ایمان راوړل۔ | د عالم حدوث یعنی د عدم نه وجود کښې راتلل که صانع نه وي نو دومره لوي عالم څنګه وجود کښې راغې؟ |
| ۲ | د مونځ فرضیت | د وخت داخلیدل. اصل سبب د الله تعالی واجب کول دی چې یو امر باطن دې (او وخت د دې قائم مقام دې)۔ |
| ۳ | د زکوة فرضیت | د مال نصاب مالک کیدل چې زیاتیدونکې یا مال تجارت وی او په باندې یو کال تیر شوې وی۔ |
| ۴ | د روژې فرضیت | شهود شهر رمضان. سببیت باندې یو دلیل اضافت هم دې کماقیل صیام رمضان |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ | صدقهٔ فطر | د هغې سرې كيدل چې د چا كفيل او مربی دې (د راس يموه ويلی عليه نه هم دا مراد دې)۔ |
| ۶ | د حج فرض كيدل . | د بيت الله شريف موجود كيدل . سبب (بيت الله يو دې په دې وجه په ټول عمر كښې فرضيت هم يو ځل دې)۔ |
| ۷ | عشر او خراج | د زمكې حقيقتاً يا تقديراً زياتيدونكې كيدل حقيقتاً زياتوالې په عشر كښې او تقديراً خراج كښې ده۔ |
| ۸ | معاملات | د ژوندكې د بقاء د معاملاتو سره متعلق كيدل . حيوانات خپله بقاء كښې د معاملاتو محتاج نهٔ دی ۔ |
| ۹ | طهارت | د مونځ د مشروعيت سبب د هرقسم طهارت وجوب دې خواه حقيقي وی يا حكمي . صغری وی يا كبری ـ |
| ۱۰ | عقوبات مثلاً حد زنا . حد سرقه حد قذف . حد شرب . قصاص او ديت وغيره ـ | مذكوره مثالونه د عباداتو وو هرچه عقوبات شرعيه دی نو د دې اسباب هم هغه دی چې كوم طرفته دا عقوبات منسوب دی پاتې شو كفارات نو هغه چونكه د عباداتو او عقوباتو مينځ كښې دائر دی لهذا د هغې سبب به هم داسې امر وی چې د ممانعت او اباحت درميان كښې وی مثلاً قتل خطا په دې كښې د ښكار نشانه اخستل امر مباح دې او عدم احتياط ممنوع فعل ـ |

**د هر قسم حکم یا عقوبت د سبب معلومولو طریقه**

د انسان د طاقت خبره نهٔ ده چې په دنیا کښې د خپل متعلقه احکام شرعیه او د عقوباتو وغیره شمار اوکړی او ټول ذهن نشین کړی لهذا شارح رحمه الله په مونږ باندې احسان کړې دې چې د خپلو اکابرو نه حاصل کړې شوې یو آسانه قاعده بیانوی چې بې تکلیفه د هرحکم سبب معلوم کړې شی هغه قاعده دا ده چې هر حکم به یو څیز طرفته منسوب وی په طریقې د اضافت وی یا بل قسم سره لیکن د هرحکم به څهٔ نه څهٔ متعلق به وی بس د حکم وجود هم د منسوب الیه مرهون منت وی مثلاً کسب فلان (د کسب سبب فلانې دې)

**اعتراض** : احناف خو د څیز اضافت شرط طرفته هم کوی حالانکه هغه شرط سبب نه وی مثلاً صدقة الفطر دلته د احنافو په نزد د صدقې سبب راس دې نه چې فطر وکذا حج الاسلام

**جواب** : د څیز سبب اضافت طرفته مجازاً کیږی فلااعتراض علینا

# باب اقسام السنه

مصنف رحمه الله اوسه پورې د کتاب الله متعلق بحث کولو چې اصول شرعیه کښې اصل الاصول دې د کتاب د بحث نه د فراغت نه پس اوس مصنف رحمه الله د سنت بحث کوی

**د سنت معنی** : شارح رحمه الله فرمائی چې د سنت لغوی معنی خو لاره او طریقه ده او د شریعت په اصطلاح کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم اقوال د پیغمبر علیه السلام افعال او هغه امور چې پیغمبر علیه السلام لیدلې وی او

تنکیر یې پرې نهٔ وی فرمائیلې بلکه سکوت یې اختیار کړې وی ،
د دې نه علاوه د سنت یو عام مفهوم هم دې چې د هغې مطابق د
قرونِ اولی د مشهور بزرګانو یعنی حضرات صحابه کرام رضی الله
عنهم او د حضرات تابعین رحمهم الله په اقوالو باندې هم د سنت
اطلاق کیږی اګرچه زیات تر هغې ته د اثر نوم ورکولې شی لیکن
سنت ورته هم وئیلې کیږی څنګه چې حضور اکرم ﷺ ارشاد
فرمائیلې دی چې تاسو زما او زما د خلفاء راشدین چې سراسر
هدایت یافته او مشعل راه دی سنت مضبوطتیا سره اونیسئ ،
حضرت سعید بن مسیب رحمه الله د بنځو په ګوتو باندې د تاوان په
مسئله کښې د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه قول ته سنت
وئیلې دې

شارح رحمه الله فرمائی چې د مصنف مراد عام نهٔ دې بلکه خاص
دې د حضور اکرم ﷺ د اقوال ، افعال او تقریراتو سره

**د سنت تعریف**

حافظ ابن حجر رحمه الله د سنت تعریف دا کړې دې

كل ما اضيف الى النبى ﷺ من قول اوفعل اوصفة اوتقرير
دې ته عرف عام کښې حدیث وئیلې شی

قول نه مراد د حضور ﷺ فرمان مبارک دې

فعل نه مراد د حضور ﷺ افعال دی

صفة نه مراد د حضور ﷺ د شمائلو بیان دې

تقریر نه مراد دا دې چې صحابه کرامو د پیغمبر علیه السلام
وړاندې یو کار کړې وی او باوجود د لیدلو یې په هغې منع نهٔ وی
فرمائیلې یا پیغمبر علیه السلام ته اطلاع ملاؤ شوې وی چې ستاسو په

غیرموجودگی کښې يو کار کيږي ليکن پيغمبر عليه‌السلام پرې خاموش پاتې شوې وی دې ته تقرير وئيلې کيږی او دا هم حجت شرعيه دې ځکه چې د صاحب الشرع نه دا امر محال دې چې هغه يو غيرشرعی کار وينی او باوجود دهغې پرې خاموش پاتې شی.

**د سنتو اقسام**: مصنف رحمه‌الله د سنتو څلور اقسام بيانوی او د دې پيش نظر د اصول حديث قواعد او ضوابط نهٔ دی بلکه د اصول فقه د بيان مطابق دا قسمونه ذکر کوی اګرچه د بعضې نامو او قاعدو په اعتبار سره دواړو کښې اشتراک هم دې

**تنبيه**: د کتاب الله اقسام يعنی خاص . عام . امر . نهی وغيره ټول هم سنت کښې ملحوظ دی د دې ځايې نه د هغې قسمونو بيان دې چې کتاب کښې بالکل نشته۔

**مقدمه**: مصنف رحمه‌الله د سنت بيان په څلور قسمه تقسيم کړې دې بيا د هر تقسيم لاندې متعدد قسمونه دی هغه تقسيمات دا دی.

**تقسيم اول**: د کيفيت اتصال په بيان کښې

**تقسيم ثانی**: د کيفيت انقطاع په بيان کښې

**تقسيم ثالث**: د محل خبر په بيان کښې

**تقسيم رابع**: د نفس خبر په بيان کښې

**د تقسيم اول بيان بطريق وجه حصر**

تقسيم اول زمونږ نه واخله تر د نبی عليه‌السلام پو

د اتصال د کيفيت بيان کښې دې يعنی دا حديث مت

ليکن دا کتل دی چې د دې اتصال د کومې درجې دې د

محور لاندينی درې ځيزونه دی:

(۱) خبر متواتر (۲) خبر مشهور (۳) خبر واحد

**وجه حصر** اتصال به د دواؤ حالو نه خالی نهٔ وی یا خو به کامل وی یا به نهٔ وی که کامل وی یعنی زمونږ نه تر د نبی علیه السلام پورې د دې روایت کونکی په هر تعداد کښې یو کثیر تعداد والا خلق وی نو دا خبر متواتر دې که اتصال کامل نهٔ وی نو بیا به د دواؤ حالو نه خالی نه وی یا خو به اتصال کښې صرف صورتاً شبه وی یا به د صورت او معنی دواړو په اعتبار سره که صرف صورتاً شبه وی نو خبر مشهور دې او که صورتاً و معناً شبه وی نو خبر واحد دې

**د صورتا نه مراد** په قرن اول یعنی د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین په سلسله کښې دا متواتر نهٔ وی اګرچه د دوی نه پس کثیر تعداد کښې روایت کړې شوې وی

**د صورتا او معنا شبه نه مراد:**

درې واړو زمانو یعنی صحابه کرام . تابعین او تبع تابعین رضی الله عنهم په دور کښې د دې خبر اشتهار نهٔ وی شوې اګرچه د دوئ نه پس د دې راوین ډیر تعداد کښې وی

## د خبرواحد متواتر بیان

### د خبر واحد تعریف

وهو الخبر الذي رواه قوم لا يحصى عددهم ولا يتوهم تواطؤهم على الكذب (خبر متواتر هغې ته وئیلې کیږی چې هر دور او زمانه کښې ګنړو راویانو روایت کړې وی چې د هغوی تعداد دومره ډیر وی چې د هغې ټولو په دروغو باندې جمع کیدل محال وی،

**قوله** : لكثرتهم وتباين اماكنهم وعدالتهم الخ

**تشريح** : په دې عبارت سره شارح علامہ رحمه الله فرمائي چې د دې قوم په دروغو باندې د نهٔ متفق کيدلو علت يا خو د دوی د تعداد کثير کيدل دی چې عام طور باندې ډير خلق په دورغو باندې نهٔ شی جمع کيدې نيز د هغوی کورونه او علاقې هم جدا جدا وی نو دا وهم هم لرې کيږی چې ټولو په دروغو باندې اتفاق کړې وی او دې سره عادلان هم وی۔

شريعت کښې عادل هغې سړی ته وئيلې کيږی چې د ګناه کبيره نه ځان ساتونکې وی. د فسق و فجور د کارونو او د ګناه صغيره سره سره د هغې کارونو نه هم ځان ساتی چې د مروت خلاف وی مثلاً په روانه باندې خوراک څکاک کول . غسل خانه کښې مکمل بربنډ کيدل او غسل کول . ليکن د هرې زمانې د تقاضو مطابق د مروت او د غيرت تقاضې هم بدليږی په دې دور کښې به غسل خانه کښې او پرده کښې غسل کولو سره عدالت نهٔ متاثر کيږی

**د عامو محدثينو د ملاجيون سره اختلاف**

د محدثين کرام په نزد آخری دوه شرطونه ملحوظ کيدل نهٔ دی پکار خواه دا خلق فاسقان فاجران وی يا هم د يو علاقې خلق وی که کثير تعداد کښې وی نو د دوی خبر به متواتر شمارلې کيږی

**د خبر متواتر دپاره عدد شرط نهٔ دی**

ملاجيون رحمه الله فرمائي چې د عدد متواتر دپاره د څهٔ عدد د تعيين شرط نشته اګرچه بعضې خلق مختلف عدد مقرر وی بعضو

اووۀ ۷ ـ بعضو خلوينيت ، ۴۰، بعضو لس ( ۱۰ ) او بعضو د اوياۀ ۷۰ قول کړي دي ليکن جمهور محدثين کرام فرمائي چې هر هغه خبر متواتر دې چې د هغې نه د علمِ ضروري فائده حاصليږي

**قول الماتن** يكون اوله كآخره الخ

د ماتن رحمه الله غرض دا دې چې د خبر متواتر دپاره ضروري ده چې د دې د سند په هره هره طبقه کښې د راويانو کثير تعداد موجود وي خو د هغه د سند ابتدائي طبقه وي يا درمياني يا آخري ، د راويانو د کثرت په اعتبار سره دا ټولې طبقې برابر دي ، د اول نه مراد د ظاهر کيدو زمانه يعنې د حضراتِ صحابه کرامو رضي الله عنهم اجمعين زمانه او د آخر نه هغه واسطه مراد ده چې د هغې نه پس متصل مونږ ته روايت راؤرسيدۀ ـ

**قوله** . فلولم يكن في الاول كذلک .... الخ

شارح رحمه الله فرمائي چې کۀ خبر اول کښې کثرت نۀ وي نو دې ته به خبر مشهور وئيلې کيږي اګرچه د دې نه پس زمانو کښې يې بيا بۀ تشهير اوشي کۀ درميان يا آخر کښې شرط د تواتر نيشت وي نو دې ته به خبر منقطع وئيلې کيږي

**د خبر متواتر مثال**

ماتن رحمه الله دوه مثالونه ورکړې دي (۱) نقل قرآن (۲) پنځۀ وخته مونځونه

شارح رحمه الله وضاحت کړې دې چې دا د مطلق تواتر مثال دې ورنه هرچه خبرمتواتر دې نو د هغې په وجود کښې د علماؤ اختلاف دې

**اولني قول**
داسې هيڅ يو متواتر خبر د احاديثو په ذخيره کښې موجود نشته

**دويم قول** : صرف د انما الاعمال بالنيات والا حديث په دې ضابطې باندې پوره خيژی

**دريم قول** : صرف دا حديث د دې ضابطې مطابق دې چې قال رسول الله ﷺ البينة على المدعي واليمين على من انكر

**د خبر متواتر حکم** : د خبر متواتر نه د علم يقينی فائده حاصليږی څنګه چې د علم مشاهده نه د علم بديهی فائده حاصليږی

**د معتزله مذهب** :
معتزله وائی چې خبر متواتر علم يقينی لره نهٔ واجب کوی بلکه د هغې علم فائده ورکوی چې جانب صدق لره راجح کوی

**د بعضې محدثينو مذهب** : د خبر متواتر نه د علم استدلالی يعنی د علم نظری فائده حاصليږی يعنی د دې په اوريدو سره اول په سماع کښې د علم يقينی فائده نهٔ حاصليږی بلکه مقدمات يعنی صغری او کبری ملاوولو نه پس نتيجه اخذ کولې شی

**په خبر متواتر سره علم بديهی حاصلولو باندې دليل** :
چې کله يو لويه ډله د يو څيز متعلق خبر ورکوی نو زمونږ مشاهده ده چې د هغې په اوريدو سره علم حاصليږی او هيڅ قسم شک او شبه پاتې نهٔ شی که د خبر متواتر نه د علم خصول مقدماتو ته ترتيب ورکولو او نتيجه راويستلو باندې موقوف وې نو ورو ماشومانو او ان پړه سړی ته به د دې نه علم نهٔ حاصليدهٔ حالانکه

المدينة موجودنه: مدينې منوري علم ځنګه چې عالم ته حاصليږي نو دغه شان مشوره ته او از پرڅرې ته هم حاصليږي او د دې دپاره مونږ ته د څهٔ دليل پيش کولو ضرورت قطعاً نه پيښيږي

## (۲) د خبر مشهور بيان

### د خبر مشهور تعريف

خبر مشهور هغې ته وئيلې کيږي چې د هغې روايت کوونکي قرن اول، اوله زمانه، کښې د تواتر حد ته اونهٔ رسيږي اګرچه د قرن اول نه پس حد د تواتر ته رسيدلې وي د ماتن ﷺ د الفاظو ما کان من احاد الاصل نه هم دا مراد دې چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دور کښې خبر واحد وي اګرچه د هغوي نه پس د تواتر حد ته رسيدلې وي يعنې د تابعينو او تبع تابعينو په دور کښې دومره راويانو نقل کړې وي چې د هغوی په دروغو باندې جمع کيدل او د هغوی نه اتفاقي طور دروغ صادر کيدل د وهم ګمان نه بالکل بهر وي

ياد ساتئ چې د دې دريو زمانو نه پس به هيڅ اعتبار نهٔ وي ځکه چې د دې دريو زمانو نه پس خو هر حديث د شهرت حد ته رسيدلې دي

### د خبر مشهور حکم

دا خبر علم طمانينت لره واجب کوي يعنې د دې په اوريدو سره داسې علم حاصل شي چې په هغې کښې د جانب صدق راجح کيدو سره قلبي اطمينان حاصليږي. د خبر متواتر په ذريعې سره کتاب الله

باندې زياتوالې جائز دې

**د خبر مشهور مرتبه**

د خبر مشهور مرتبه د خبر متواتر نه کمه او د خبرواحد نه زياته دهٔ

**د خبر مشهور د منکر حکم**

جمهور علماءکرام فرمائی چې د خبرمشهور انکار کوونکې فاسق او گمراه دې البته کافر به ورته نهٔ وئيلې کيږې او د حنفی امام مفسر قران امام ابوبکر جصاص رازی رحمه الله په نزد د خبر متواتر په شان د خبر مشهور منکر هم د دائره اسلام نه خارج دې

## (٣) د خبر واحد بيان

**د خبر واحد تعريف**

وهو کل خبريرويه الواحداوالاثنان فصاعداًولاعبرة للعددفيه بعد ان يکون دون المشهوروالمتواتر

هر هغه خبر چې هغه يو يا دواؤ يا د دې نه زياتو راويانو روايت کړې وی خبر واحد دې په دې شرط چې اولنو زمانو يعنی د صحابه کرامو ، تابعينو او تبع تابعينو رضی الله عنهم په زمانه کښې د خبر مشهور يا خبر متواتر حد ته رسيدلې نهٔ وی د دې نه پس به د راويانو د کثرت هيڅ اعتبار نهٔ وی

قال الماتن يرويه الاحداواثنان فصاعداًالخ

شارح رحمه الله د مصنف رحمه الله په دې انداز کښې د خبر واحد تعريف بيانولو وجه بيان فرمائی چې د يو نه پس دواؤ ذکر کولو سره ماتن رحمه الله په ابوعلی جبائی معتزلی باندې رد کوی چې د

هغهٔ په نزد د خبر د مقبول کیدو دپاره د دې عزیز کیدل شرط دی یعنې چې کم از کم دواؤ راویانو روایت کړې وی د امام حاکم نیت یوری نه هم داسې خبره منقول ده لیکن دا صحیح نهٔ ده بلکه خبر واحد شرعاً معتبر دې څنګه چې نزدې راځي

**د خبر واحد حکم:**

خبر واحد عمل نره واجب کوی اګرچه د علم یقینی فائده نهٔ ورکوی

**د خبر واحد مفید للعمل کیدو باندې د اصول اربعه نه دلائل**

قال الماتن بالكتاب والسنة والاجماع والمعقول

چونکه معتزله او بعضې نور محدثین د خبر واحد مفید للعمل کیدو منکر وو په دې وجه د هغوی په تردید کښې ماتن فرمائی چې مونږ ته د اصول اربعه یعنی د قرآن مجید ، د حدیث رسول الله ﷺ ، اجماع امت او د قیاس نه واضح طور معلومیږی چې خبرواحد مفید للعمل دې د ماتن د کلام د وضاحت دپاره شارح د هر اصل وضاحت مثالونو سره فرمائیلي دي

**د خبرواحد په حجیت باندې د کتاب الله نه دلیل**

فلولا نفر من كل فرقة منهم طائفة ليتفقهوا في الدين ولينذروا قومهم اذا رجعوا اليهم لعلهم يحذرون (القرآن)

**ترجمه** ملا جیون فرمائی د لیتفقهوا لینذرو او د رجعوا ضمیرونه د طائفة طرفته راجع دی او د الیهم او لعلهم ضمیرونه فرقة طرفته او طائفة یو یا دوآؤ سړو ته وئیلي شی او لوې ډلې ته فرقه وئیلي شی.

**طرز استدلال** : الله تعالی د لعلهم یحذرون په ذریعې لوې ډلې باندې واجب کړه چې هغوی د دې یوځو کسانو اقوال قبول کړي او په دې باندې عمل اوکړي د دې نه معلومه شوه چې خبرواحد موجب للعمل دې

**د آیت کریمه دویم تفسیر** : د دې آیت کریمه یو دویمه توجیه هم شوې ده د هغې مطابق اګرچه زمونږ دعوی نهٔ ثابتیږي البته ملاجیون رحمه الله اجمالاً هغه هم ذکر کړې ده او د مزید تفصیلات دپاره یې د خپل شاهکار تالیف تفسیرات احمدیه حواله ورکړې ده

د دې توجیه حاصل دا دې چې د لیتفقهوا لینذروا او رجعوا ضمیرونه د فرقة طرفته راجع کړې شي او د الیهم لعلهم ضمیرونه د طائفة طرفته او د قوم نه مراد هم طائفة وي . مطلب به دا شي چې پکار دي چې جهاد فی سبیل الله په غرض سره هره لویه ډله کښې یو وړوکې جماعت د ملک نه بهر اوځي او سرحدانو باندې جهاد اوکړي او هغه لویه ډله په ملک کښې اوسیږي او دینی مسائل او دغه شان په قرآن او حدیث کښې بصیرت او پوهه حاصل کړي دې دپاره چې کوم مجاهدین د جهاد په وجه سره علم دین حاصل نهٔ کړې شي او واپس وطن ته راشي نو دا لویه ډله هغوی او ویروي، او انجام طرفته ئې متوجه کړي

**په الکتاب سره د ماتن دویم غرض**

شارح رحمه الله فرمائي چې عین ممکن ده چې د حضرت شیخ عبدالله نسفی رحمه الله اشاره دې آیت طرفته وي

واذاخذالله میثاق الذین اوتواالکتاب لتبیننه للناس ولاتکتمونه

**ترجمه** په دې کړئ هغه وخت اې محبوب ﷺ! چې کله مونږ د اهل کتاب نه وعده واخستله په دې خبره باندې چې تاسو ته د هدايت کوم علم ذکرې شوې دې نو هغه خلقو ته واضح طور سره ښودل او په دې کښې هيڅ قسم څيز نه پټول

**طرز استدلال**

اهل کتابو باندې د احکاماتو بيانول او وعظ فرض کړې شوې وو چې خلق دا اورې او په دې باندې عمل کوی د دې نه هم ثابته شوه چې خبر واحد (د اهل کتابو) خبر موجب للعمل دې

**د خبرواحد په حجيت باندې د سنت نه دليل**

شارح ﷫ اختصار سره څلور مثالونه ورکړې دی چې د هغې مختصر وضاحت لاندې ذکر کړې کيږی

(۱) **خبر بريره** حضرت بريره رضي الله عنها د حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها آزاد کړې شوې وينځه وه يوځل د دوی خوا ته نبی کريم ﷺ تشريف راوړو نو وې کتل چې ديگچی يې په اور باندې کيخودلې دې . چې پيغمبر عليه السلام ترې سر اوچت کړو نو په هغې کښې غوښه خوټکيدله . لږ ساعت پس حضرت بريره رضي الله عنها د پيغمبر عليه السلام په خدمت کښې طعام حاضر کړو نو په هغې کښې هغه غوښه نۀ وه نو پيغمبر عليه السلام ورته د مذاق په طور اوفرمائيل چې په خپله غوښه خورې او په مونږ باندې سبزی خورې نو په دې باندې هغې خپل عذر بيان کړو چې يا رسول الله ﷺ زما مور پلار دې په تاسو باندې قربان شی دا د صدقې غوښه ده او تاسو د صدقې نه پرهيز کوی نو په دې وجه مې هغه

غونښـه ستاسـو پـه خـدمت کـښې حاضـره نـه کـړه . پيغمبـر عليه السلام اوفرمائيلْ چې لك صدقة ولنا هدية يعنى ستا صدقه چې کله زمونږ طرفته منتقل شی نو ستا لـه طرفـه بـه هديه شی ځکـه چې د ملک بدليدو سره هغه څيز هم بدليږی

**طرز استدلال** : دلتـه د صـدقې متعلق نبـی کـريم صلی الله عليه وسلم د حـضرت بريره رضی الله عنها خبر قبول کړو چې خبرواحد وو۔

(۲) **خبر سلمان فی الهديه** :

شارح رحمه الله فرمائی چې هم دغـه شان د هديې بارهٔ کـښې يوځلُ نبی کريم صلی الله عليه وسلم د حضرت سلمان رضی الله عنه خبر واحد قبـول کـړې وو چې هغوی هم صرف يواځې وو بل هيڅوک ورسرهٔ نهٔ وو۔

(۳) **بعث علياومعاذا**: دريم مثال دا دې چې پيغمبرعليه السلام يو صـحابی د علاقـې پـه ټولـو خلقـو بانـدې قاضـی جـوړ کـړو او د دې يـو سـړی اطاعت او د دهٔ نافذ کـرده ټـول احکامات يـې پـه ټولـو خلقـو بانـدې منل لازم کړل مثلاً حضور عليه السلام يو ځل يمن طرفتـه حضرت علی ابن ابی طالـب حـاکم جـوړ کـړو او وې ليـږلـو ، دويـم ځل بآنـدې يـې يـو طرفتـه حضرت معـاذ بـن جبـل رضـی الله عنـه او بـل طرفتـه حضـرت ابوموسـی اشـعری رضـی الله عنـه قاضـی او حـاکم جـوړ کـړل او وې ليږل که خبرواحد مقبول نهٔ وې نو پيغمبر عليه السلام يو کس ولې ليږلو ؟

**نکته** : د احاديثو پـه ذخيره کـښې تلاش کـولو سـره داسـې پـه سـوونو مثالونه مونـدې کيدې شی۔

**ودحية الکلبی الی قيصر روم**

د صلح حديبيه پـه نتيجه کـښې چې کله د قريش مکه د ظلمونو او

شرونو نه لرِ امن حاصل شو او د اندروني او بيروني حملو نه حفاظت اوشو نو پيغمبر عليه السلام نزدې او لرې ملکونو والا بادشاهانو ته د اسلام دعوت اوليږلو ، اکثرو خطونو اوړونکې به يو صحابي وو. مثلاً د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم خط قيصرروم هرقل طرفته اوړونکې صرف يو صحابي يعني حضرت سيدنا دحيه کلبي بن خليفه الکلبي رضي الله عنه وو که خبر واحد حجت نۀ وو نو حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د يو په ځايې ډير کسان ولې نۀ ليږل

**اعتراض** : د خبر واحد د حجيت په اثبات باندې چې څومره هم حديثونه پيش کړې شوې دی نو هغه خوټول آحاد دی نو دغه شان خو اثبات الآحاد بالآحاد لازم راځي

**جواب** : شارح رحمه الله د دې اعتراض جواب په دې الفاظو کښې فرمائيلې دې هذاالاخبار وان کانت آحادالخ د جواب خلاصه دا ده چې مونږ منو چې دا هم اخبار آحاد دی ليکن دا امت په خوشحالی سره منلې دی لهذا په خوشحالی سره د قبلولو په وجه اوس دا صرف آحاد نۀ دی بلکه د خبر مشهور په درجه کښې دی فلايلزم اثبات اخبارالآحادباخبارالآحاد

## (۳) د خبرواحد په حجيت باندې اجماع ده

د اجماع شارح رحمه الله درې مثالونه ورکړې دی دوه د صحابو سره خاص دی او يو عام دې د مثالونو مختصر وضاحت لاندې ذکر کولې شی۔

### (۱) ان الصحابة احتجوا الخ

د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم نه پس چې به کله هم د حضرات صحابه کرامو

رضی الله عنهم مینځ کښې په څۀ خبره باندې اختلاف پیدا شو نو هغوی به په حدیث باندې فیصله کوله که دې حوالې سره به یو صحابی هم حدیث بیان کړو نو بغیر چون چرا به ټولو حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم قبول کړو او هم په هغې باندې به یې فیصله کوله۔

### واحتج ابوبکر علی الانصار

د حضور اکرم ﷺ د وفات نه پس چې کله د خلافت په سلسله کښې اختلاف پیدا شو او ثقیفه بنوساعده کښې انصارو مطالبه اوکړه چې یو امیر به د مهاجرینو او یو به د انصارو نه وی نو د نبی علیه السلام راز دار مبارک یعنی حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دا مسئله دغه شان حل کړه چې ما د پیغمبر علیه السلام نه اوریدلي دي هغوی فرمائیل چې الائمة من قریش یعنی امامت او خلافت د قریشو حق دي لهذا د حدیث په تصریح سره انصار د امامت او خلافت حقدار نۀ دی نو قربان شم د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم د عشق او رښتونی محبت نه کوم چې د هغوی د سرور کونین نبی کریم ﷺ سره وو چې په لږ ساعت کښې ټول اختلاف ختم شو دلته ټولو صحابه کرامو خبر واحد لره حجت اوګرځولو او بغیر د څۀ چون چرا نه یې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خبر تسلیم کړو۔

### اجمعوا علی قبول خبر الآحاد الخ

دا عام مثال دي چې په هر دور کښې د امت مسلمه په دې خبره باندې اجماع ده چې که د یو سړی د اوبو په پاک او پلیت

کیدو کښې شک وی او هیڅ فیصله نهٔ شی کولې او دې دوران کښې ورته یو کس هم اووائی چې دا اوبهٔ پاکې دی نو دې سړی دپاره به دې اوبو په ذریعې سره پاکی حاصلول لازم وی تیمم به صحیح نهٔ وی ۔ دغه شان د قبلې د سمت مسئله هم ده که یو سړې ورته هم د قبلې سمت اوښائی چې قبله دې طرفته ده نو دې سړی دپاره سوچ او فکر یعنی تحری جائز نه ده بلکه هغې طرفته مخ کول واجب دی

## د خبرواحد د حکم متعلق د بعضې خلقو نظریه

وقیل لاعمل الاعن الخ ــ د ماتن ﷺ یو بله نظریه بیان کړې ده دې حضراتو خو نه د خبرواحد د حجیت نه انکار کړې دې ځنګه چې معتزله کوی او نهٔ دې لره مطلق حجت او قابل د عمل ګڼړی بلکه دوی د الله تعالی د دې فرمان په رڼا کښې وائی ( ولا تقف ما لیس لك به علم (چې د کوم څیز باره کښې درته معلومات نهٔ وی نو د هغې اتباع مهٔ کوه ) چې علم د عمل دپاره لازم دې او عمل د علم دپاره ملزوم په دې وجه بآندې خبرواحد موجب للعلم نهٔ دې ځکه چې دا موجب للعمل نهٔ دې

## د فلا یوجب او د یوجب العلم وضاحت

دلته د لف نشر مرتب په طور د خپلې دعوې علتونه پیش کوی چې د هغې خلاصه دا ده چې خبرواحد عمل نه واجب کوی ځکه چې عمل ملزوم دې او علم لازم دې چې لازم منتفی وی نو ملزوم به هم منتفی وی لهذا چې هرکله دا مفید للعلم نهٔ دې نو مفید للعمل به هم نهٔ وی

بل طرفته كه چرته دا موجب للعمل او گرځولي شي ، ځنكه چې د جمهور رائې ده ، نو دې ته به موجب للعمل وئيل هم واجب وي ځكه چې هر كله ملزوم يعنى عمل ثابت دې نو لازم يعنى علم هم ثابت كيدل پكار دی ـ

**د جمهور له طرفه جواب**

ستاسو د آيت نه استدلال د سياق وسباق نه خلاف دې ځكه چې د آيت تعلق د شهادت زور ( د دروغو گواهى ) نهٔ قبلولو سره دې

**وجه** : لاتقف ماليس لك به علم كښې نكره (علم) په سياق د نفى (ليس) كښې واقع ده

نو د آيت حاصل دا دې چې د كوم څيز متعلق تاسو ته هيڅ قسم معلومات نهٔ وی نو د هغې اتباع مهٔ كوئ

**د خبرواحد مدار په احوال رواة باندې دې**

د خبرواحد رواة چونكه د خبر متواتر يا خبر مشهور حد ته نهٔ وی رسيدلې په دې وجه د رواة د حالت علم هم ضروری دې دپاره چې كوم راوی د كومې درجې وی نو چې د هغهٔ په روايت ( يعنى خبرواحد ) باندې هغه شان حكم اولگولې شى

**د احوال رواة حكم په طريقه د وجه د حصر**

د خبرواحد راوی به د دواؤ حالو نه خالى نهٔ وی معروف به وی يا مجهول كه معروف وی نو بيا به د دواؤ حالو نه خالى نهٔ وی معروف بالفقة والعدالة به وی يا به صرف معروف بالعدالة وی كه معروف بالفقه والعدالة وی نو د هغهٔ روايت به په قياس باندې مقدم وی أو كه صرف معروف بالعدالة وی نو د هغهٔ روايت به په

قیاس باندې پیش کولې شي که د قیاس خلاف وی نو رد کولې به شي او که راوی مجهول وی نو د دې پنځهٔ قسمونه دی یا خو به بالاتفاق اسلافو د دهٔ روایت اخستلې وی یا به بعضو د دهٔ روایت اخستلې وی او بعضو به نهٔ وی یا به ټولو اسلافو د طعن نه سکوت او خاموشي اختیار کړې وی یا به یې پرې رد کړې وی یا به اسلافو ته د دې خبر نهٔ وی رسیدلې او د هغوی له طرفه به رد منقول وی یا نهٔ . په اولنو دریو قسمونو کښې د مجهول راوی روایت د معروف بالعدالة په شان دې او څلورم قسم کښې د دهٔ روایت مردود او پنځم قسم کښې کهٔ د دهٔ روایت خلاف قیاس نهٔ وی نو عمل کول پرې جائز دی واجب نهٔ دی

## د یو څو اصطلاحاتو وضاحت

### معروف بالفقه والاجتهاد

او د دې مصداق حضرات خلفاء راشدین ،عبادله ثلثه یعنی حضرت عبدالله بن عمر . عبدالله بن عباس . عبدالله بن مسعود یا عبدالله بن زبیر . زید بن ثابت . ابی بن کعب انصاری ،معاذ بن جبل. سعد بن مالک. ابوموسی اشعری. او حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنهم اجمعین دی یعنی هغه صحابه کرام چې نهٔ صرف په قرآن کریم او سنت رسول ﷺ باندې ښهٔ طریقې سره پوهیدل بلکه د عوامو د نفع دپاره به چې کله څهٔ امورو باندې شرعی حکم موجود نهٔ وو نو نصوص کښې به یې غوروفکر کولو سره د هغې حکم هم تلاش کولې شو یعنی صرف تفقه او اجتهاد هم کافی نهٔ دې بلکه تقدم او اولیت هم ضروری دې چې معروف او مسلم هم وی .

**خلافا لمالك الخ**

د جمهورو په نزد د خبرواحدالمروی من المعروفین بالفقه والاجتهاد حکم بیان شوي دي ده به په قیاس باندي فوقیت حاصل وی لیکن حضرت امام مالک د جمهورو خلاف قیاس مقدم کوی چې د نورو قسمونو د رواة په شان به دا هم په قیاس باندي پيش کولې شي که د قیاس موافق وی خو قبول به وی ورنه رد کولې به شي

**د امام مالک رحمہ اللہ دلیل**

هغوی فرمائی چې هرکله ابوهریرة رضی الله عنه روایت بیان کړو من حمل جنازة فلیتوضا (چې څوک د جنازي کټ اوچت کړی نوبیا دي اودس اوکړی) د دې په اوریدو سره حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما عرض اوکړو ایلزمنا الوضوء بحمل عیدان یابسة (یعنی اوچ لرګو اوچتولو سره هم اودس لازمیږی) د دې نه معلومه شوه چې ابن عباس رضی الله عنه په روایت باندي قیاس ته ترجیح ورکړه

**جواب**: اکثرو فقهاء کرامو حضرت ابوهریرة رضی الله عنه په فقیه صحابه کرامو کښې نۀ دي شمار کړي لهذا هغه قسم اول کښې داخل نۀ دي بلکه د دویم قسم په رواة کښې دي چې د هغوی په روایاتو باندي بالاتفاق قیاس ته ترجیح حاصل ده

**د قسم ثاني پوهو رواة**:

حضرت انس بن مالک او حضرت ابوهریره رضی الله عنهما وغیره

**د حدیث مصراة تشریح**

ماتن رحمہ اللہ د قسم ثانی د رواة د حدیث نه د قیاس مقدم کیدو مثال

په حديث مصراة سره ورکړې دې چې د هغې راوی حضرت ابوهريره رضی الله عنه دې ليکن د خلاف قياس کيدو په وجه سره په دې حديث باندې عمل نۀ کيږی د دې اجمال تفصيل دا دې

مصراة لغت کښې د تصريه (منع کولو) نه دې او اصطلاح کښې د دې مطلب دا دې څاروې د خرڅولو په نيت سره د هغې نه څو ورځې مخکښې پی نۀ لوشل دپاره د دې چې اخستونکې د دې په زياتو پيو کولو باندې دهوکه اوخوری او ډير قيمت ادا کړی او د دې نه پس ورته بيا پته اولګی چې دا څاروې خو دومره پی نه کوی . دې باره کښې حضرت ابوهريرة رضی الله عنه حديث نقل کړې دې چې کۀ يو سړی سره داسې معامله پيښه شی وهوبخيرالنظرين نو هغۀ ته دوه اختياره حاصل دی يا خو دې څاروې بند کړی ورنه څآروې دې هم واپس کړی او بائع ته دې يو صاع کهجورې هم اضافی ورکړی دا د دې پيو عوض دې چې دې مشتری د دې څاروی نه کوم پی حاصل کړې دی دا حديث خلاف قياس دې ځکه چې

(۱) لبن مثلی دی د دې ضمان هم مثلی يعنی هم پی کيدل پکار دی

(۲) که ضمان بالقيمت وی نو چې څومره پی دی د هغې قيمت ادا کول پکار دی حالانکه يو صاع فروټ خو نۀ ضمان مثلی دې چې ښکاره دې او نۀ بالقيمت ځکه چې کيدې شی چې د دې پيو قيمت د دې نه کم وی يا زيات وی په دې بناء باندې ځم د فقهاؤ اختلافی اقوال دی ۔

(۱) د امام مالک او امام شافعی ﷺ په نزد به د حديث په ظاهر باندې عمل کولې شی

(۲) د امام ابویوسف او عبدالرحمن بن ابی لیلی رحمهما الله په نزد به د پیو قیمت ادا کولې شی۔

(۳) د امام ابوحنیفه په نزد او د ملا علی قاری رحمه الله په نزد غاروې بالکل واپس کول جائز نه دی۔

## والتقسيم الرابع في بيان نفس الخبر

د دې ځایی نه مصنف رحمه الله د خبر واحد څلورم تقسیم بیانوی چې د دې هم څلور قسمونه دی:

**قسم اول**: هغه خبر چې د هغې د رښتوني کیدو یقین وی

**مثال**: د حضور صلی الله علیه وسلم خبر په دې باندې دلیل دا دې چې د نورو پیغمبرانو په شان حضرت محمد علیه السلام هم د دروغو سره د نورو صغیره او کبیره هرقسم ګناهونو نه معصوم دې

**قسم ثانی**: هغه خبر چې د هغې د دروغ کیدو یقین وی

**مثال**: د فرعون د خدایی دعوی وقال انا ربکم الاعلی په دې باندې دلیل دې چې فرعون یو انسان وو او ټول انسانان حادث دی یعنی اول د دوی وجود نه وو هل اتی علی الانسان حین من الدهر لم یکن شیئا مذکورا (آیا انسان بآندې یو داسې زمانه نه ده راغلې چې دې بالکل قابل ذکر نه وو) او ټول انسانان فانی دی کل من علیها فان ویبقی وجه ربک ذوالجلال والاکرام (په مخ د زمکه چې څۀ هم دی نو دا ټول فنا کیدونکې دی او صرف د الله تعالی ذات به باقی وی) او کوم چې معبود وی نو هغه فانی او حادث کیدې نه شی۔

**نکته** : دلته حضرت مولنا شیخ احمد صدیقی المروف ملاجیون ﷫ د دلیل عقلي نه استدلال کړې دې او د صغری نه پس یې نتیجه راویستلې ده۔

**دریم قسم**

هغه خبر دې چې په هغې کښې د صدق او کذب دواړو احتمال وی

**مثال**

د فاسق خبر کما قال تعالی اذا جاءکم فاسق بنبا فتبینوا (چې کله یو فاسق تاسو ته څهٔ خبر راوړي نو تاسو د هغې تحقیق اوکړئ،

د فاسق په خبر کښې د دواړو قسمونو احتمال کیدو باندې دلیل دا دې چې د دې سړي دوه حیثیتونه دی یو حیثیت دا چې دا مسلمان دې او د مسلمان خبر عموماً رښتیا وی دویم حیثیت دا دې چې دې د فسق مرتکب دې او د فاسق سړي خبر دروغ وی

**حکم** : ملاجیون ﷫ د اولنی دواؤ قسمونو حکم بیان نهٔ کړو او د شاګردانو په ذهانت باندې یې انحصار اوکړو ځکه چې ټول پوهیږی چې کوم خبر رښتوني وی نو په هغې بآندې علم او عمل واجب وی او چې کوم خبر دروغ وی نو د هغې پریخودل واجب وی د دریم قسم حکم یې په خپله بیان کړو چې دا داسې خبر دې چې په دې باندې توقف اوکړې شی حیث قال فهو واجب التوقف

**د واجب التوقف نه څهٔ مراد دي ؟**

د دې نه مراد دا دې چې د اوریدو سره داسې خبر باندې نهٔ د صدق حکم اولګولې شی او نهٔ د کذب بلکه خاموشی سره به د دې

تحقیق کولې شی او د نورو قرینو او شواهدو په رڼا کښې بیا فیصله کولې شی چې دا خبر رښتونې دې یا دروغ دې

**نکته** : هغه خبر چې په هغې کښې د صدق او کذب دواړو احتمال وی لیکن یو احتمال د دویم احتمال نه راجح وی

**مثال** : د عادل سړی خبر چې په هغې کښې د روایت ټول شرطونه موجود وی۔

### د نفس خبر تقسیم رابع په طریقه د وجه د حصر

نفس خبر به د دواؤ حالو نه خالی نهٔ وی یا به صدق او کذب کښې یو یقینی وی یا به نهٔ وی که صدق یقینی وی نو دا قسم اول دې او که کذب یقینی وی نو بیا قسم ثانی دې که یو هم یقینی نهٔ وی نو بیا به د دواؤ حالو نه خالی نهٔ وی چې یو احتمال به راجح وی یا نهٔ که یو احتمال هم راجح نهٔ وی نو دا دریم قسم دې او که یو احتمال په کښې راجح وی نو دا څلورم قسم دې

**نوټ** : دا وجه د حصر مؤلف او شارحینو نهٔ ده بیان کړې مونږ د طالبانو د سهولت دپاره بیان کړې ده

**قوله** : ولهذا النوع المقصود ههنا

### د ماتن او شارح د قول شرح

ماتن مولانا ابو البرکات حضرت عبد الله نسفی رحمه الله د مختصر تعریف نه پس اوفرمائیل چې د نفس خبر د څلورم تقسیم دا څلورم قسم دلته مقصود دې او د دې درې طرفونه دی شارح رحمه الله دغه درې اطراف بیان کړې دی ۱، طرف سماع ۲، طرف حفظ ۳، طرف اداء

## د اطراف ثلاثه تعريف

(۱) **طرف سماع** : د دې نه مراد د اوريدونکی د محدث نه اولاً حديث اوريدل دی

(۲) **طرف حفظ** : د دې نه مراد دا دې چې سامع د محدث نه کوم حديث اوريدلې وو هغه ئې د شروع نه آخرپورې حفظ يعنی ياد کړی.

(۳) **طرف اداء** : د دې نه مراد دا دې چې کوم حديث سامع اوريدو سره يې د کړې وو هغه بل ته اورسوی چې خپله ذمه يې پوره شی

بيا اقسام د ثلاثه کښې په هر يو قسم کښې دوه پهلو (رخصت او عزيمت) دی گويا د دريو په ځايې شپږ قسمونه شو چې دا دی

(۱) طرف سماع عزيمتاً (۲) طرف سماع رخصتاً (۳) طرف حفظ عزيمتاً (۴) طرف حفظ رخصتاً (۵) طرف اداء عزيمتاً (۶) طرف اداء رخصتاً ـ

## مختصر تعريفونه

۱ **طرف سماع . طرف سماع کښې عزيمت** : طرف سماع کښې د عزيمت پهلو دا دې چې هغه د جنس اسماع نه وی ـ

**طرف سماع کښې رخصت** :

طرف سماع کښې د رخصت پهلو دا دې چې هغه د جنس اسماع نه نه وی د جنس اسماع تفصيل دا دې چې محدث خپل شاگرد ته مخامخ يا د هغهٔ په غيرموجودگی کښې حديث واؤروی ـ

بیا د سماع اووهٔ قسمونه دی ماتن هغه مختصر بیان کړې دی .
(۱) سماع من الشیخ (۲) قراءة علی الشیخ (۳) اجازت (۴) مناوله
(۵) مکاتبت (۶) وجاده (۷) اعلام

(۱) **سماع من الشیخ** :
شیخ د حدیث الفاظ په خپله بیان کړی او طالب علم یې واؤری

(۲) **قراءة علی الشیخ** :
طالب علم حدیث واؤروی او شیخ یې واؤری

(۳) **اجازت** :
شیخ طالب علم ته د خپل روایت کړده حدیث اجازت ورکړی

(٤) **مکاتبت** : شیخ په خپله یو حدیث اولیکی او طالب علم ته ئې ورکړی یا یې د چا په ذریعې وراولیګی او اجازت ورکړی

(۵) **مناولت** : شیخ د خپلو احادیثو کتاب طالب علم ته ورکړی او ورته اووائی چې دا کتاب زما د فلانی شیخ په لیکلو شوو احادیثو باندې مشتمل دې او ماتاته اجازت درکړو چې تهٔ دا زما له طرفه روایت کوه . مناولت د اجازت نه بغیر معتبر نهٔ دې البته د اجازت دپاره مناولت ضروری نهٔ دې

(٦) **وجاده** :
طالب علم د خپل شیخ لیکلې شوې څه احادیث اومومی او ورته پوره او کامل یقین اوشی چې دا هم د شیخ خط دې

(۷) **وصیت** : شیخ دا وصیت اوکړی چې فلانی بن فلانی ته دې زما احادیث ورکړې شی .

(٨) **اعلام** شيخ يو طالب علم ته خبر ورکړي چې ما دا حديثونه روايت کړي دي

**حکم** : د قراءة على الشيخ باره کښې ملاجيون رحمه الله فرمائی چې دا طريقه د ټولو نه زيات احتياط باندې مبنی ده چې په هغې يې دا دليل پيش کړې دې چې کله طالب علم په خپله حديث لولی نو هغه به پوره توجه سره د متن الفاظ ادا کوی ځکه چې هغه د خپل ځان دپاره لولی او شيخ به دومره احتياط نۀ کوی ځکه چې هغه د خپل غير دپاره عامل وی په دې باندې ماتن او شارح دا په قسم اول بندې ساتلې دې او سماع من الشيخ يې د دې نه پس ساتلې ده او اکثر محدثين کرام بالخصوص حافظ ابن حجر مکی رحمه الله او علامه جلال الدين سيوطی رحمه الله چې د هغوی علم په اصول حديث کښې د جلالت شان نه انکار ممکن نۀ دې هغوی سماع من الشيخ اول او قراءة دويم ګرځوی او په دې باندې يو دليل خو دا دې چې د حضور اکرم صلی الله عليه وسلم هم دا طريقه وه چې پيغمبر عليه السلام به په خپله د حديث قراءة فرمائيلو او صحابه کرامو رضی الله عنهم به تری يادولو دويم دليل دا هم دې چې د طالب علم نه په متن کښې اعراب او تلفظ کښې د غلطی امکان زيات دې ځکه چې دا مشاهده ده او د دې په مقابله کښې شيخ د خپل علم و فضل په وجه سره داسې غلطی نۀ شی کولې . طالب علم خواه هرڅومره توجه سره چې عبارت او سبق لولی ليکن د خپل شيخ مقابله نۀ شی کولې . بهرحال دلته مونږ د صاحب متن او د شارح تابع يو لهذا د هغوی خبره منل به پکار وی چې قراءة على الشيخ کښې ډير احتياط دې

ځکه چې شاګرد به د صحيح تلفظ ادا کولو کوشش زيات کوی ځکه چې هغه د خپل ځان دپاره عامل دې او شيخ ته به د اصلاح موقع زياته په لاس راځی ځکه چې د هغهٔ توجهٔ به صرف په کتاب باندې وی . باقی قسمونه د څو شرطونو سره معتبر دی چې په هغې کښې بنيادی شرط د شيخ له طرفه د هغې احاديثو د روايت کولو اجازت کول دی د شيخ د تحرير باره کښې دليل سره د دې خبرې ثابت کول ضروری دی چې دا هم د شيخ تحرير دې دغه شان چې کوم قاصد پيغام راوړی د هغې قاصدُ باره کښې هم دليل سره دا خبره معلومه وی چې دا هم د شيخ راليږلې شوې قاصد دې ـ

**قول الشارح** : فهذه اربعة اقسام للعزيمة فى طرف السماع الخ

**تشريح** : شارح رحمه الله فرمائی چې د طرف سماع په قسمونو کښې عزيمت په ابتدائی څلورو قسمونو کښې دې او باقی قسمونه چې په هغې کښې اسماع نشته هغه د رخصت دی مونږ د دې قسمونو جدا تذکره کوو ـ

**عزيمت فى طرف السماع**

(١) قراءة على الشيخ (٢) سماع من الشيخ (٣) مکاتبت خواه شيخ په خپله خپل قلم سره د طالب علم له طرفه اوليکی چې د هغې صورت دا دې

من فلان بن فلان الى فلان بن فلان بسم الله الرحمن الرحيم والحمد لله رب العلمين اما بعد حدثنى فلان عن فلان (د دې نه پس به سند بيان کړی او سند به حضور اکرم ﷺ ته اورسوی او د حديث متن به تحرير کړی ، بيا به اوليکی اذا بلغك كتابى هذا

وفهمته فحدث به عنی یا دې شیخ خط نهٔ لیکی بلکه خپل قاصد دې اولیږی او ورته دې اووائی چې زما فلانی شاګرد ته اووایه چې ما دا حدیث د فلان ابن فلان نه اوریدلې دې او چې کله تا ته زما دا قاصد دا اورسی نو تهٔ زما په سند سره دا حدیث نقل کولې شې۔

**رخصت فی طرف السماع (۱) اجازت (۲) مناوله (۳) مجازله**

**د مجاز له تشریح د ملاجیون رحمۃ اللہ علیہ په الفاظو کښې**

ملاجیون رحمۃ اللہ علیہ دا قسم مثال سره بیان کړې دې فرمائی چې کله موتږ یو سړی ته د مشکوة (د احادیثو مبارکو کتاب) اجازت ورکړو او هغهٔ د دې اجزت نه ورانده دې خپل ذاتی محنت. قوت او استعداد سره یا د شروحاتو په مدد سره په دې کښې د درج احادیث علم حاصل کړې وی لیکن ورته دا سې څهٔ صحیح سند نهٔ وی ملاؤ شوې چې براه راست د مشکوة المصابیح مصنف ته رسیدلې وی نو موتږ هغهٔ ته خپل سند سره اجازت ورکولې شو چې هغه براه راست د مشکوة المصابیح مصنف ته رسیږی هم دا مطلب دې د ماتن رحمۃ اللہ علیہ د قول والمجازلة ان کان عالماً به

د ان کان عالماً به: قید نه معلومه شود چې کهٔ دغه سړې د مشکوة عالم نهٔ وی البته هغهٔ ته دا اعتماد وی چې د اجازت ملاویدو نه پس به په دې باندې مطالعې او محنت کولو سره پوهه شی او د دې درس به ورکوی نو دا اجازت کافی نهٔ دې یعنی هغه زموتږ سند متصله سره مشکوة نهٔ شی روایت کولې البته د اجازت په وجه به ورته تبرک حاصل شی۔

**طرف حفظ** :

طرف حفظ كښې د عزيمت پهلو دا ده چې طالب حديث د خپل شيخ نه كوم حديث اوريدلي دې او ياد كړې يې دې او د اوريدلو نه پس د بيانولو او ادا كولو پورې يې زباني ياد كړو يعنې صرف په دې توكل باندې يې هير نۀ كړى چې دا خو كتاب كښې هسې هم موجود دې چې كله ضرورت شي نو بيا به يې ياد كړم

**قول الشارح** ولهذا لم يجمع ابوحنيفة رحمه الله كتاباً في الحديث

**تشريح** : شارح رحمه الله فرمائي چې د امام الائمه ،سراج العلماء امام اعظم ابوحنيفه نعمان بن ثابت الكوفي رحمه الله د حديث په موضوع باندې څۀ كتاب نه ملاويږى چې د دې په وجه معترضينو ته په هغوى باندې د طعن وتشنيع لوې موقع ملاويږى حالانكه د هغوى اعتراضات بې ځايه دى ، د هغوى مخالفينو هم د هغوى فن حديث كښې د جلالت شان برملا اعتراف كړې دې د خطيب بغدادي رحمه الله په شان متعتب مؤرخ او د حافظ بن حجر په شان متشدد محدث هم د امام اعظم رحمه الله په حديث كښې د عظمت او منزلت قائل دى . دا خبره صحيح نۀ ده چې امام اعظم صاحب رحمه الله ته په حديثو كښې څۀ دلچسپي نۀ وه او صرف يې فقهې سره شوق وو په دې وجه په احاديثو مباركو د هغوى څۀ تصنيف نشته بلكه اصل خبره دا ده چې هغوى نۀ په فن حديث باندې څۀ كتاب ليكلې دې نۀ په كتاب باندې اعتبار كولو سره د رعايت كولو هغوى قائل وو . هغوى به چې كوم حديث اوريدلو نو هغه به يې د اوريدلو نه تر د بيانولو پورې ياد ساتلو او خپلو شاګردانو ته يې هم دا تعليم وو ملاجيون

صاحب رحمه الله فرمائي چې: امام صاحب رحمه الله دا طرز عمل متعصب خلقو نظر انداز کړې دې او په دې باندې بې ځایه اعتراضونه کوی لیکن کۀ هغوی دامام اعظم پرهیزگاری،تقوی ، کمال علم او راست بازی لیدله نو شاید چې هغوی نه د دې خبرې همت نۀ وو شوې۔

## طرف حفظ کښې رخصت

دا د عزیمت ضد دې وبضدهاتتبين الاشياءیعنی طالب علم د حدیث یادولو اهتمام اونکړی بلکه په کتاب باندې اعتماد اوکړی چې کله کتاب گورم نو د استاذ نه مې چې کوم حدیث اوریدلې وی نو هغه به راته یادیږی دا دلیل دې لیکن کۀ په کتاب کتلو ورته هم یاد نۀ شی نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد دا دلیل نۀ دې خواه دغه کتاب د دۀ خپل تحریر وی یا نۀ وی د نورو امامانو اختلاف دې.

## د رخصت فی الحفظ دلیل کیدو کښې د امامانو اختلاف

### دحضرت امام ابویوسف صاحب اوامام شافعی رحمهما الله مذهب

دواړو صورتونو کښې خواه کتاب کتلو سره د سماع او د درس د مجلس احوال یاد شی یا نۀ خو دۀ دپاره د دې حدیث روایت کول جائز دی او په دې باندې عمل هم واجب دې یعنی دا حجت دې

### د حضرت انس رضی الله عنه مذهب:

کتلې به شی چې د دۀ خپل تحریر دې یا د بل چا لیکلې شوې تحریر دې . کۀ دا تحریر د دۀ په لاس کښې یا د یو بل قابل اعتماد سړی په لاس کښې وی نو په دې خط باندې عمل کول جائز دی ځکه چې دې صورت کښې به دا خط د تغیروتبدل نه محفوظ

وی لیکن که د یو غیرمعتمد سړی سره دا خط وی نو بیا به دا حجت نهٔ وی ځکه چې د داسې سړی نه په دې خط کښې د تغیروتبدل خطره موجود وی

**د امام محمد بن حسن مذهب**

نمبر (۲) کښې د صاحبینو مذهب اجمالا تیر شوې دې لیکن چونکه د امام محمد بن حسن شیبانی رحمه الله په مذهب کښې لږ تفصیل دې په دې وجه شارحینو دا جدا ذکر کړې دې غوره دا ده چې دویم مذهب د امام ابویوسف او امام شافعی والا اوګرځولې شی او دا څلورم مذهب د امام محمد صاحب . امام محمد رحمه الله فرمائی چې دا خط به هر صورت کښې حجت وی او په دې باندې به عمل کول واجب وی

**قول الشارح فذهب اليه رخصته وتيسيراً على الخ**

شارح حضرت ملاجیون رحمه الله فرمائی چې امام محمد رحمه الله د عوامو د سهولت په خاطر د رخصت پهلو اختیار کړې ده لیکن اصل اصول محدثین د حدیث په روایت کښې انتهائی شدت اختیاروی ځکه چې په دې کښې غلطی کول انتهائی د لوې نقصان خبره ده

(۳) **طرف اداء : په طرف اداء کښې عزیمت**

که محدث هم هغې الفاظو سره من و عن بغیر د څهٔ تغیروتبدل نه خلقو ته اورسوی نو دا عزیمت دې هم دا مستعمل او مقصود دې

**په طرف اداء کښې رخصت**

دې ته روایت بالمعنی وئیلې شی چې د دې حاصل دا دې

چې محدث من وعن د نبی کریم ﷺ الفاظ نقل نۀ کړی بلکه د معني لحاظ ساتلو سره په کښې تبديلی اوکړی

**د روايت بالمعنی حکم**

شارح رحمه الله فرمائی چې د اکثرو علماء محدثين په نزد روايت بالمعنی صحيح دې په دې باندې د دليل په طور ملاجيون رحمه الله فرمائی چې صحابه کرامو دغه شان وئيلې دی چې د هغوی مثالونه لاندې پيش کولې شی

(۱) قال ﷺ كذا (حضور ﷺ دغه شان فرمائيلې دی)

(۲) قال كذا ونحواً منه (حضور ﷺ دغه شان فرمائيلې دی يا يې دغه شان مطلب بيان فرمائيلې دې)

**بعضې علماء د روايت بالمعنی اجازت نۀ ورکوی**

**دليل**: د حضور اکرم ﷺ هر لفظ د جوامع الکلم نه وی او په هر يو کلمه کښې د الفاظو او د معانو او مفاهيمو لوې لوې سمندرونه وی چې بل کس خواه هر څومره د لغت لوې امام وی ليکن هغه مفهيم خپلو الفاظو کښې نۀ شی ادا کولې ، لا محاله که روايت بالمعنی جائز او ګرځولې شی نو بيا به هم د معنې په نقل کولو کښې کمې زياتې موندې کيږی

**د روايت بالمعنی متعلق د مصنف د کلام بلاغت نظام**

د مصنف رحمه الله رجحان دې طرفته دې چې نۀ د هرقسم حديث روايت بالمعنی نه منع کول مناسب دی او نۀ مطلق اجازت ورکولې شی ځکه چې د الفاظو او معانو په اعتبار سره د حديث مختلف قسمونه

دی او د ټولو مختلف احکام دی د مختلف اقسامو نومونه دا دی
(۱) محکم (۲) ظاهر المعنی (۳) جوامع الکلم
(۴) مشترک مشکل ومجمل

## د مختلف اقسامو احکام

### (۱) د محکم روایت بالمعنی حکم

د محکم نه مراد دا دي چې د حديث الفاظ داسې دی چې په هغې کښې هم یو معنی موجود ده او د دې معنې نه سوادبلې معنې احتمال نشته نو د دې روایت بالمعنی صرف هغې سړی ته اجازت دې چې څوک لغت کښې بصیرت او فهم لری یعنی هغه د لغت د باریکو نه او ټولو اقسامو او تفصیلاتو علی وجه البصیرت واقفیت لری.

**دلیل** :
په لغت باندې د مکمل عبور لرلو په وجه دې سړی باندې د حدیث معنی مشتبه کیدې نۀ شی چې بیان کښې کمې یا زیاتې اوکړی -

### (۲) د ظاهر المعنی روایت بالمعنی حکم

که حدیث داسې وی چې د هغې د الفاظو یو متبادر معنی وی او مرادی معنی او مفهوم د هغې نه علاوه وی نو د دې روایت بالمعنی صرف فقیه او مجتهد دپاره اجازت دې

**دلیل** : چونکه د حدیث متبادر معنی مقصود نۀ ده په دې وجه صرف د لغت په واقفیت باندې اکتفاء اونکړې شوه بلکه یو اضافی شرط ضروری اوګرځولې شو چې هغه سړې د فقهې او د اجتهاد ټولو اصولو او تفصیلاتو باندې پوهه وی ځکه چې صرف هم هغه

پرېږي پوهه کيدې شي چې د دې الفاظو نه د شارع عليه السلام څه مراد کيدې شي؟ هم په دې وجه وئيلې کيږی چې محدث خو صرف د حديث خوشبو بويوی او ددې په ذريعې سره مسائل مستنبط کول او دهغې په ذريعه د عوام کالانعام روحانی علاج کول مجتهد کار دې۔

**مثال** : قال النبی صلی الله علیه وسلم واصحابه من بدل دينه فاقتلوه په دې حديث مبارک کښې لاندينی مباحث دی :

**د کلمه من عموم** په دې حديث مبارک کښې د من کلمه ده او د لغت په رو سره من د عام معنې د پاره وضع کړې شوې دې چې د دې په بناء به حکم عام وی

**د لغت په رو سره د حديث مفهوم**

چې کوم سړې به ښځه خپل دين بدل کړی يعنی مرتد شی نو هغوی قتل کړئ که په لغت باندې تقيه اوکړې شی نو د مرتد سړی په شان مرتد ښځه به هم واجب القتل گرځولې شی

**د حديث په رڼرا کښې فقهی حکم**

دلته من د خپل عموم (للرجال والنساء) د پاره نۀ شی کيدې دې د پاره چې احکامو کښې خلل واقع نۀ شی بلکه دا خاص دې د مرتد سړو چې کوم سړې هم اسلام پرېږدی او مرتد شی نو هغه به د دريو ورځو مهلت ورکولو نه پس قتل کولې شی ليکن د ښځې دا حکم نۀ دې بلکه چې کومه ښځه مرتده شی نو هغه به گرفتاره کړې شی تر دې چې توبه اوباسی او دوباره دائره اسلام کښې داخله شی يا په دې قيد کښې مړه شی

**(۳) د جوامع الكلم د روايت بالمعنى حكم**

د جوامع الكلم مطلب دا وى چې الفاظ د حديث ډير زيات مختصر وى ليكن په هغې كښې اندرونى معانى او مفاهيم د حد نه سوا د سمندر په شان موجونه وهى د دې حكم دا دې چې د دې روايت به بعينه د پيغمبر عليه السلام د الفاظو سره وى . روايت بالمعنى جائز نۀ دې

**دليل** : دا صرف د حضور اكرم صلى الله عليه وسلم معجزه وه چې هغوى به يوه لويه خبره مختصر الفاظو كښې ارشاد فرمائىله او د بل هيڅ يو انسان نه دا كار كول ممكن نۀ دى خواه هغه د لغت امام وى يا د خپل وخت لوې فقيه ، محدث ، مجدد او مجتهد وى چې هغه خپلو الفاظو كښې د جوامع الكلم مطلب او مفهوم كماحقه ادا كړې شى

**مثال** :(۱) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الغرم بالغنم (تاوان د نفع عوض دې)

(۲) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الخراج بالضمان (خراج د ضمان په سبب سره دې)

(۳) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم العجماء جبار (د ځاروى بدله معاف ده)

**(۴) د مشكل مشترك مجمل روايت بالمعنى حكم**

د دې هم دا حكم دې چې كه هغه حديث مشكل المعنى ، مشترك اللفظ يا مجمل المعنى وى نو د هغې روايت بالمعنى هم جائز نۀ دې

**دليل**: شارح رحمه الله د مشكل او مشترك د پاره يو دليل پيش كړې دې او د مجمل د پاره ئې جدا دليل پيش كړې دې چې لاندې ذكر كولې شى

**په مشكل او مشترك باندې دليل**

مشكل او مشترك كښې چونكه نقل كول مخصوص تاويل

سره وی په دې وجه هغه حجت نهٔ شی جوړیدې

**په مجمل باندې دلیل**

د مجمل مراد د الفاظ حدیث نه نهٔ واضح کیږی بلکه د هغې د مراد د پاره یو دویم حدیث یا آیت قرآنی یا د یو صحابی رضی الله عنه قول طرفته رجوع کول ضروری وی په دې وجه دې کښې هم روایت بالمعنی جائز نهٔ دې

( د رواة د احوال بحث مکمل شو )

**دهغې طعن بیان چې د راوی له طرفه حدیث ته لاحق وی**

**(۱) المروي عنه اذا انكر الرواية**

د دې نه مراد دا دې چې محدث کوم سند سره حدیث نقل کړی چې کله شیخ دغه الفاظ واؤری نو بالکل د هغې نه انکار اوکړی د دې مختلف صورتونه دی

**(۱) انکار جامد:**

شیخ اووائی چې تا په ما باندې دروغ وئیلې دی یا ما تاته دا حدیث نهٔ دې بیان کړې کما قال الشارح بان یقول کذبت علی وما رویت لك

**د انکار جامد حکم**

دا سې حدیث حجت نه وی او په دې باندې به عمل ساقط وی په دې کښې د هیڅ یو امام هم اختلاف نشته

**(۲) انکار متوقف**

شیخ صراحةً خو انکار اونکړی بلکه داسې اووائی چې ماته نهٔ

یادیږی چې ماتاته دا حدیث بیان کړې وی ( لاأذكراني رويت لك هذا الحديث )یا داسې اووآئی چې زهٔ دا حدیث نهٔ پیژنم ( لااعرفه )

**د انکار متوقف والا حدیث په حکم کښې د ائمه اختلاف**

په دې کښې دوه مشهور مذهبونه دی چې لاندې ذکر کولې شی

**(۱) امام حسن کرخی او د امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب**

دغه شان حدیث هم د انکار جامد والا حدیث په شان ساقط العمل دې :

**د امام شافعی او امام مالك رحمهما الله مذهب**

د دې حضراتو په نزد دا حدیث ساقط العمل نهٔ دې بلکه واجب العمل دې

اوعمل بخلافه بعد الرواية

دا دویم صورت دې د طعن فی الحدیث چې د دې حاصل دا دې چې د کوم شیخ نه دا حدیث مروی دې هغه د دې د روایت کولو نه پس د دې خلاف عمل کوی نو هم به دا حدیث ساقط العمل وی او حجت به نهٔ جوړیږی

**دلیل** : دا خو نهٔ شی کیدې چې محدث د حدیث خلاف عمل په خپله مرضی سره کوی داسې کار یو عام مسلمان هم نهٔ شی کولې لهذا د شیخ د یو حدیث خلاف عمل کول په دې باندې دی چې هغهٔ ته د قطعی دلیلونو په رڼا کښې معلومه شوې ده چې حدیث کښې کوم حکم بیان شوې وو نو اوس هغه حکم بدل شوې ... او دا حدیث منسوخ دې کما قال للوقوف على نسخه ـ

**مثال** : حضرت ابوهريره رضى الله عنه نه حديث مروى دې چې كۀ سپي به يو لوښى كښې خلۀ اووهى نو هغه اووۀ ځله اووينځئ او يو حديث كښې دى چې آخرى ځل باندې يى خاؤرې باندې هم اومږئ ليكن د راوى يعنى د حضرت ابوهريره رضى الله عنه عمل د دې خلاف دې او د هغوى فتوى دا ده چې لوښې درې ځله وينځل هم كافى دى۔

د دې وجه دا ده چې اولنى حكم كښې سختى وه ليكن بيا پيغمبر ﷺ نرمى اوفرمائيله گويا كه اووۀ ځله وينځلو والا حكم او خاؤرې بندې د مږلو حكم اوس منسوخ دې لهذا ساقط دى۔

د دې حديث نقل كولو او روايت كولو نه پس معلومه شوه چې دا حديث نۀ دې بلكه يو فتنه برپا كوونكى سړى د خپل طرفنه د نبى كريم ﷺ طرفته منسوب كړې دې **كما قال اوموضوعيته** كه د حديث مخالفت په دې دواؤ وجوهاتو سره نۀ وى نو بيا لامحاله حديث كښې عدم توجهى او د غفلت په وجه به وى او چې كوم سړې د دې خامو حمل وى يعنى د توجه كموالي اوغفلت نو د هغۀ عدالت ساقط دې او د هغۀ به داسې هيڅ يو روايت معتبر نۀ وى۔

**د خلاف يقين د قيد مقصد**

اختلاف سره د يقين قيد لگولو مقصد د مصنف رحمه الله دا دې چې د هغې حديث نه احتراز كوى چې په كوم كښې د دواؤ يا د دواؤ نه د زياتو معانو احتمال وى كه محدث د هغې حديث د يو معنې خلاف عمل كوى نو په دې بناء به دويمه معنى كښې دا حديث ساقط العمل نۀ وى۔

## (٣) وان كان قبل الرواية ولم يعرف تاريخه الخ

د دې څائې نه دا بيانوي چې كه محدث د خپل روايت خلاف عمل د خپل روايت نه پس كوي نو د دې حكم تير شوي دي دوه صورتونه نور هم ممكن دي چې د محدث د دې خپل روايت خلاف عمل د روايت نه مخكښې وي يا تاريخ بالكل معلوم نهٔ وي چې د روايت مخالفت د روايت نه وړاندې دې يا پس دې . دې صورت كښې حكم دا دې چې دا دوه صورتونه په حديث باندې د جرح او طعن سبب نهٔ جوړيږي -

**دليل** : كه د روايت نه مخكښې مخالفت كوي نو په دې وجه چې د راوي وړاندې ترڅو دا روايت نه وو راغلې نو د دهٔ مذهب جدا وو په دې وجه يې د خلاف روايت خلاف عمل كولو ليكن چې څنګه ورته په دې روايت كښې د خپل مذهب خلاف حكم په نظر راغې نو خپل مذهب يې پريخودو او خپل عمل يې د روايت تابع كړو -

كه تاريخ معلوم نهٔ وي نو په دې بناء باندې چې حديث فى اصله حجت دې او دلته د دې د سقوط حكم محتمل دې او دا هم احتمال دې چې مخالفت د روايت نه پس وي نو د دې صورت په ثابتيدو باندې حديث ساقطيږي ليكن دې سره دا احتمال هم دې چې مخالفت د روايت نه مخكښې وي دا صورت ساقط كول نهٔ كوي لهذا شك به وارد شي او يو يقيني خبره (د حديث فى اصله حجت كيدل) د شك او احتمال په وجه سره نهٔ شي رد كيدې

اليقين لايزول بالشك -

## ۴. وتعيين الراوي بعض محتملاته الخ

ماقبل کښې اجمالاً دا خبره تېره شوې وه چې که د حديث په الفاظو کښې د څو معنو احتمال وی او راوی د هغې په متبادر معنی باندې څو عمل نه کوی لیکن د هغې په معانی محتمله کښې په يو معنی باندې عمل کوی نو صحیح ده دې ځایی کښې د دې خبرې تفصیل ذکر کولې شی نو فرمائی چې د راوی د حديث په مختلف احتمالی معنو کښې د يوې معنې متعين کول د دې حدیث په دویم معنی محتمله باندې د عمل کولو نه مانع نۀ دې

**مثال سره وضاحت**

شارح ﷫ د مثال په ذریعې سره د دې خبرې وضاحت کوی چې د حضرت سیدنا عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه مروی دی قال قال رسول الله ﷺ المتبايعان بالخيار مالم يتفرقا (چې ترڅو خرید وفروخت والا د يو بل نه جدا شوې نۀ وی نو هغوی ته اختیار دې . دې حديث کښې تفرق یعنی جدا والی کښې دوه احتماله دی

۱ د تفرق نه مراد تفرق بالابدان دې یعنی د مشتری او بائع د دې مجلس نه پاسیدل او جدا کیدل

۲ د تفرق نـه مـراد تفـرق بـالقول دې یعنـی د ایجـاب وقبـول منعقد کیدل

**استدلال** د حديث راوی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دلته د تفرق يو معنی تفرق بالابدان متعین کوی او هم دا مذهب د امام شافعی دې لیکن دا د دویمې معنې مراد اخستلو نه مانع نۀ

دي هم په دې بناء باندې حضرت امام ابو حنيفه او احناف رحمهم الله د دې نه تفرق بالاقوال مراد اخلي

**نوټ**: دا يو فقهي مسئله ده چې د دې تفصيل به تاسو د فقهي په كتابونو كښې اولولئ چې مشترى او بائع ته خيار مجلس حاصل دې يا نه.

## **قوله**: والامتناع عن العمل به الخ

**كه راوى په خپل روايت باندې د عمل كولو نه منع سى**

اوسه پورې خبره د مخالفت شروع وه ليكن كه راوى د خپل روايت مخالفت اونكړى بلكه د هغې مطابق عمل كولو نه احتراز اوكړى نو ماتن رحمه الله فرمائى چې دا هم د مخالفت په شان دې يعنى څنګه چې راوى د خپل روايت مخالفت اوكړى او هغه حديث حجت نه جوړيږى نو د غه شان احتراز عن العمل سره هم حديث حجت نه جوړيږى

**مثال سره وضاحت**

د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه مروى دي

انه عليه السلام كان يرفع يديه عند الركوع وعند رفع الراس من الركوع (

چې حضور اكرم صلى الله عليه وسلم به ركوع ته د تللو په وخت او د ركوع نه سر اوچتولو په وخت رفع يدين كولو ، ليكن د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما عمل په خپله د دې خلاف دې چې په دې باندې دليل د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه د شاګرد رشيد حضرت مجاهد رحمه الله ګواهى ده چې هغوى سره په سفر او حضر كښې ښل كالو پورې وو فرمائى چې لم اراه يرفع يديه الا فى التكبيرة الافتتاح

(د هغوی صرف په تکبیر تحریمه کښې د لاس اوچتولو نه علاوه په نورو مونځ کښې چرته هم په لاس اوچتولو باندې نهٔ دی لیدلې)

**استدلال**:- د حدیث د راوی په دې حدیث باندې د عمل پریخودلو په وجه سره دا حدیث د مقابل دپاره دلیل نهٔ شی جوړیدې ځکه چې دا ساقط دې والساقط لایصلح ان یکون حجة لان ترك العمل به دلیل علی انتساخه (د راوی په دې باندې عمل پریخودل د دې حدیث د منسوخ کیدو دلیل دې)

(د طعن راوی بحث مکمل شو)

**د هغې طعن بیان چې د غیر راوی له طرفه حدیث ته لاحق وی**

١. وعمل الصحابی بخلافه یوجب الطعن اذاکان الحدیث ظاهراً الخ که حدیث ظاهر اللفظ والمعنی وی او د پیغمبر علیه السلام یو صحابی د هغې خلاف عمل کوی نو دا خبره د دې حدیث دپاره د طعن سبب دې

**دلیل** که حدیث ظاهر نه وو نو دا وئیلې کیدې شوه چې د دې معنی په دې صحابی باندې چرته مخفی وه لهذا د هغوی د دې خلاف عمل کول دې محدیث لره نهٔ مطعون کوی لیکن دلته حدیث ظاهر دې او د اخفاء سوال نهٔ پیدا کیږی نو معلومیږی چې په خپله حدیث کښې څه کمزوری ده

**مثال** عن عبادة بن الصامت رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ البکر بالبکر جلد مائة وتغریب عام (الحدیث)

د حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه په دې حديث کښې د زناکار سړی او ښځې دپاره چې غيرشادی شده وی دوه سزاګانې تجويز کړې شوې دی

(۱) هغوی ته دې سل کوړې ورکړې شی

(۲) هغوی دې جلا وطن کړې شی

د دې حديث په بناء باندې د امام شافعی رحمه الله مذهب دا دې ليکن مونږ د جلاوطن کولو سزا نهٔ تجويز کوو ځکه چې په خپله د نبی کريم ﷺ د صحابی يعنی د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه عمل د دې خلاف وو روايت دې چې حضرت عمر رضی الله عنه يو زناکار سړې جلاوطن کړو بيا هغه مرتد شو او روم ته لاړو چې کله حضرت عمر رضی الله عنه د دې خبرې نه خبر شو نو قسم يې اوخوړهٔ چې آئنده به هيڅوک هم نهٔ جلاوطن کوم

**استدلال** : مونږ وايو چې معلومه شوه چې جلاوطن کول د حد حصه نهٔ ده ورنه اميرالمؤمنين به کله هم د دې خلاف قسم نهٔ وو خوړلې ځکه چې حد د الله تعالی مقرر کړده سزا وی چې په هغې کښې هيڅ قسم کوتاهی او کمزوری کول يا زيادتی کول د هيڅ يو سړی دپاره جائز نهٔ دی اګرچه خليفه ولې نهٔ وی بيا د اميرالمؤمنين عمر بن الخطاب باره کښې هم لا دا سوچ کيدې شی چې هغوی د حد شرعی خلاف ورزی اوکړه حالانکه هغوی ته د نبی کريم ﷺ مراد ونيلې کيږی دا هم نهٔ شې وئيلې کيدې چې په هغوی باندې حديث مخفی پاتې شو ځکه چې دا حديث ظاهر دې۔

**سوال** که تغريب عام د حد شرعی جزء نهٔ دې نو د دې حديث د الفاظو تاسو څهٔ تاويل کوئ؟

**جواب** تغريب عام د حد شرعي حصه نهٔ ده البته سياستاً عادل امام ته دا اختيار حاصل دي چي كهٔ هغه مناسب اوګڼړي نو د سلو كوړو لګولو نه پس د اسلام پاك وطن د دي نجس بدن نه پاك ساتلو دپاره دا سړي جلاوطن كولي شي

**د اذا كان الحديث ظاهراً قيد فائده**

دي قيد لګولو سره يې د هغي حديث نه احتراز كړي دي چي كوم په صحابه كرامو رضى الله عنهم باندي هم د خفاء احتمال لري ځكه چي په صحابه كرامو رضى الله عنهم باندي د خفا احتمال د حديث دپاره د جرح موجب نهٔ دي

**مثال** د حضرت زيد بن خالد الجهنى رضى الله عنه نه يو حديث مروى دي چي كوم سړي په مانځه كښي په قهقهه سره اوخاندى نو هغهٔ دپاره د اودس اعاده كول واجب دى ـ

ليكن سيدنا ابوموسى اشعرى رضى الله عنه به په دي باندي عمل نهٔ كولو ـ

**استدلال** د حضرت ابوموسى اشعرى رضى الله عنه په دي حديث باندي عمل نهٔ كول د دي صحيح حديث دپاره د طعن موجب نهٔ دي ځكه چي په مانځه كښي قهقهه لګول هغي حوادثو كښي ده چي نادرالوقوع دى او د ضرورت نه پيښيدلو په وجه سره ممكن دى چي په حضرت ابوموسى اشعرى رضى الله عنه باندي دا حديث مخفى پاتي شوي وى

ځكه چي د كوم څيز ضرورت پيښ نه شى نو د هغي طرفته توجه هم كمه وى او دي سره سره د هر سړى دپاره هر څيز پيژندل او

د هر څيز نه ځان خبرول او په هر څيز باندې ځان پوهول هم ضروري نهٔ دي وما اوتيتم من العلم الاقليلاً _

## د طعن مبهم حکم

طعن مبهم په راوي باندې د جرح د پاره کافي نهٔ دې چې ترڅو د دې تفسير په دې طور باندې اونکړې شي چې هغه بالاتفاق جرح قرار مومي د دې اجمال وضاحت دا دې چې د محدث صرف دومره وئيل هذا الحديث مجروح۔ هذا الحديث منكر يا دغه شان نور الفاظ استعمالول په حديث باندې د جرح د پاره کافي نهٔ دي لهذا په حديث به عمل کولې شي

### د طعن مبهم د حجت جوړيدلو شرطونه

البته د دې طعن مبهم تفسير په داسې طور سره اوکړې شي چې هغې تفسير سره د هيڅ يو امام حديث اختلاف نهٔ وي نو دا طعن به حجت وي او حديث به ناقابل عمل گرځولې شي بيا طعن هم د هر يو معتبر نهٔ دې بلکه هغه داسې سړې وي چې متعصب او متشدد نهٔ وي د متعصب او متشدد افرادو جرح او طعن ځکه حجت نهٔ دې چې د هغوی د اختلافي حالت نه دا لرې نهٔ ده چې دا جرح صرف د هغوی د تعصب او تشدد نتيجه وي ځکه چې د متعصب او متشدد سړی نه د انصاف توقع لرل عبث دي داسې قسم خلقو د خپل تعصب او بې ځايه تشدد په ذريعې سره هر دور کښې دين ته ډير لوې نقصان رسولې دې شارح رحمه الله فرمائي چې دوی کله غواړي نو مکروه لره حرام او مستحب ته د فرض درجه ورکوی موثر

په دې کښې هم اضافه کول غواړو چې کله اوغواړی نو ناجائز لره جائز او جائز لره ناجائز ګرځوی او مسلمان لره کافر او کافر لره مسلمان ګرځوی۔

**د هغې امورو بيان چې هغې سره به طعن نۀ شي قبلولې:**

(۱) تدليس سره (۲) تلبيس سره (۳) ارسال سره (۴) کض الدابه سره (۵) مزاح کولو سره (۶) کم عمرۍ سره (۷) عدم الاعتياد بالروايه سره (۸) د داسې سړی نه چې کثرت سره د فقهې مسائل بيانوی

## د امور ثمانيه مختصر وضاحت

(۱) **تدليس** : لغوی معنی : د مبيعه عيب د مشتری نه پټول او هغه صحيح سالم ګرځول

**اصطلاحي تعريف** : كتمان الحديث فى الاسنادته د محدثينو په اصطلاح کښې تدليس وائی او د دې نه مراد دا دې چې د خپلو څۀ مفادو په خاطر د راوی سند تفصيلاً بيان نۀ کړی بلکه داسې اووائی چې حدثنافلان عن فلان

**د غير معتبر کيدو وجه**

د سند په تفصيل سره د نۀ بيانولو په وجه د يو راوی پاتې کيدو شبه کيدې شی چې دې ته ارسال وئيلې شی ۔ ارسال بذات خود د جرح صلاحيت نۀ لری چه جائيکه د ارسال شبه ۔ دا به بطريقه اولی حجت نۀ وی

(۲) **تلبيس لغوی معنی** : ګډ وډ کول

**اصطلاحي تعريف** :

د راوي د خپل استاذ (شيخ) ذکر يو غيرمعروف نوم سره کول يا کنيت سره کول يعني شيخ خپل نوم سره معروف دي او راوي د هغهٔ کنيت ذکر کوي مثلاً د حسن بصري رحمه الله ذکر کنيت ابو سعيد سره کول چي دي سره هغوي معروف نهٔ دي يا د دي برعکس وي . دغه شان د کنيت شيخ ذکر داسي وصف سره کول چي دواړو يا ډيرو افرادو کښي مشترک وي او يقين نهٔ پيدا کيږي چي د دي نه څوک مراد دي ؟ مثلاً ابو سعيد د دواړو بزرګانو د حسن بصري او د کلبي رحمهما الله کنيت دي لهذا صرف ابو سعيد وئيلو سره وضاحت نهٔ کيږي او ځکه چه حسن بصري رحمه الله ثقه دي او کلبي غيرثقه دي

دلته د متن مختلف نسخي دي بعضو کښي د والارسال لفظ دي چي د شيخ الاسلام علامه بزدوي رحمه الله په اتباع کښي راوړلي شوي دي او بعضو کښي نشته . بهرحال ارسال هم عيب نهٔ دي لهذا د حديث ارسال کول حديث لره نهٔ مجروح کوي

**(۴) رکض الدابة** :

د دي نه مراد دا دي چي راوي ځاروي زغلوي بعضي خلقو دا موجب طعن ګرځولي دي او په امام محمد رحمه الله يې طعن کړي دي ليکن د انصاف خبره دا ده چي دا د طعن موجب نهٔ دي بلکه امر مستحسن او د مجاهدينو امتيازي وصف دي ځکه چي د مجاهدينو د اسونو قسمونه الله تعالى په قرآن پاک کښي خوړلي دي -

**(۵) مزاح** : چي کومه مزاح په حدود شرعيه کښي دننه صرف د دل لګي دپاره وي نو هغه موجب طعن نهٔ ده ځکه چي د حضور صلى الله عليه وسلم نه کثرت سره ثابته ده

## د نبی کریم ﷺ د مزاح څو مثالونه

(۱) د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دي چې یو بوډۍ ښځې د نبی علیه السلام نه سوال اوکړو نو پیغمبر علیه السلام ارشاد اوفرمائیلو لاتدخل الجنة عجوز (بوډۍ ښځې به جنت ته نهٔ ځی) د دې په اوریدو سره هغه ښځه خفه شوه نو پیغمبر علیه السلام اوفرمائیل چې الله تعالی به بوډۍ ګانو لره د باکرو او پیغلو جینکو په صورت کښې جنت کښې داخلوی

(۲) یو روایت کښې راځی ان رجلاً استحمل رسول الله ﷺ (یو سړی د نبی علیه السلام نه سورلی طلب کړه) نو پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمائیل انی حاملك علی ولد الناقة (زهٔ تا د اوښې په بچی سوروم) نو هغهٔ اووې ما اصنع بولد الناقة (یعنی زهٔ به د اوښې په بچی څه اوکړم)

پیغمبر علیه السلام تبسم اوفرمائیلو او وضاحت یې اوکړو چې وهل تلد الابل الا النوق (اوښه خو هم بچی زیګوی) یعنی هر اوښ یا اوښه اول هم بچې وی.

(۳) یو اوږدو غوږونو والا سړی ته به نبی علیه السلام ..یاذاالاذنین" وئیلو سره آواز کولو.

**کم سنی (کم عمری)**: د راوی کم عمر کیدل هم عیب نهٔ دې البته چې د پنځو کالو نه کم عمر نهٔ وی لهذا د حضرت سفیان ثوری رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله متعلق دا خبره هیڅ حیثیت نهٔ لری:

..مایقول هذا الشاب حدیث السن عندی"

**دليل**: د کم عمر او نوجوان صحابه کرامو، حضرت معاذ بن جبل، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وغيره، نه کثرت سره روايتونه نقل کړې شوې دی البته حفظ واتقان او عدالت شرط دې۔

**کثرت سره د فقهي مسائل بيانول**

يعنی د راوی د فقهي په مسائلو کښې اکثر مشغوليدل چې بس هروخت فقه کښې مشغول وی دا هم د طعن موجب نه دې لهذا په دې بنياد باندې د بعضې متعصب او متشدد خلقو کلام د امام ابويوسف او نورو محدثينو خلاف صحيح نه دې. که امام ابويوسف صاحب رحمه الله يو طرفته د فقهي مهر منير وو نو بل طرفته د شل زره موضوعی احاديثو نه هم باخبر وو چې چاته دومره کثرت سره موضوعی احاديث ياد وی نو صحيح احاديث به ورته څومره او څنګه ياد وی؟

(د اقسام سنت بحث ختم شو الحمد لله)

**مبحث التعارض (د تعارض بحث)**

**اعتراض**: صاحب توضيح د تعارض بحث د ترجيح په باب کښې د معارضه په ضمن کښې درج کړې دې هم دا مناسب وه بيا ماتن رحمه الله د دې خلاف دلته ولې ذکر کړو؟

**جواب**: ماتن رحمه الله د علامه فخرالاسلام بزدوی رحمه الله اتباع کړې ده او علامه بزدوی رحمه الله هم دغه طريقه اختيار کړې ده

**قوله**: وقد يقع التعارض بين الحجج الخ

**د قول او شرح تشريح**

فرمائی چې بعضو وختونو کښې د دلائل شرعيه درميان کښې

د تعارض صورت جوړ شی او دغه شان لګی چې یو دلیل د دویم خلاف دې حالانکه د شارع علیه السلام کلام د داسې تضاداتو نه پاک دې بیـ دا صورت ولې پیدا کیږی ماتن رحمه الله فرمائی چې دا زمونږ کم علمی وی د دې اجمال تفصیل دا دې چې تعارض هغه وخت کښې په نظر راځی چې کله دواړو دلیلونو کښې دا معلومه نه وی چې د یو حکم منسوخ دې ورنه که دا معلوم وی چې یو دلیل منسوخ دې نو د دې دویم دلیل ناسخ سره به څنګه تعارض وی

## (۲) د تعارض د شرطونو بیان

**(۱) د مساوات شرط** د تعارض واقع کیدو اولنې شرط دا دې چې دواړه دلیلونه د مرتبې او مقام په لحاظ سره برابر وی او یو ته په بل باندې هیڅ قسم فضیلت حاصل نهٔ وی نه د ذات په اعتبار سره او نه د صفت په اعتبار سره که د ذات یا وصف په اعتبار سره یو دلیل د دویم نه اعلی شو نو بیا به تعارض نهٔ وی بلکه هم هغه اعلی دلیل به قوی او راجح وی او د دې مقابله کښې به هغه ادنی کالعدم حسابیږی مثلاً ـ

### د وصفیت په اعتبار سره د اولیت مثال

د مفسر او محکم درمیان کښې تعارض نهٔ شی کیدې او د عبارة النص اشارة النص سره تعارض نهٔ شی کیدې په دې وجه چې محکم د مفسر په مقابله کښې او عبارة النص د اشارة النص په مقابله کښې د وصف په اعتبار سره اولی دې

### د اولویت ذاتی مثالونه

دغه شان د خبرواحد خبر مشهور سره تعارض نهٔ شی کیدې

د کتاب د حکم خاص او عام مخصوص منه البعض کښې تعارض نهٔ شی کیدې ځکه چې خبرمشهور د خبرواحد نه او کتاب الله خاص د عام مخصوص منه البعض نه د ذات په اعتبار سره اولی دی

**د تعارض دویم شرط**

دواړه متعارض دلیلونه خپلو کښې متضاد حکمونو کښې وارد وی یعنی کهٔ یو کښې د حلال کیدو حکم دې نو د دویم تعلق د حرمت سره وی ماتن ﷫ دا شرط ضمناً او تبعاً بیان کړې دې

**قوله** : و شرطها اتحاد المحل والوقت مع تضاد الحکم

**عدمی مثالونو سره د تعارض د شرطونو وضاحت**

(۱) د عقد نکاح محل کښې مختلف وی او یو محل کښې حلت او دویم محل کښې حرمت ثابت وی نو دا تعارض نهٔ دې ځکه چې د تعارض دپاره اتحاد د محل ضروری دې دلته محل یو نهٔ دې مثلاً ښځه او خوابنې . تعارض به هغه وخت وی چې کله محل یو وی مثلاً په یو وخت د ښځې دپاره یو دلیل سره حلت او دویم سره حرمت ثابتیږی دا د عدم اتحاد محل مثال دې

(۲) د عدم اتحاد وقت مثال دا دې چې د شرابو دپاره په ابتداء د اسلام کښې د حلت یعنی اباحت حکم وو او بیا د حرمت حکم راغې اوس دلته محر (خمر) یو دې لیکن اوقات مختلف دی لهذا د وخت اتحاد اونهٔ موندې شو نو دې ته به هم تعارض نهٔ وئیلې کیږی -

**د تعارض حکم**

د دې په حکم کښې تفصیل دې کتلې به شی چې کومو کومو دلیلونو کښې تعارض دې یعنی د دلیلونو حیثیت څهٔ دې که

**اول** : د دواړو آیتونو درمیان کښې تعارض واقع شوې وی نو د دې
حل به سنت رسول الله ﷺ کښې تلاش کولې شی ځکه چې هرکله
دوه آیتونه خپلو کښې متعارض شو نو بیا به ساقط شی **اذاتعارضا**
**تساقطا** او س د یو دریم آیت په ذریعې سره په کښې یو ته ترجیح نهٔ
ورکړې کیږی ځکه چې دلته د کثرت ادله والا سبب نهٔ شی کیدې
لامحاله به حدیث او سنت د رسول ﷺ طرفته رجوع کولې شی

**مثال** قرآن مجید کښې د قراءة متعلق یو حکم دا دې **فاقرؤاماتیسر**
**من القرآن** او دویم حکم دا دې **واذاقرءالقرآن فاستمعواوانصتوا**

د اولنی د آیت د عموم تقاضه دا ده چې د امام نه پس دې هم
قراءت اوکړې شی او د دویم آیت خاص والې د دې خبرې نه مانع
دې لهذا مونږ به د قراءة خلف الامام په سلسله کښې د سنت رسول
طرفته رجوع اوکړو او د حضور اکرم ﷺ فرمان دې **من کان له**
**امام فقراءةالامام قراءةله** لهذا قراءة خلف الامام ممنوع دې

که تعارض د دواړو سنتونو درمیان کښې واقع شوې وی نو
بیا به د صحابه کرامو رضی الله عنهم اقوال او آثار طرفته رجوع
کولې شی د دې نه پس به قیاس سره تعارض ختمولې شی د متن
الفاظ دا دی **المصیرالی اقوال الصحابة رضی الله عنهم اوالقیاس**

(او) د تشکیک او تخییر دپاره راغې یعنی اختیار دې چې
په سنتو کښې کله تعارض واقع شی نو هغه د صحابه اقوالو سره
ختموی یا د قیاس په ذریعې سره . دلته هم د علامه فخرالاسلام
بزدوی رحمه الله اتباع کړې ده د هغوی منشاء دا ده چې په اقوال د

صحابو کښې یا په قیاس کښې کوم راجح وی نو هغه به مقدم کولې شی په دې سلسله کښې اختلافی اقوال نقل کولې شی

**رومبې قول** : د ترجیح راجح اعتبار به وی یعنی کومه مسئله کښې چې دا تعارض واقع دې کتلې به شی چې هلته د صحابو اقوال د ترجیح حیثیت لری یا قیاس چې کوم راجح وی نو د هغې په ذریعې سره به هغه تعارض ختمولې شی

**دویم قول** : د صحابه کرامو رضی الله عنهم اقوالٰ به په هرځایې او هرمسئله کښې په قیاس باندې مقدم وی او د صحابه کرامو د اقوالو په موجودګی کښې به قیاس طرفته رجوع نۀ شی کولې

**دریم قول** : بعضې حضراتو دا تطبیق کړې دې چې اودې کتلې شی چې دا مسئله مدرک بالقیاس ده یا نۀ ده ، که مدرک بالقیاس وی خو قیاس به راجح وی او که غیرمدرک بالقیاس وی نو د صحابو اقوال به راجح شی ځکه چې خامخا هغوی دې باره کښې د نبی کریم ﷺ نه اوریدلې دی ورنه هغوی د خپل طرفنه څۀ فیصله نۀ شی کولې ۔

**مثال** : د کسوف د مانځه د رکوع د تعداد باره کښې دوه حدیثونه دی چې خپلو کښې تعارض لری ۔

(۱) روت عائشه رضی الله عنها ان النبی ﷺ صلی صلوة الکسوف باربع رکوعات واربع سجدات ۔

(۲) ان النبی ﷺ صلی صلوة الکسوف رکعتین کل رکعة برکوع وسجدتین ۔

د اولنی حدیث تقاضه دا ده چي صلوة الکسوف کښي څلور رکوع او څلور سجدي وی او د دويم حديث نه دا وضاحت معلوميږی چي صلوة الکسوف هم د عام مونځونو په شان کيږی لهذا مونږ به د قياس طرفته رجوع کوو او صلوة الکسوف هم چونکه يو مونځ دي لهذا دا به په عام مونځونو باندي قياس کوو او عام مونځونو کښي دوه رکعتونه . دوه رکوع او څلور سجدي وی لهذا صلوة الکسوف کښي به هم دغه شان وی

**پنځم قول** قياس ته به په اقوال صحابه رضی الله عنهم باندي ترجيح ورکولي شی **متی کان واین کان**

که د تعارض ختمولو دپاره امور مذکوره بالا کښي د يو طرفته رجوع کولو نه عجز ښکاره شی چي د هغي صورت دا دي چي احاديث هم خپلو کښي متعارض وی او د صحابه اقوال او قياس هم اوس چونکه مزيد څه دليل نشته لهذا تقرير اصول به واجب وی يعنی **تقرير کل شئ علی اصله وابقاء ما کان علی ما کان** (چي کوم دليل کوم ځايي دي هغه به په خپل اصل باندي باقی ساتلو سره پري عمل کولي شی)

**مثال** د خر جوټه د دي مسئله د تقرير اصول مثال دي هغه په دي طور چي په دي سلسله کښي ټول ادله خپلو کښي متعارض دی مثلاً دي سلسله کښي دوه حديثونه وارد دی (۱) پيغمبر عليه السلام د خيبر په ورځ د کورنو خرو د خوراک نه منع اوفرمائيله او صحابو هغه ديګونه واړول چي په هغي کښي دا غوښه پخيدله د دي نه حرمت ثابت دي

حضرت غالب بن فهر رضی الله عنه چې کله نبی کریم ﷺ ته د خپلې بدحالی تذکره اوکړه او وې فرمائیل لم یبق لی الا الاحمرات نو پیغمبر علیه السلام او فرمائیل چې خپل مال کښې ښاربه خرونه ذبح کوه او خوره نو دا په اباحت باندې دلیل دې

**سوال** : د احادیثو نه خو د غوښې د حکم باره کښې تعارض ثابتیږی او تاسو په لعاب کښې دا د تعارض مثال جوړوئ ؟

**جواب** : لعاب متولد من اللحم دی او چې کوم حکم د لحم وی نو هغه به د لعاب هم وی لهذا چې هرکله لحم حرام نو لعاب هم حرام او چې کله لحم حلال نو لعاب به هم حلال وی او د جوتې تعلق د لعاب سره دې ځکه چې ښاروې کله لوښی باندې خلۀ لګوی نو د هغۀ لعاب هغې لوښی سره لګی

د صحابه کرامو اقوال او افعال هم په دې سلسله کښې متعارض دی (۱) یو روایت کښې چې د خر نه باقی پاتې شوې اوبو سره د اودس کولو اجازت مروی دې (۲) او د حضرت انس رضی الله عنه روایت د دې برعکس دې کما قال ان النبی ﷺ نهی عن الحمر الا هلیه وقال انها رجس وې فرمائیل چې دا خو پلیت دې نو د دې نه د خر د جوتې نجاست ثابتیږی او د اولنی اثر نه طهارت ثابتیږی

دې سلسله کښې قیاس هم متعارض دی : (۱) د پاک کیدو دپاره جوتې د خر په خولې (پسینه) باندې نۀ شی قیاس کیدې ځکه چې خولو کښې ضرورت زیات او جوته کښې د دې په نسبت کم دې دغه شان د نجاست دپاره دې سبب سره چې جوته او لبن دواړه د لحم نه متولد دی او د خر جوته د خر پیو سره متعلق کول هم ممکن نۀ

دی ځکه چې جوته کښې ضرورت موجود دې پیو کښې نه دې

(۳) دا هم ممکن نه ده چې د خر جوته د سپی د جوتې تابع کړې شی اوحرام اوګرځولې شی ځکه چې سپی کښې هغه احتیاج نشته کوم چې خر کښې دې ځکه چې دا کورنې ژاروې دې دغه شان د پاکوالی په خطر سره د خر جوته د پیشو د جوتې هم تابع کول صحیح نهٔ دی ځکه چې څو مره ضرورت د پیشو دې هغومره د خر نهٔ دې

خلاصه د کلام دا چې هرکله د ترجیح ټولې لارې بند دی نو تقریر اصول واجب شو چې د هغې حاصل دا دې چې محدث به په خپل اصل او اوبهٔ به په خپل اصل باندې اوساتلې شی نو اوبهٔ د خپل اصل په اعتبار سره پاکې دی وانزلنا من السماء ماءً طهوراً لهذا هغه به د خر په خلهٔ کښې اچولو سره نهٔ پلیتیږی بلکه د خپل اصل مطابق به هم پاکې حسابیږی او سړې د خپل اصل په اعتبار سره محدث په حالت د وړو کې بې اودسه کښې دې، لهذا هغه به هیم محدث وی او طهارت حاصلولو دپاره به پرې تیمم واجب وی لهذا چې د خر نه کومې اوبهٔ باقی پاتې شوې دی د هغې نه علاوه نورې اوبهٔ نهٔ وی نو اودس به هم اوکړی او تیمم به هم اوکړی

**اعتراض** چې هرکله اوبهٔ د اصل په اعتبار سره طاهر او مطهر دی او نجس نهٔ دی نو اودس کافی کیدل پکار دی تیمم ورسره ولې ملاؤ کړې شو؟

**جواب** د تقریر اصول تقاضه دا ده چې دواړو څیزونو کښې ( محدث او اوبهٔ ) کښې هر یو څیز په خپل اصل باندې کیخودلې شی که صرف اودس کافی اوګرځولې شی نو اوبهٔ خو په خپل اصل باندې

پاتې شوې لیکن محدث به په خپل اصل باندې پاتې نهٔ شی

**اعتراض** : اصول دی چې دلیل محرم او دلیل مبیح کښې تعارض
واقع شی نو د احتیاط په غرض سره به محرم راجح وی لهذا د خر ۱
جوټه نجس ګرځول پکار وو ۔

**جواب** : محرم ته ترجیح ورکول صرف د احتیاط په وجه سره دی او
دلته احتیاط په دې کښې دې چې دخر جوټه مشکوک اوګرځولې ۱
شی زمونږ پیش نظر احتیاط دادې نهٔ چې ستاسو بیان کړې شوې اصول

**اعتراض** : شریعت واضح دې او د هغې هر حکم د ورځ په شان
روښانه دې لهذا د خر جوټه مشکوک ګرځول صحیح نهٔ دی

**جواب** : تاسو ته د مشکوک د لفظ نه غلط فهمی شوې ده د دې دا
مطلب نهٔ دې چې شریعت کښې د دې حکم معلوم نهٔ دې هغې ته خو ۱
مجهول وئیلې شی بلکه د مشکوک مطلب دا دې چې د دې حکم
معلوم دې او هغه دا دې وجوب الوضوء وضم التیمم کما قال صاحب
الکتاب والشرح سمی مشکوکاً لهذا الوجه لا ان یعنی به الجهل لیکون من
قبیل لا ادری به بل حکمه معلوم وهو وجوب التوضئ وضم التیمم الیه

**خلاصه** : که دواړو قیاسونو کښې تعارض واقع شی نو دواړه به نهٔ
ساقطیږی بلکه عمل به بالحال واجب وی ځکه حل یعنی تقریر
الاصول زمونږ په نزد حجت نهٔ دې بلکه مجتهد به دواړو متعارض
قیاسونو کښې د خپل زړهٔ د رجحان بنیاد باندې په یو باندې عمل ۲
کوی او د امام شافعی رحمه الله په نزد قلبی رجحان هم ضروری نهٔ دې په
دې وجه یو وخت کښې د هغوی په یو اجتهادی مسئله کښې متعدد

اقوال هم کيدې شي او د احنافو امتياز دا دي چې په يو وخت کښې د هغوی نه دوه يا زيات اقوال مروی کيدې نهٔ شي

**اعتراض** کهٔ ستاسو په نزد حال حجت نهٔ دې نو سور حمار کښې تاسو په دې باندې عمل ولې اوکړو ؟

**جواب** : د سور حمار په مسئله کښې دې لره اختيارول د ضرورت په بناء باندې دی او والضرورات تبيح المحذورات _

**قوله** والمخلص عن المعارضة اما ان يكون من قبل الحجة الخ

**د قول او شرح تشريح**

د معارضة نه نجات ورکوونکی څيز څلور قسمونه دی

(۱) د حجت له طرفه (۲) د حکم له طرفه (۳) د حال له طرفه

(۴) د اختلاف زمان له طرفه خواه اختلاف زمان صراحةً وی يا دلالةً

## اقسام اربعه کښې د هر يو وضاحت

(۱) **من قبل الحجة** :

د دې نه مراد دا دي چې په دواؤ شرعی حجتونو کښې يو حجت اعلی او دويم ادنی وی مثلاً يو خبر واحد وی او دويم خبر مشهور يا خبر متواتر وی يا يو ظاهر وی او دويم نص وی نو اعلی ته به په ادنی باندې ترجيح ورکولې شی کمامرمن قبل _

**من قبل الحکم** :

د حکم له طرفه د مخلص صورت دا دې چې د يو د حکم تعلق امور اخرويه سره وی او د دويم د حکم تعلق د امور دنيويه سره وی

(۱) **مثال** : د یمین غموس متعلق د سورة بقرة آیت لایؤاخذکم الله باللغو فی ایمانکم ولکن یؤاخذکم بما کسبت قلوبکم (الآیة) د لفظ بما کسبت قلوبکم د عموم نه مؤاخذه معلومیږی ځکه چې د یمین منعقده په شان یمین غموس کښې هم د حالف اراده شامل وی او د سورة مائده آیت لایؤاخذکم الله باللغو فی ایمانکم ولکن یؤاخذکم بما عقدتم الایمان (الآیة) دې آیت کښې د بما عقدم د تصریح نه معلومیږی چې دا مؤاخذه کښې د یمین لغو سره متعلق دې

اوس مو دا تعارض دغه شان ختم کړو چې سورة بقرة کښې د مؤاخذې نه مراد اخروی مؤاخذه ده نو د الله تعالی په نزد به د یمین غموس باره کښې تپوس وی او سورة مائده کښې د مؤاخذې نه مراد مؤاخذه دنیوی ده یعنی کفاره ترې مراد ده لهذا کفاره به صرف په یمین منعقد باندې وی نهٔ چې په یمین لغو او یمین غموس باندې۔

(۲) **من قبل الحال** : دې صورت دا دې چې یو لره یو حالت سره او دویم لره دویم حالت سره خاص کړې شی۔

**مثال** : د الله تعالی فرمان دې یسئلونك عن المحیض قل هو اذیٔ فاعتزلوا النساء فی المحیض ولا تقربوهن حتی یطهرن په دې کښې د یطهرن باره کښې دوه قرآتونه منقول دی یو بالتخفیف چې د هغې حاصل دا دې چې کله د غه حائضه ښځې د وینې د موقوف کیدو په سبب پاکې شی نو هغوی سره جماع کول جائز دی خواه غسل اوکړی یا نهٔ یعنی غسل لازم نهٔ دې او دویم قراءة بالتشدید دې چې د هغې مطلب دا دې چې ترڅو یې غسل کړې نهٔ وی نو هغه وخت پورې

ورسره مجامعت مهٔ کوئ دلته قراءت تخفیف هغې حالت سره خاص کړې شوې دې چې کله حیض د ورځو پوره کیدو نه پس بند شي نوس غسل ضروری نهٔ دې ځکه چې د وینې راتلو ویره نشته او د تشدید والا قراءت هغه حالت سره خاص کړې شوې دې چې کله وینه د لسو ورځو پوره کیدو نه مخکښې بنده شي نو دې صورت کښې غسل ضروری دې چې د وینې نهٔ راتلل یقیني شي ورنه د ورځو باقي کیدو په وجه سره کله هم د حیض وینه راتلې شي د غسل کولو په وجه یا د یو مونځ وخت په حالت د طهر کښې تیریدلو سره به د وینې نهٔ راتلل متحقق او متیقن شي۔

**اعتراض** : ستاسو دا تاویل ځکه نهٔ شي چلیدې چې دې سره متصل دویمه ټکړه ده فاذاتطهرن فاتوهن دلته صرف د تشدید والا قراءت دې چې د هغې نه معلومیږی چې حائضه ښځو ترڅو غسل کړې نهٔ وی نو هغوی ته نزدې مهٔ ورځئ۔

**جواب** : اولنې جواب خو دا دې چې د دې تعلق وجوب سره نهٔ دې بلکه استحباب سره دې چې مستحب بهرحال هم دا دې چې ښځې سره مجامعت د طهارت نه پس اوکړې شي۔

**دویم جواب** : دا دې چې دلته تطهرن (بالتشدید) د تطهرن په معنی کښې دې یعنی مشدد بمعنی مخفف دې چې مثال یې تبین (مشدد) بمعنی بان دې۔

(۴) **من قبل اختلاف الزمان**

د دې دوه قسمونه دی (۱) اختلاف الزمان صراحةً (۲) اختلاف الزمان دلالةً د هر یو وضاحت مثال سره کولې شي۔

**(۱) اختلاف الزمان صراحة**

يعنى مونږ ته د تاريخ په رنړا کښې معلومه وى چې يو مقدم او دويم مؤخر دې دې کښې به تعارض ځکه نهٔ وى چې مقدم به منسوخ او کالعدم اوګرځى اوږ مؤخر به ناسخ کيدو سره راجح شي

**(۲) د اختلاف الزمان صراحتاً مثال** : د حامله ښځې د عدت په سلسله کښې قرآن مجيد کښې دوه حکمونه ملاويږى يو سورة البقرة کښې او دويم سورة الطلاق کښې

**(۳) سورة بقرة کښې دي** : والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجاً يتربصن بأنفسهن اربعة اشهر وعشراً دلته د هغې ښځې چې خاوند يې وفات شوې وى عدت څلور مياشتې او لس ورځې بيان شوې دې او د دې په عموم کښې حامله ښځه چې خاوند يې وفات شوې دې هم داخل ده لهذا د هغې عدت هم څلور مياشتې او لس ورځې شو

**سورة الطلاق کښې دي** واولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن د دې نه د حاملې ښځې عدت وضع حمل معلوميږى خواه د خاوند د وفات کيدو نه پس وضع حمل اوشى څنګه چې به حضرت عمر فاروق رضى الله عنه فرمائيل چې که د خاوند لاش په کټ باندې هم پروت وى او د ښځې وضع حمل اوشى نو دويم ځاى کښې ورته د نکاح کولو اختيار دې

مونږ غور اوکړو نو معلومه شوه چې سورة طلاق د سورة بقرې نه پس نازل شوې دې لهذا د حاملې ښځې عدت به د څلور مياشتو او لسو ورځو په ځاى د حمل وضع وى ځکه چې د وضع

حمل والا حکم مؤخر دې لهذا د دې په مقابله کښې به د څلور میاشتو او لسو ورځو والا حکم منسوخ او کالعدم اوګرځی

**د علامه ملا جیون رحمہ اللہ تشریح**

فرمائی چې د دې دوارو آیتونو درمیان کښې نسبت دعموم خصوص من وجه دې چې په هغې کښې تولې درې مادې وی دوه افتراقی مادې او یو اجتماعی ماده دلته هم دوه افتراقی مادې دی او یو اجتماعی ماده ده

**(۱) اجتماعی ماده :**

هغه ښځه چې حامله هم وی او خاوند یې هم وفات شوې وی

**(۲) افتراقی ماده :**

هغه ښځه چې حامله وی لیکن خاوند یې وفات شوې نۀ وی

**(۳) دویمه افتراقی ماده :**

هغه ښځه چې خاوند یې وفات شوې وی لیکن حامله نۀ وی

افتراقی مادو کښې څۀ اشکال نشته لهذا د کومې ښځې خاوند چې وفات شوې وی نو د هغې عدت به څلور میاشتې او لس ورځې وی څنګه چې سورة بقره کښې دی او د حاملې عدت به صرف د حمل وضع وی څنګه چې په سوره طلاق کښې دی البته پریشانی د اجتماعی مادې په صورت کښې پیښیږی څکه چې د دې ښځې دوه حیثیتونه دی ایا دا متوفی عنها زوجها اوګرځولې شی یا حامله شارح رحمہ اللہ دلته د فقهاء صحابه کرامو حضرت علی او حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما اختلاف نقل کړې دې

**د حضرت علی رضی الله عنه مذهب**

خلیفه رابع حضرت علی کرم الله وجهه فرمائی چې داسې ښځه به ابعد الاجلین عدت تیروی یعنی کتلې به شی چې وضع د حمل د څلور میاشتو او لسو ورځو نه پس کیږی یا مخکښې که مخکښې وی نو د څلور میاشتو او لسو ورځو انتظار به کوی او که پس وی نو د څلورمیاشتو او لسو ورځو تیریدلو نه پس به هم ناسته وی تردې چې وضع د حمل اوشی۔

**د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مذهب**

د داسې ښځې عدت صرف د حمل وضع ده۔

**د حضرت علی رضی الله عنه عذر**

فرمائی چې مونږ ته معلومه نهٔ ده چې د سورة بقره والا آیت اول دې یا د سوره طلاق والا ، لهذا د تاریخ نهٔ معلومیدو په وجه مونږ یو لره ناسخ او بل لره منسوخ نهٔ شو ګرځولې او د تطبیق والا هم دا صورت دې چې د دې عدت ابعد الاجلین اوګرځولې شی

**د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مؤقف**

هغوی فرمائی چې د سوره بقره والا آیت منسوخ دې ځکه چې د سورة طلاق والا آیت د دې نه پس نازل شوې دې د هغوی چیلنج وو هغوی به فرمائیل

من شاء باهلته سورة النساء القصری (اعنی سورة الطلاق) التی فیها واولات الاحمال الخ نزلت بعد التی فی سورة البقرة۔

**نکته**: په ائمه مجتهدین کښې د امام ابو حنیفه رحمه الله . امام شافعی رحمه الله

او د جمهور صحابه کرامو او تابعین رضی الله عنهم اجمعین سلفاً عن خلف مذهب د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او د حضرت عمر رضی الله عنهما موافق دي

(۲) **اختلاف الزمان دلالة**

د دې نه مراد دا دې چې د تاريخ په رنړا کښې خو معلومه نۀ وي چې ناسخ او منسوخ کوم ادله دی لیکن د زماني د مختلف کیدو په وجه مونږ د يو بل دليل په مدد سره د ناسخ منسوخ فيصله کوو مثلاً اصول دی چې څيزونو کښې اصل اباحت دي لهذا که د محرم او مبيح مينځ کښې تعارض راشی نو محرم به مؤخر ګرځولې شی ځکه چې لامحاله د اصل مطابق اول دلته هم حلت وو او بيا د دې نه پس د حرمت حکم عارض شو

**قول الشارح** : فلو عملنا بالمحرم كان النص المبيح موافقاً للاباحة

**تشریح** : دا يو وجه ترجيح ده چې د تعارض په وخت کښې به محرم ته ترجيح وی ځکه چې اشياؤ کښې اصل اباحت دي اوس به مونږ دې لره دلته محرم اوګرځو نو نص به د مبيح اباحت موافق شی لیکن که مونږ مبيح ته ترجيح ورکړو نو نص به موافق نۀ شی ځکه چې اول به اباحت بيا به حرمت او بيا به اباحت لازم شی دغه شان به د نسخ تکرار لازم شی چې اول اباحت په محرم سره منسوخ کړې شوې دې بيا حرمت دوباره اباحت سره ـ

**دويم قول** : اشياؤ کښې اصل حرمت دي ـ

**دريم قول** : ترهغې پورې توقف لازم دې ترڅو چې د حرمت يا د اباحت څۀ دليل نۀ وی

دليل مثبت او دليل نافي برابر دی هيڅ يو هم د بل نه غوره نۀ دي

د ائمه كرامو د دې اختلاف په وجه احنافو كښې هم اختلاف شوې دې ماتن رحمه الله د داسې قاعدې طرفته اشاره كوی چې هغې سره دا ټول اختلاف ختم شی فرمائی والاصل فيه ان النفی كان الخ

**د اختلاف رفع كولو دپاره د ماتن بيان كړې شوې قاعده**

نفی به د دريو حالو نه خالی نۀ وی يا خو به د مايعرف بدليله د جنس نه وی يا د هغې قبيل نه چې د كوم حال مشتبه وی يا به د دوارو نه نۀ وی كه د نفی د مايعرف بدليله د جنس نه وی نو هم به د اثبات په شان وی او كه د مما يشتبه حاله د قبيل نه وی نو هم به د اثبات په شان وی ليكن كه د دې دوارو د قبيل نه نۀ وی نو بيا به د اثبات په شان نۀ وی

**د قاعدې وضاحت**

(۱) ان كان من جنس مايعرف بدليله

د دې نه مراد دا دې چې نفی په دليل او علاميت ظاهره باندې مشتمل وی او په استصحاب حال باندې مبنی نۀ وی چې زمونږ په نزد حجت نۀ دې

(۲) ممايشتبه حاله

د دې نه مراد دا دې چې نفی خو بذات خود په دليل او علامت ظاهره باندې مشتمل نۀ وی بلكه په هغې كښې راوی د معرفت په دليل باندې اعتماد اوكړی او په هغې كښې د استصحاب او مايعرف بدليل دوارو احتمال وی۔

## دواړو صورتونو کښې د نفی للاثبات کیدو باندې دلیل

اثبات دلیل ته محتاج وی او دلته هم نفی دلیل سره ده او س دواړو کښې تعارض راغې د دې د ختمولو دپاره به د عیسی بن ابان د مذهب طرفته احتیاج وی او د هغوی مذهب هم دا دې

ثبوت التعارض بين المثبت والنافي والرجوع الى الترجيح كما قال يتعارضان اى يتساويان فبعد ذلك يصار الى الترجيح بحال الراوي

**دریم صورت** په دې صورت کښې به نفی د اثبات په شان نهٔ وی ځکه چې دلته په دلیل باندې اعتماد او نهٔ شو بلکه په استصحاب حال باندې د نفی بنیاد کیخودلې شوې دې دلته به د امام کرخی رحمه الله مذهب ته ترجیح حاصل وی

اى العمل بالدليل المثبت اولى من الدليل النافي.

## د مثالونو وضاحت په طرز د شارح رحمة الله عليه

**(۱) النفي في حديث بريره**

د حدیث بریره رضی الله عنها نه مراد دا دې چې د هغوی د آقا نه حضرت عائشې رضی الله عنها واخستله او آزاده یې کړه او د هغوی خاوند حضرت مغیث رضی الله عنه غلام وو هغې ته حضور اکرم ﷺ اختیار ورکړو چې که حضرت مغیث رضی الله عنه سره ژوند تیرول غواړی یا جدائی غواړی **ملكت بضعك فاختاري** د دې اختیار ورکولو په وخت حضرت مغیث رضی الله عنه آزاد وو یا غلام؟ په دې کښې اختلاف دې۔

**د حضرت امام شافعی رحمۃ اللہ علیہ مذهب:**

حضرت مغیث رضی الله عنه بدستور غلام وو لهذا د معتقه دپاره به خیار هغه وخت ثابتیږی چې کله د هغې خاوند غلام وی ورنه نۀ به ثابتیږی۔

**د حضرات احناف رحمهم الله مذهب**

حضرت مغیث رضی الله عنه هغه وخت آزاد شوې وو لهذا معتقه ته هر وخت اختیار حاصل دې خواه خاوند آزاد وی یا غلام۔

شارح رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چې حریت دارالاسلام کښې اصل دې او په دې باندې روایات متفق دی چې حضرت مغیث رضی الله عنه فی الحقیقت غلام وو. او اختلاف حریت عارض دې اوس د عبودیت خبر د حریت عارضی منافی دې او د حریت خبر مثبت دې د امر عارضی دپاره، چې کومو راویانو دا وئیلې دی چې کان عبدأفی الاصل نو دا بناء په ظاهر حال ده ځکه چې اول غلام وو نو شاید چې اوس هم غلام وی لهذا خبر نافی به د مثبت معارض نۀ وی (ځکه چې شوافعو وئیلې دی)۔

**د احنافو د مذهب د ترجیح وجه**

مونږ د حریت (آزادی) قول ځکه کوو چې کوم راوی د هغوی د آزادی خبر کړې دې نو هغوی به د څۀ دلیل په بنیاد کړې وی لهذا مونږ په مثبت باندې عمل کوو۔

**(۲) النفی فی حدیث میمونه رضی الله عنها**

حضور اکرم ﷺ د سرف په مقام باندې حضرت میمونه رضی الله عنها سره نکاح کړې وه د نکاح نه مخکښې حضور ﷺ

بالاتفاق احرام کښې وو یا د نکاح په وخت حضور ﷺ احرام مات کړو یا نهٔ؟ په دې کښې اختلاف دې

**د امام شافعي رحمه الله مذهب**

پیغمبر علیه السلام احرام کهولاؤ کړې وو ځکه چې د محرم دپاره د نکاح عقد جائز نه دې

**د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب**

پیغمبر علیه السلام هم د احرام په حالت کښې وو ځکه چې زمونږ په نزد محرم دپاره په احرام کښې نکاح جائز ده البته وطی جائز نهٔ ده

شارح رحمه الله فرمائي چې احرام د بنی آدم دپاره اصل نهٔ دې بلکه عارض دې لیکن د راویانو اتفاق دې چې حضور اکرم ﷺ دې وخت کښې احرام کښې وو. اختلاف عین د نکاح په وخت کښې د احرام کهلاوولو کښې دې دلته عین النکاح د محرم کیدو خبر نافی دې او د نقض احرام خبر مثبت دې.

**د مذهب احناف د ترجیح وجه**

حدیث ان النبی ﷺ تزوجها وهو محرم (الحدیث) د ما یعرف بدلیله جنس نه دې لهذا نفی به د مثبت عارض وی او مثبت دې انه علیه السلام تزوجها وهو حلال اوس د دوارو روایتونو کښې تعارض شو لهذا د ترجیح دپاره د امر عارض ضرورت دې او مونږ سره د دې دپاره د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حدیث موجود دې انه علیه السلام تزوجها وهو محرم او دا د یزید بن اصم رضی الله عنه د روایت انه تزوجها وهو حلال نه غوره دې ځکه چې هغوی په ضبط .

قوت حفظ او صحبت په هيڅ يو اعتبار سره هم د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما برابر کيدي نهٔ شی

كما قال عمرو بن الدينار رحمه الله للامام محمد بن شهاب الزهري رحمه الله ان يزيد بن الاصم رضى الله عنه اعرابي بوال على عقبيه اتجعل مثل ابن عباس رضى الله عنهما

(۳) **طهارة الماء وحل الطعام**

ماتن دا دواړه د مايعرف بدليله د جنس نه ګرځولي دی ليکن دا د هغوی تسامح ده ځکه چې دا د مما يشتبه حاله نه ګرځول غوره دی د مثال وضاحت دا دي چې د اوبو باره کښې يو سړی خبر اوکړو چې دا اوبهٔ نجس دی او دويم اووې چې نه بلکه دا پاکې دی وكذا حل الطعام او س اوبو کښې اصل طهارت دې او طعام کښې اصل حلت دي او دي ته نجس يا حرام وئيل د امر زائد اثبات دي او ښکاره خبره ده چې مخبر په استصحاب حال باندې اعتماد نهٔ دې کړې بلکه په څهٔ دليل باندې يې اعتماد کړې دې د طهارت او حلت خبر ورکوونکی باره کښې دوه احتماله دی دا هم ممکن دهٔ چې هغهٔ هم د دليل په بنياد باندې وئيلې وی که مايعرف بدليل نهٔ نو د نجاست او حرمت والا خبر به مقبول وی او کهٔ دا د حل ـ هارت والا خبر هم مايعرف بدليله وی نو تعارض بين الخبرين به واقع شی لهذا په اصل باندې به عمل کول واجب وی او اوبهٔ به پاکې او طعام به حلال اوګرځولې شی

**قوله** : والترجيح لا يقع

(۱) چې د کوم حديث راويان زيات وی نو هغې ته به ترجيح نهٔ حاصليږی

ليکن که بل طرفته يو راوی وی يعنی هغه حديث خبرواحد وی او دويم طرفته دوه يا زيات راويان وی يعنی خبر متواتر يا مشهور وی نو دي ته به په خبر واحد باندي ترجيح حاصل وی

كما قال محمد رحمه الله في المبسوط وهو ترجيح قول الاثنين على الواحد

(۲) چي د کوم حديث راوی سړی وی نو هغي ته به په هغي حديث باندي ترجيح نهٔ حاصليږی چي د کوم راوی ښځه وی لحديث عائشه رضی الله عنها ـ

(۳) که د يو متعارض حديث راوی آزاد او د بل غلام وی نو د راوی د آزاد کيدو په وجه به ورته ترجيح نهٔ حاصليږی : لحديث بلال رضی الله عنه ـ

(۴) که د يو راوی نه دوه حديثونه روايت دی يا خو به د دواړو مضمون يو وی يا به يو کښي څهٔ زيادتی وی او يا به د دواړو مضمون مختلف وی که يو کښي څه زيادتی وی لکه د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په حديث کښي د والسلعة قائمة زيادتی ده نو هم دغه زيادتی به راجح وی ـ

(بحمد الله د تعارض بحث اختتام ته اورسيدهٔ)

# فصل : د بـيان اقسام

کتاب او سنت کښې د هر يو په اعتبآر د بيان پنځهٔ قسمونه دی چې د هغې مختصر تفصيل په قدر د ضرورت پيش کولې شي

(۱) **بيان تقرير** : د خپل کلام تاکيد داسې الفاظو سره کول چې هغې سره مجاز او د خصوصيت احتمال ختم شي۔

**مثال** : قوله تعالٰی ولاطائريطيربجناحيه دلته طائر کښې د مجاز احتمال وو چې کوم هم تيزرفتار وی نو هغه طائر دې ليکن د يطير بجناحيه په ذريعې سره يې د مجاز احتمال ختم کړو۔

(۱) **مثال** : قوله تعالٰی فسجدالملائكة كلهم په دې کښې د تخصيص احتمال وو چې هغه يې د اجمعون په ذريعې سره ختم کړو۔

(۲) **مثال، بيان** :

د مجمل ،مشترک ، خفی او د مشکل مفهوم او مصداق بيانول

**مثال** : (۱) واقيموالصلوة مجمل دې چې د هغې بيان احاديثو سره اوشو چې مونځ کښې څومره رکعتونه دی او کوم کوم څنګه څنګه لوستل دی وکذاآتواالزكوة

**مثال** : (۲) والمطلقت يتربصن بأنفسهن ثلاثة قروء کښې قروء مشترک دې د حيض او طهر په معنی کښې د دې تفصيل طلاق الامة تطليقتان وعدتها حيضتان سره اوشو۔

(۳) **بيان تغيير** : داسې کلام چې د هغې په ذريعې سره کلام د ظاهر

معنې نه لرې کړې شي۔

**مثال** قول الزوج لزوجته انت طالق ان دخلت الدار

په دې کښې ان دخلت الداربيان تغيير دې ورنه طلاق به فوراً واقع کيدو ليکن ان دخلت الدار د فورى واقع کيدو نه لرې کړو او د کور د ننوتو سره يې متعلق کړو

## ۴ بيان ضرورت

وهونوع بيان يقع بما لم يوضع له اى السكوت يعنى دا د بيان داسې قسم دې چې د خپل موضوع له (نطق) د غير (سكوت) نه ثابتيږي كله خو دا في حكم المنطوق وى كله د متكلم د دلالت حال نه ثابتيږي او كله خلقو له د دهوکې نه د بچ کولو دپاره وى او كله د كلام د كثرت په وجه سره وى د اقسام اربعه مثالونه اوگورئ

### (۱) اما ان يكون فى حكم المنطوق

د ميرات متعلق د الله تعالى فرمان دې وورثه ابواه فلامه الثلث

(د مړي وارثان د هغهٔ والدين دى او د مور دپاره دريمه حصه ده ) په دې كښې يې د پلار حصه بيان نهٔ كړه ليكن دا د منطوق په حكم كښې ده ځکه چې وارثان دوه دى چې هر كله مور ته دريمه ملاؤ شوه نو باقى به پلار ته ملاويږي گويا داسې اووئيلې شو چې فلامه الثلث ولابيه الباقى۔

### (۲) ثبت دلالة حال المتكلم

د حضور اكرم ﷺ وړاندې داسې ډير كارونه اوشو چې د هغې په ليدلو سره پيغمبر عليه السلام هيڅ هم اونهٔ فرمائيل دا سكوت هم د دې

امر د جواز په حکم کنبي دي ځکه چې پيغمبر عليه‌السلام په يو ناجائز کار باندی خاموش نهٔ شو پاتې کيدې هم دې ته حديث هم وئيلې شی

**(۳) ثبت ضرورة رفع الغرر عن الناس**

آقا غلام لره اووينی چې هغه په بازار کنبي بيع وشراء کوی حالانکه هغه عبد محجور دې او د م خاموش دې نو دا به اذن تصور کيږی د امام زفر رحمه‌الله په نزد د سکوت د اذن قائم مقام نهٔ دې

**(۴) ثبت ضرورة كثرة الكلام**

د کلام مختصر کولو دپاره داسې وئيل لهٔعلی مائةودرهم د دې نه مراد دا دې چې لهٔعلی مائةدرهمودرهمواحد

**(۵) بيان تبديل**

دې ته نسخ هم وئيلې شی ځکه چې د الله تعالى فرمان دې اذابدلناآيةمكان آيةاو بل ځايې کنبي فرمائی ماننسخ من آيةاو ننسهانات بخيرمنهااومثلهاګويا که نسخ او تبديل هم يو څيز دې او دا يو لحاظ سره بيان دې اودويم لحاظ سره نسخ اوتبديل يعنی زمونږ په اعتبار سره دا په سابقه حکم کنبي تبديلی ده حالانکه د الله تعالى په علم کنبي د مخکنبي نه وه چې د دې حکم به دومره مدت وی د دې نه پس به دويم حکم راځی۔

لهذا د شارع په حق کنبي بيان محض دې . يهود . خوارج او معتزله د دې قائل نهٔ دی قياس او اجماع د کتاب و سنت دپاره د ناسخ جوړيدو صلاحيت نهٔ لری البته کتاب په سنت سره او سنت په کتاب سره منسوخ کول جائز دی چې د هغې مختلفاً او متفقاً څلور

صورتونه جوړيږي (۱) نسخ الكتاب بالكتاب (۲) نسخ الكتاب بالسنه (۳) نسخ السنه بالسنه (۴) نسخ السنه بالكتاب

**اختلاف** د امام شافعي رحمه الله په نزد نسخ الكتاب بالسنه جائز نهٔ دي او نسخ السنه بالكتاب هم جائز نهٔ دي لهذا دوه صورتونه جائز دی (۱) نسخ الكتاب بالكتاب (۲) نسخ السنه بالسنه

## د منسوخ د اقسامو وضاحت د مثالونو په ذريعې سره

### (۱) منسوخ التلاوة منسوخ الحكم

يعنی د هغې حكم هم منسوخ وی او مصحف قرآنی كښې موجود هم نهٔ وی مثلاً روايت دي چې سوره احزاب د سورة بقره برابر وو او د دې دوه يا درې سوه آيتونه وو اوس صرف درې اويا (۷۳) ايتونه دی د باقی آيتونو حكم هم منسوخ شو او تلاوت هم۔

### (۲) منسوخ الحكم دون التلاوة

مثلاً د الله تعالى فرمان لكم دينكم ولي دين د دې حكم جهاد وقتال سره منسوخ دې ليكن تلاوت يې باقی دې داسې په درجنونو آيتونه دی (ليكن د علماؤ په كښې اختلاف موجود دې)

### (۳) منسوخ التلاوة دون الحكم

مثلاً شادی شده سړې او شادی شده ښځه د زنا ارتكاب اوكړی نو هغوی به رجم كولې شی دا حكم باقی دې ليكن د دې تلاوت منسوخ دې الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما نكالاً من الله والله عزيز حكيم وكذا قراءة ابن مسعود رضی الله عنه فمن لم يجد فصيام ثلثة ايام متتابعات وقوله فاقطعوا ايمانهما مكان ايديهما۔

**(۴) منسوخ وصف الحكم**

يعني پوره حكم هم منسوخ نۀ وي بلكه د حكم څه وصف مثلاً د هغې عموم يا اطلاق منسوخ شي او اصل حكم مع التلاوة باقي وي

**مثال** : د الله تعالى فرمان دې چې اودس كښې خپې وينځئ دا حكم عام وو خواه ميوزې يې اغوستې وي يا نۀ ليكن حديث مشهور دا عموم منسوخ دې چې په هغې د لابس الخفين دپاره د مسح رجلين حكم دې

**اختلاف** : مونږ دې ته نسخ وايو او امام شافعي رحمه الله ورته تخصيص د اختلاف ثمره دا ده چې زمونږ په نزد دا صرف د خبرمتواتر او خبر مشهور په ذريعې سره جائز دي او خبرواحد د كتاب الله د خصوص يا عموم بدلولو صلاحيت نۀ لري او د شوافعو په نزد دا خبرواحد سره هم جائز دې او قياس سره هم۔

**ثمره د اختلاف په مثالونو سره وضاحت**

**مثال** : (۱) كتاب الله كښې د غيرمحصن زناكار سړي او ښځې سزا ذكر ده فاجلدوا كل واحد منهما مائة جلدة او س زمونږ په نزد دا خبر واحد سره نۀ شي بدليدې چې په هغې كښې د سلو كوړو سره د يو كال جلا وطني هم راغلې ده كما قال عليه السلام البكر بالبكر جلد مائة وتغريب عام د شوافعو په نزد جائز ده دا د خبرواحد مثال دې۔

**مثال** : (۲) قُرآن مجيد كښې كفاره يمين او كفاره ظهار كښې د غلام د آزادولو دپاره مسلمان كيدل شرط نۀ دي څكه چې د الله

تعالی په فرمان کښې صرف تحریررقبةلفظ مذکور دې او شوافع دې نو د قتل په کفارې باندې قیاس کوی او دې سره د مسلمان کیدو شرط هم لګوی ځکه چې هلته د تحریررقبه سره د مؤمنةقید هم دې لهذا باقی کفارو لره هم هغوی د قتل په کفاره باندې قیاس کوی او په هغې کښې هم د غلام د مسلمان کیدو قید لګوی

## فصل : د سنت فعلیه د قسمونو بیان

د سنت فعلیه یعنی د حضورا کرم ﷺ د مبارکو افعالو د حکم په اعتبار سره څلور قسمونه دی چې لاندې ذکر کولې شی

(۱) مباح (۲) مستحب (۳) واجب (۴) فرض

### د اقسام مذکوره حکم

مصنف رحمه الله فرمائی چې کومو احکامو باندې پیغمبر علیه السلام کوم جهت سره عمل کړې دې مونږ به هم په هغې باندې هغې جهت سره د عمل کولو پابند یو او د کومو افعالو باره کښې چې جهت معلوم نه وی نو هغه به په ادنی درجه یعنی (اباحت) باندې ساتو

**دلیل** : ځکه چې دا ممکن نه ده چې پیغمبر علیه السلام مکروه یا حرام باندې عمل کړې وی

### د علماؤ د اختلاف مختصر جائزه

چې کوم افعال د پیغمبر علیه السلام نه سهواً یا طبعاً صادر شوې دی او د هغې متعلق څه واضح دلیل هم موجود نه وی نو دا د پیغمبر علیه السلام سره خاص وو کوجوبُ الوتروالوضوءعندکُل صلوةد دې

متعلق د علماؤ مختلف اقوال دی۔

**اولنې قول** چې ترڅو جهت معلوم نهٔ وی نو د هغې افعالو د اتباع نه توقف واجب دې

**دویم قول** د هغې اتباع واجب ده ترڅو چې د ممانعت دلیل نهٔ وی

**دریم قول** : د امام کرخی او مصنف رحمهم الله په نزد به د اباحت په طریقې سره په هغې باندې عمل کولې شی۔

**د سنت دویم قسم**

اوس د سنتو هغه اقسام بیانولې شی چې پیغمبر علیه السلام طرفته نسبت کولو سره پیدا کیږی اوس د سنتو هغه اقسام بیانولې شی چې پیغمبر علیه السلام طرفته نسبت کولو سره پیدا کیږی۔

**د وحی اقسام**

ابتداءً د وحی دوه قسمونه دی (١) وحی ظاهر (٢) وحی باطن

بیا د وحی ظاهر درې قسمونه دی

(١) چې د فرشتې په ژبې سره ثابت وی او پیغمبر علیه السلام ته په دلیل قطعی سره معلومه وی چې دا کومه فرشته ده مثلاً هغه تولـه وحی چې پیغمبر علیه السلام تـه جبرائیـل علیه السلام راوړلې وه قـل نزلـه بروح القدس من ربك بالحق

(٢) د کلام نـه بغیـر د فرشتې په اشـارې سره ثابتیـدونکې وحی څنګه چې پیغمبر علیه السلام اوفرمائیل چې بیشکه روح القدس زما په زړهٔ کښې دا القاء اوکړه چې هیڅ یو کس هم هغـه وختـه پورې مړ کیدې نهٔ شی ترڅو چې د خپلې حصې رزق مکمل استعمال نهٔ کړی۔

(۳) هغه وحی چې د الهام په طور د الله تعالی له طرفه په قلب نبوت باندې وارد شوې وی ـ

**د وحی باطن اقسام**

د وحی باطن نه مراد هغه احکام او مسائل دی چې پیغمبر ﷺ په احکام منصوصه باندې د غور وفکر نه پس د اجتهاد په ذریعه معلوم کړل بعضې حضرات د وحی باطن منکر دی زمونږ په نزد د وحی د مدت انتظار ختمیدلو نه پس پیغمبر علیہ السلام په خپله رائې باندې د عمل کولو مجاز وو که اجتهاد کښې به غلطی وه نو الله تعالی به په هغې غلطۍ باندې برقرار نهٔ ساتلو بلکه د وحی په ذریعې سره به یې د هغې درستګی فرمائیله ـ

وحی باطن هم د وحی ظاهر د قسم ثالث (الهام) په منزله معتبر ده.

**قوله** : وشرائع من قبلنا اذا قص الله ورسوله من غير انكار

**د یو معرکة الاراء مسئلې بیان**

د حضور اکرم ﷺ د بعثت نه پس ټول سابقه شریعتونه منسوخ شو اوس په هغې سابقه شریعتونو باندې د عمل کولو څه حکم دې په دې کښې اختلاف دې

(۱) **د بعضې علماؤ مذهب** :

په سابقه شریعتونو باندې عمل کول واجب دی مطلقاً

(۲) **د بعضو نورو علماؤ مذهب** :

په سابقه شریعتونو باندې عمل کول واجب نهٔ دی مطلقاً

(۳) **د جمهور علماؤ مذهب** راجح مذهب دا دې چې کتلې به شی

که د سابقه شریعتونو په هغې احکاماتو باندې نکیر وارد شوې وی خواه قرآن پاک کښې وی یا حدیث کښې نو هغه زمونږ دپاره واجب العمل نۀ دی لیکن که د هغې ذکر قرآن یا حدیث کښې راغلې وی او په هغې باندې الله تعالی یا د هغۀ رسول څۀ نکیر نۀ وی فرمائیلې نو هغه زمونږ دپاره واجب العمل دی

**د هغې احکام سابقه څو مثالونه چې په مونږ واجب دی**

(۱) **د قصاص قانون** : دا حکم په بنی اسرائیلو نازل شوې وو څنګه چې د الله تعالی فرمان دې

وکتبنا علیهم ان النفس بالنفس والعین بالعین والانف بالانف والاذن بالاذن والسن بالسن والجروح قصاص

(۲) **نمبر مقررول** : د تیولو نه مخکښې حضرت صالح علیه السلام د خپلې اوښې متعلق د قوم نمبرې مقرر کړې وې

کما قال الله تعالی : ونبئهم ان الماء قسمة بینهم

(۳) **د لواطت حرمت** :

قال تعالی انکم لتاتون الرجال شهوة من دون النساء

**یو څو د هغې احکاماتو مثالونه چې په مونږ واجب نۀ دی**

یهودو باندې نوک دار ځاروی غوا . او ګډې چیلې حرام وو په مونږ حلال دی ځکه چې دا حرمت په هغوی باندې د سزا په طور سره وو کما قال تعالی وعلی الذین هادوا حرمنا کل ذی ظفر ومن البقر والغنم حرمنا علیهم شحومهما ذالك جزیناهم ببغیهم

**اعتراض** چې هر کله سابقه شریعتونه منسوخ دی نو د هغې بعضې احکام څنګه واجب العمل دی؟

**جواب** دا په مونږ باندې د سابقه احکام کیدلو په وجه واجب نهٔ دی بلکه نکیر په کتاب و سنت کښې د وارد کیدو په وجه سره دا زمونږ د شریعت حصه ده.

## د صحابي د تقلید بیان

(۱) **راجح قول** د صحابي د قول تقلید واجب دې که هغه خلاف قیاس وی نو د هغې په وجه به قیاس ترک کولې شي د قیاس نه مراد د صحابي رضی الله عنه نه د غیر قیاس مراد دې د یو صحابي قیاس به د بل صحابي رضی الله عنه په قول سره متروک نهٔ وی.

(۲) **د امام کرخي رحمه الله قول**

چې کوم امور غیر مدرک بالقیاس دی په هغې کښې د صحابي رضی الله عنه د قول تقلید واجب دې او چې کوم مدرک بالقیاس وی نو په هغې کښې به قیاس باندې عمل کولې شي

(۳) **د امام شافعي رحمه الله مذهب**

د صحابي رضی الله عنه تقلید واجب نهٔ دې خواه هغه مسئله مدرک بالقیاس وی یا غیر مدرک بالقیاس وی

(۴) **د احنافو کثرالله سوادهم مذهب**

چې کوم اقوال غیر مدرک بالقیاس دی نو په هغې کښې بالاتفاق د صحابي رضی الله عنه د قول تقلید واجب دې البته مدرک بالقیاس کښې اختلاف دې

## غیرمدرک بالقیاس امورو کښې د صحابی د تقلید مثال

(۱) د حیض د اقل مدت متعلق د حضرت امی عائشه رضی الله عنها فرمان

اقل الحیض للجاریة البکر والثیب ثلثة ایاموليالیها

(۲) شراء مـاباع باقل ممـا باع کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها قول دوی هغې ښځې ته اوفرمائیل کومې چې د حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه سره د شراء ماباع باقل مماباع معامله کړې وه بئس مـاشریت واشتریت دغې ښـځې د حضرت زید بـن ارقم رضی الله عنه نه ۸۰۰ درهمه باندې غلام اخستلې وو او د هغې قیمت ادا کولو نـه مخکښې یې هم پـه هغوی باندې ۶۰۰ درهـم کښې خرڅ کړې وو دا عمل فریقین کښې جائز نهٔ دې

## غیرمدرک بالقیاس کښې د احنافو مذاهب

بعضې احناف دلته هم د صحابی رضی الله عنه د قول تقلیـد کوی او بعضې په قیاس باندې عمل کوی

## مثال سره وضاحت

بیع سلم کښې د مقدار ښودل شرط دی یا نهٔ؟ په دې کښې امام ابوحنیفه صاحب رحمه الله د راس المال مقدار بیانول شـرط ګرځوی ځکه چې دې بـاره کښې د حضرت ابـن عمر رضی الله عنـه یـو قـول ملاویږی او د حضرات صـاحبینو رحمهم الله پـه نزد دا شـرط نهٔ دې هغوی په قیاس باندې عمل کوی چې بس اشـاره یې اوکړه نو دا هم کافی ده د نوم اخستلو ضرورت نشته ځکه چې پـه تعریف د اشیاؤ کښې اشاره د تسمیې نه ابلغ ده ۔

(۲) د اجير مشترک مسئله چي کهٔ دهٔ سره څيزونه هلاک شي نو دې به ضامن وی يا نهٔ؟ په دې باره کښې امام صاحب په قياس او صحبينو د صحابی رضی الله عنه په قول باندې عمل کړې دې د صاحبينو په نزد به د حضرت علی رضی الله عنه د قول مطابق ضامن وی او امام ابو حنيفه رحمه الله قياس کولو سره فرمائی چې ضامن به نهٔ وی ځکه چې دا امين دې او د امانت په ضائع کيدو باندې هيڅ قسم ضمان نهٔ وی دا اختلاف په هغه صورت کښې دې چې کله دا ضائع کيدل د فيما يمكن الاحترازعنه د قبيل نه وی لکه غلا او که دا ضائع کيدل فيما لا يمكن الاحترازعنه د قبيل نه وی لکه سوزيدل نو بيا اختلاف نشته ـ د اجير مشترک مثال قصار (دهوبی) دې ـ

# باب الاجماع : د اجماع بحث

**لغوی معنی** اتفاق. متحد کيدل

**اصطلاحی تعريف** : اتفاق المجتهدين الصالحون من امة محمد صلی الله عليه وسلم فی عصر واحد علی امر قولی اوفعلی (په يو امر قولی يا فعلی باندې د امت محمديه صلی الله عليه وسلم اهل علم او اهل تقوی اتفاق خواه هر يو دور کښې وی)

**د تحقيق اجماع دوه قسمونه دی**

دې ته ركن الاجماع ونيلې شی يو عزيمت دې او دويم رخصت

**د عزيمت تعريف**

د ټولو مجتهدينو په دې مسئله کښې متفق کيدل چې د هغوی د اقوال نه معلومه وی لکه داسې چې ټول حضرات اووائی :

اجمعنا على هذايا به د هغوی د افعالو نه ثابته وي۔

**د رخصت تعريف**

بعضي مجتهدين اتفاق اوکړي او نور مجتهدين نهٔ اتفاق اوکړي او نهٔ انکار دي ته اجماع سکوتی وئيلې شی چې زمونږ په نزد معتبر ده او امام شافعی رحمه الله د دې قائل نهٔ دې

**د اجماع د اهليت د شرطونو بيان**

مجتهد نيک او صالح سړې وی فاسق او خواهش پرست نهٔ وی البته د مجتهد دپاره نهٔ صحابی کيدل ضروری دی او نهٔ د اهل بيت رضی الله عنهم فرد کيدل دغه شان نهٔ ورله د اهل مدينه نه کيدل ضروری دی او نه انقراض عصر کيدل . امام مالک رحمه الله صرف د اهل مدينه اجماع معتبر گنړی دا هم ضروری نهٔ ده چې په دې مسئله کښې په متقدمينو کښې اختلاف نهٔ وی ځنګه چې بعضې خلقو د امام ابوحنيفه رحمه الله طرفته د دې شرط نسبت کړې دې چې غلط دې مثلاً د ام ولد بيع د حضرت عمر رضی الله عنه په نزد ناجائز او د حضرت علی رضی الله عنه په نزد جائز وه ليکن اوس د امام محمد رحمه الله په نزد هيڅ صورت کښې هم دا جائز نهٔ ده اګر که قاضی فيصله هم اوکړی ځکه چې د صحابه کرامو په دور کښې د ام ولد په د بيع باره کښې په عدم جواز باندې اجماع منعقد شوې وه ليکن د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د سابقه اختلاف په وجه دا اجماع معتبر نهٔ ده بلکهٔ د قاضی د فيصلې اعتبار به کولې شی۔

**د انعقاد اجماع شرط**

د اجماع د انعقاد دپاره ضروری ده چې د ټولو اهل اجماع اتفاق وی که يو هم اختلاف اوکړی نو دا اجماع به نهٔ منعقد کيږی د

جمهوريت په اصولو باندې د اکثريت اتفاق کافي نهٔ دي څنګه چې د معتزله خيال دې

**د اجماع حکم** چې په کومه خبره باندې اجماع اوکړې شي نو هغې سره د قطعيت او د يقين فائده حاصليږي لهذا د اجماعي حکم منکر کافر دې مګر دا کهٔ څه عارض د قطعيت يا يقين نه مانع وی البته د اجماع د منکر تکفير به نهٔ شي کولې ـ

**حجيت اجماع باندې دلائل**

(١) وكذلك جعلناكم امة وسطا لتكونوا شهداء على الناس

وسط په معنی د عادل دې او د عادل په شهادت سره علم يقين حاصليږی

(٢) كنتم خير امة اخرجت للناس الخ د خير امت اجماع به هم حجت وی

(٣) ومن يشاقق الرسول من بعد ما تبين له الهدى ويتبع غير سبيل المؤمنين نوله ما تولى ونصله جهنم (دلته د مسلمانانو د لارې مخالفت باندې د جهنم وعيد دې او اجماع هم د مسلمانانو لار ده لهذا د دې مخالفت جائز نهٔ دي)

**د داعی الی الاجماع بيان**

د بعضې علماؤ په نزد د اجماع دپاره په ادله اربعه کښې د څه داعی ضرورت دې او بعضې وائی چې د دې ضرورت نشته ـ

(١) داعی الی الاجماع به کله خبر واحد وی مثلاً قبل القبض د خلې د بيع په عدم جواز باندې اجماع ده او په دې باندې داعی دا خبر واحد دې (لاتبيعوا الطعام قبل القبض (الحديث)

(٢) داعی کله قياس وی مثلاً وريژو ، چاول ، کښې ...

باندې اجماع ده او پـه دې باندې داعـې پـه شپږو څيزونـو باندې قياس دې۔

(۳) داعی كله د كتاب الله نه هم وی مثلاً د پلار د طرفه نيا .د مور دطرفه نيا. او نمسئ په حرمت باندې اجماع ده او په دې باندې داعی دا د الله تعالی فرمان دې حرمت عليكم امهاتكم وبناتكم الخ

## د نقل اجماع دپاره هم اجماع ضروري ده

(۱) د ټولو نه غوره اجماع: د ټولو صحابه كرامو رضی الله عنهم اجماع ده او د قرآنی آيتونو او خبرمتواتر پـه شان پـه دې باندې هم عمل واجب او انكار ترې كفر دې

(۲) د اجماع دويمـه درجه هغه ده چې پـه هغې كښې د بعضو صحابه كرامو اختلاف وی د دې منكر كافر نهٔ دې ليكن دا اجماع هم مفيد لليقين ده

(۳) د دې نـه پس د هر دور د تـابعينو او د علماؤ اجماع ده پـه هغې امورو باندې چې په هغې كښې صحابه كرامو رضی الله عنهم اختلاف نهٔ دې كړې دا مفيد للظن ده

(۴) د صحابه كرامو رضی الله عنهم نه پس د خلقو پـه هغې امورو باندې اجماع چې په هغې كښې د صحابو اختلاف وو دا د خبرواحد پـه حكم كښې ده او مفيد لليقين نهٔ ده ليكن د قياس نه مقدم ده۔

**قوله** : **والامة اذا اختلفوا على اقوال كان اجماعاً منهم الخ**

دا آخری مسئله ده پـه دې كښې دوه قولـه دی چې پـه امت كښې كهٔ اختلافی اقوال وی نو هغې ته به اجماع وئيلې شی يا نهٔ۔

**راجح مذهب**
هر قول ته به د اجماع مرتبه حاصل وی او د دې اقوالو نه علاوه بله لار اختيارول جائز نهٔ دی لکه اقوال المختلفة بين الائمة الاربعة فى المسئلة الواحدة وايضاً مسئلة الحامل المتوفى عنها زوجها كما مر

**دویم مذهب** دا حکم صرف د صحابه کرامو رضی الله عنهم د اختلافی اقوالو سره خاص دې نورو طبقاتو دپاره نهٔ دې۔

**د شارح رجحان** فرمائی چې حق دا ده چې دا حکم عام دې د هر دور د علماء مجتهدین د اختلافی اقوالو سره . د دې نوم اجماع مرکب ده او د مذاهب اربعه نه پس د پنځم مذهب د باطل کیدو تصور د اجماع مرکب په بنیاد دی او اجماع مرکب نه مراد دا دې چې د دواړ قولونو په اختلاف سره دا اجماع منعقد شوې ده۔

**اعتراض**: که د اجماع مرکب نه د یو زمانې د مجتهدینو اختلاف مراد واخستلې شی نو بیا به د مذهب شافعیه و حنابله بطلان لازم شی ځکه چې د هغوی نه وړاندې د امام ابوحنیفه او امام مالک رحمهم الله اختلافی اقوال موجود دی لهذا د اجماع مرکب کیدو په بناء باندې د هغوی نه د اختلاف گنجائش نه وو پکار او که د یو زمانې شرط نهٔ وی نو بیا د امام شافعی او امام احمد بن حنبل رحمهم الله د اجماع د معتبر کیدو او زمونږ د اجماع د نهٔ معتبر کیدو څهٔ وجه ده؟

والجواب عنه صعب كما قال الشارح عليه رحمة الرحمان
وتمت بعون الله المنان وهو المستعان
وصلى الله على النبى الامى وآله وسلم تسليما

"إِنَّ اللّٰهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا وَيَضَعُ بِهِ آخَرِيْنَ"
(رواه مسلم)

# توضيح الحاوی

پښتو شرح د

# تفسیر البیضاوی

افادات گرامی


حضرت مولانا
سید فخر الحسن صاحب رحمه الله
صدر المدرسین دار العلوم دیوبند


ترجمه وکمپوزنګ

دار الترجمه وکمپوزنګ سنټر


مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوښهره

# طرازی

پښتو شرح د

# سراجی


مؤلف

مولانا اشتیاق احمد صاحب دربهنگوی

استاذ دارالعلوم دیوبند



مکتبه رشیدیه سردارپلازه اکوړه خټک نوشهره

۰۳۴۴ -۹۰۸۴۶۹۳

# مجموع الفتاوی

مشهوره په

## مسائل رفعت قاسمی

## مکمله او مدلـــه

د قرآن او سنت په رڼا کښې

د دارالعلوم دیوبند د لویو مفتیانو
او علماء کرامو تصدیق سره

تالیف

حضرت مولانا محمد رفعت قاسمی صاحب

مفتی ومدرس دارالعلوم دیوبند

ناشر

**مکتبـــه رشـــیدیه**

سردار پلازه اکوړه خټک

د منطق نعم العون علی ادراک العلوم کلها (ابن سینا)
د کتاب خصوصیات
[متن. اعراب. ترجمه. تشریح، فوائد، نقشه جات]

# تشریحات

## پښتو شرح د

# مرقات

(پښتو ترجمه د) تحفة المنظور

افادات

شیخ الحدیث حضرت مولانا
محمد منظور الحق نورالله مرقده

ضبط وترتیب

مولانا سراج الحق عفی عنه

مکتبه رشیدیه سرباز پلازه اکوړه خټک نوشهره

